# نُورُ الاِیضاح

مولانا ابوالفضل علامۃ الدہر

محمد عبد اللہ الایوبی

القندھاری السلیمانخیلی الحنفی

کتبہ ورتبہ بقلمہ

محمد فضل الحق حقانی

مدرس جامعہ تجوید القرآن کوئٹہ

پروپرائٹر

شمس الحق شمس

مکتبۃ القراۃ والتجوید

کانسی روڈ شالدرہ نزد مسجد نور کوئٹہ

بسم الله الرحمن الرحیم

من یرد الله به خیرا یفقهه فی الدین

الحمد لله چې په دې زمانه کې خدای تعالی ددې بنا پسته کتاب
یعنې پښتو نور الایضاح سره د مسئلو د طبع توفیق را کړ

# نور الایضاح

پښتو

مع مسائل جدیده

حقانی کمپیوټر سنټر
هر قسم کتابت والطباعت

وقد کتبه ورتبه بقلمه
محمد فضل الحق حقانی
مدرس جامعه عربیه مرکزیه تجوید القرآن
کوئټه

تالیف

الحاج ابو الفضل مولانا محمد عبید الله الایوبی القندهاری النقشبندی الحنفی

الناشر
مکتبة القراءة والتجوید
کانسی روډ شالدره کوئټه

بِسۡمِ اللهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِيۡمِ

اَلحمدُ للهِ وَحدَه وَالصَّلوٰةُ وَالسَّلامُ عَلٰى مَنۡ لَّانَبِيَّ بَعدَهٗ. اما بعد محترمو مسلمانانو ورونړو، اوخویندو، مشرانو، اوکشرانو، د الله تبارك وتعالى شكر ادا كوم چې ده جَلَّ جَلَالُهٗ راته د لیکلو توفیق راکړ:

حضرت ابوالفضل الحاج محمد عُبید الله تردې رب کائنات صحت او ژوند ورله عطا کړی إن شاءَ الله ثُمَّ اِن شاءَ اللهُ د افغانانو د زړونو ارمانونه به ورپوره کړي. ولې چې حضرت ایوبي خپل د ژوند پاتې برخه خاص او خاص د دا سې شرحو او تراجمو د پاره وقف کړی ده. چې د هغو فائده عامه وي خاص وعام، هرخواننده او هر زاړه او ښځې، هرمشر او کشر ته ور سیږي.

محترمو لوستونکو:

هغه افغانان چې په بهرنیو هیوادونو کې ژوند تیروي. د هغو د پاره د حضرت ایوبي تصانیف دیوه مستقل استاذ کامل حیثیت لري. دا خولا څه چې د هغو د پاره د حضرت ایوبي تصنیفونه په ډول دیوی عظیمی تحفې لیږل کیږي.

## یوه لویه خوشخبري

ګرانو لوستونکو هم دا اوس اوس حضرت ایوبي زما فضل الحق حقاني سره داوعده کړیده. چې إن شاءَ اللهُ العزیز نکاح قدوري یعنی قدوري جلد ۲ دوهم به هم بنه په تفصیل سره پښتو کوم ولې چې د نِکاح، طلاق، او رضاع، مسئلې ډیرې مشکلې دی او عوام ډیر زیات په مبتلا دي خدای پاك دې ده ته د تصنیف کولو اوما ته د لیکلو توفیق راکړي، نور موپر لوی خدای جَلَّ جَلَالُهٗ سپارو.

النَّاشِرُ
مکتبة القرآت والتجوید
کانسی روډ کوئټه

ستاسو ورور محمد فضل الحق حقاني
مدرس جامعہ عربیہ مرکزیہ تجوید القرآن کوئٹہ





بِسۡمِ اللهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِيۡمِ
اَلحَمدُ لِلّٰهِ رَبِّ الۡعٰلَمِيۡنَ وَ الصَّلوٰةُ وَالسَّلَامُ عَلٰى سَيِّدِ الۡاَنۡبِيَاءِ وَ الۡمُرۡسَلِيۡنَ وَعَلٰى اٰلِهٖ وَ اَصۡحَابِهٖ اَجۡمَعِيۡنَ"

## خوارَه خوارَه بیتُونه دعُبَیدعاصِی له خوا

که ثنا د خدای پاك وایمه شرمیږم
اوکه نه وایم د خدای شکر بیرېږم

نعمتونه د خدای پاك پر ما عاصی
دومره ډیر چې په حساب یې نه رسیږم

هر نعمت چې زما د حاله مناسب دی
خدای راکړی دی وما ته زه پوهیږم

د دی دومره نعمتو ثنا په خوله زما
نه کیدونکی او نه زه پسی رسیږم

کم نعمت د خدای پاك یاد کړم زه په خوله
څو لکه می هیر دی او بعض یاد لرم په زړه

د ثنا وېل نعمت هم د خدای پاك دی
پر ثنا شاوېل طاقت د چا دی

بیا د زما جزوی ثنا دی خدای منظوره کړي
د کریم په لوی دربار کې دی قبول کی

چونکه عجز د بنده د خدای پاك خوښ دی
دا زما عجز مسکنت دی خدای پاك خوښ کړي

معاصی او ګناهونه زما ای خدایه
تر حد ډیر دی زه به څه کړم باری خدایه

مغفرت او لوی رحمت ته ستا امید دی
چې دا تول له ما ته وبخښی یو ځایه

د اشیاکاله په عمر کښې چې زما دی
ستر ګی دید کړی زړه ادراك سمع غوږونه

پښی روانی پر هر لوري چې می زړه غواړي
دواړه لاسه اماده وخپل کار ته یې اراده

د دی قسمه خارجې نعمت هم ډیر دی
د دی ټولو شکر وېل مشکل بنکاریږی

کریم د ه لَئِنۡ شَكَرۡتُمۡ چې راپیاد کړم
دا خپر څخه می زړه په لرزه کیږي

د عُبَید د خوشحالی به هغه وخت وی
چې د نفس مطمئنه زیری پری کیږي

# درود پر احمد مجتبیٰ صلی اللہ علیہ وسلم

پس له حمد درود وایم پر احمد مجتبیٰ
چې سید المرسلین دی او محمد مصطفیٰ

شفاعت د ټوله امت به کوی څوك
هغه څوك چې دی محمود مرتضیٰ

په سجده کې د امت غم به کې څوك
هغه څوك چې دی حامد مقتدیٰ

پس له خدایه غیرت مند سړی دی څوك
هغه څوك چې د نبیانو دی پیشوا

د یَا اَیُّهَا الَّذِیْنَ اٰمَنُوْ صَلُّوْا عَلَیْهِ انعام د چا
هغه څوك دی چې اول دی په ویلو د بلیٰ

محبت د هغه چا سره کړه وروره
چې په سخت حالت کې ستاوی راهنما

د عبید د خوشحالی وخت به هغه وی
چې قبول سی په دربار کښې د پیشوا

لمن تینګه د احمد به عبید نسی
چې یوه دیوال تی مخ و بل تی شا

پس له حمده له صلوته دا رنګ وایم زه وباته
چې طلب د علم فرض دی لازم سوی لکه قرض دی

«رشید بیان»

پوه سه چې پر نراد بنځې هغه قدر علم او زده کړه فرض عین ده چې دی د هغو کار د په کولو مکلف دی یا اجمالاً لکه اجمالی عقائد چې په آمنت بالله کښې ذکر سوی دی • او یا تفصیلاً لکه او دا سه علم او د لانځه علم او غنی سړی ته احکام د زکوٰة صدقه فطر اضحیه د احکامو زده کړه او د هغه رنګه د حج د احکامو علم حتی پر بنځه باندی زده کړه د احکامو د حیض او نفاس هم فرض عین ده • نا ښه د زده کړه او علم څخه دا نه ده •

چې نراد بنځه خواه د فقهی شریفی کتابونه وایی بلکه د خولی څخه د علماو هم زده کړه د د غو شیانو کانی ده •
شکایت بعضو واعظانو په خپلو مساجد کښې هغه قصې بیانوی چې خلګ پر وژاړی او د ته مقبولیت په عوام کښې پیدا سی او د او د اسه غسل لانځه وغیره احکام نه بیانوی • او نه پوهیږی چې عوام د دغو احکامو ته
سخت ضرورت لری والی الله المشتکی • منه





# د نور الایضاح د پښتو شرح ضرورت ضرور!

پوه سه: چې نور الایضاح په فقه حنیفی کښې یو معتبر او د اعتماد وړ کتاب دی. او پر صحیح احکامو د فقه شریفی مشتمل دی، او په عین حال کښې ډیر مغلق او سخت کتاب دی.
متأسفانه دا کتاب جلیل الشان ډیر و مبتدی بلکه کچنی هلکانو ته ویل کیږی یعنی تر شروط الصلوٰة او قدوری وروسته دا کتاب و درس ته داخلیږی، او دا دی سره سره چې لوستونکی یې کوچنیان دی، ښوونکی یې هم هغه طالبان یا امامان دی، چې هغوی د فقهی حنیفی د مسائلو څخه بیخی نا خبره وی،
نو د فوق الذکر حالاتو سره به د غو هلکان د دی کتاب څخه څه فائده واخلی؟ او څه فقه به زده کړی!
متل، ړوند به ورانده ته څه لاره وښیی، نو هم له دی کبله و دی عاصی ته تحریری مطالبی او شفاهی مطالبی د طالبانو د خوا څخه وړاندی سوی چې پر نُوْرُ الْاِیْضَاح، د قدوری په شکل او د ول، چې تا په پښتو شرح پری کړیده هم هغه سی ترجمه او شرح پر وکړه. چې دا مشکل د تعلیم او تعلم د نور الایضاح د ما بین و لاړ سی. عاصی چې د دوی په دې مطالبه کښې غور وکړی بیله کتیبك، می بله چاره و نه لیدله، اول د دی سببه چې په حدیث صحیح نبوی کښې راغلی دی. که چا د مستحقو کسانو څخه علم منع او پټ کړی په ورځ د قیامت بی دا اور ملونه په خوله کښې وروا چول سی. دوهم سبب دا دی چې دا خو د دین خدمت او د ثواب کار دی.
دریم وجه دا ده، چې امکان لری بلکه غالبه ده چې هغه څوك چې د دی شرحې څخه فائده واخلی و ما عاصی ته به دعاء وکړی او د عاصی به سبب د مغفرت وګرځی. څلرم دلیل دا دی، چې د خپلو پښتنو ورونړو او خوندو په خپل مورنۍ ژبه به خدمت د دین وګرځی. حق محض کم نر یا بنځه چې پښتو خط یې زده وی د فقهی حنیفی پر ټولو احکامو بی علم راسی، او د دربدری څخه به په امان سی، وَمِنَ اللّٰهِ التوفیق

# مُصنّف دَ نُورُ الایضَاح څوک دئ

حضرت المولی ابوالحسنات المولوی عبدالحی اللکهنوی رح ططربُ الاماثل بتراجم الافاضل، په صـ۲٦۸ کښې داسې وائي: الشیخ حسن بن عمار بن علی ابوالاخلاص المصري الشرنبلالی الفقیه الحنفي رح دئ، دی وائي چه دغه شیخ دلویو فقهاوو او فاضلانو څخه د خپلې زمانې وو. او په فقه حنیفي کې به تر ټولو متأخرینو بنه ملکه او قوت پردرلود ئ. او په قواعدو د فقه بنه خبر شخص وو. اوده په کشنو الی سبقان پر شیخ محمد الحموي رح، او پر شیخ عبدالرحمن المسیري رح ویلي دي. او په لوی والي یه ټول فقه د شیخ عبدالله النحریري رح او د علامه محمد المحبي رح څخه زده کړه کړیده. او ډیر علماء بیاد شیخ شرنبلالي رح شاگردان دي چې ناموړي کسان یه د غه دي،

العلامة احمد العجمي و السید احمد الحموي و الشیخ شاهین رح شاگردان دي چې ناموړي کسان دي او همدا رنګه العلامة اسمٰعیل النابلسي رح وغیر هؤلاء من الفقهاء رح و للشرنبلالي رح رسائل کثیرة نافعة وتصنیفات جلیلة » او لوی کتاب دده حاشیه ده پر درر و غرر » د ملا خسرو او دی رح په سنه ۱۰٦۹ وفات سوی دی. او عمر یه تقریبًا ۷۵ کاله وو.

او د تصنیفاتو څخه د شرنبلالي رح یو متن متین دی په فقه کښې چې د نور الایضاح په نامه شهرت لري. او دا متن تر بابُ الاعتکاف یعنی تکیه پورې دئ. او بیا ده پر د غه خپل کتاب دوې شرحې کړې دي. یوه غټه شرحه او بله کشنې، او ده د مختصري شرحې چې مراقي الفلاح په نوم دئ داسې لیکلي دي،، چې شروع د دغې مختصري شرحې په آخیر کښې د جمادی الاخیر یعني وروستی خور او ختم یه په اولو ورځو کې د رجب د میاشتې وسو. چې تخمینًا یوه میاشت کیږي. او دا کتاب اوس موجود دی او یو مجلد کبیر دی،، چې زما خیال دی چې په شپږ میاشتې کې بې کاتب نوشته هم نه وکړي. او دا شرحه په سنه ۱۰۵۴ سوې ده. او هغه کوښ شرحه چې یعني سره زیاتان ده موافق د ۱۲ امداد الفتاوی یه نوم دی په سنه ۱۰۴۵ په مابین کې د ربیع الاول یعني نومړي خور او د مسوده ختم یه اخیر د رجب د میاشتې د دغه کال انجام سو.





او ده وئیلي دي چې زما اراده سوه چې عبادات خمسه پوره کړم په زیاتوالی د زکوٰة او حج مختصًا فقلتُ کتاب الزکوٰة آه

د ړوکیش وائي: چې بیا مولوی عبدالحی رح د شیخ شرنبلالي رح د رسائلو او تصنیفاتو ذکر مفصلًا کړي چې د لته ضرورت ورته نسته. د او و بیان د مصنف د نور الایضاح،

وَلَیْسَ عَلَی اللّٰهِ بِمُسْتَنْکَرٍ، اَنْ یَّجمع العالَم فی عَالِمٍ،

همت بلند دارد که نزد خدا و خلق :: باشد بقدر همت تو اعتبار تو :: مرزا غالب رح

دا باران چې پر همه وو مخکو ووري :: مشرف یه کې دا ذات کیمیا وَلی عبدالرحمن بابا رح

# دَ فقه حَنیفي مَأخذه شئ دئ!

پوه سه: چې مبنیٰ د فقه حنیفي آیات قرآنیه دي چې تعداد د احکامی آیاتو یه ۵۰۰ ته رسیږی کذا فی التفسیرات الاحمدیة، او بل مأخذ یه احادیث نبویه ﷺ دي او اجماع دی او قیاسات صحیحه په مذهب حنیفي کښې لویه برخه لري. او دا یه ټولو کتابو کښې د فقهی حنیفي یوه معلومه خبره ده او پوه سه، چې فقه حنیفي په اکثر احادیثو شریفه وو کښې پر روایت د عبدالله بن مسعود رض مبنیٰ ده. او ناموړی یو صحابی جلیل القدر حافظ الحدیث وو او په عین حال کښې ستر مجتهد هم وو، د تاریخ پا ڼې د ده د مناقبو ډکې دي،، چې تفصیلًا بیان یه په دې مختصرو اوراقو کښې نه ځائیږی.

او دا فقه د ده رض څخه علقمه رح روایت کړې ده، او د هغه څخه ابراهیم النخعي رح روایت کوی او د هغه څخه حماد رح روایت کړی دی او د حماد څخه امام الامة ابوحنیفه رح روایت کوي او د هغه څخه قاضی ابویوسف رح او محمد رح او نورو په زرو شاگردانو روایت کړیده ثم و ثم الی یومنا هذا عبدالله بن مسعود رض د سا بقینو مسلمانانو څخه دی حتیٰ تر حضرت عمر رض د مخه مسلمان سوی دی او د بدر یینو څخه هم دی، امام نووي رح په تقریب کښې وائي چې مسروق څخه روایت دی چې هغه وویله چې علم د صحابه رض وو شپږو کسانو وپای ته رسیږی.

۱ عمرؓ ۲ علیؓ ۳ اُبیؓ ۴ زیدؓ ۵ ابوالدرداءؓ ۶ عَبْدُ اللّٰه بن مسعودؓ آه

# دَ نفس علم فقه فضیلت څه دَیٔ

پوهه سه: چې خدای جَل شانهٗ په قرآن کریم کې داسې وَائی،، وَمَنْ يُّؤْتَ الْحِكْمَةَ فَقَدْ اُوْتِيَ خَيْرًا كَثِيْرًا ـ ترجمه: که چاته وَرکړه سې حکمت نوهغه ته ورکړه سو لوی خیر،، دَ مفسرینؒ حضرات دحکمت تفسیرپه علم الفروع چې فقه دَه کړیده،، اوداد فقه لوی شرف دَی، وَ ایضاً داسې راغلی دی،، فَقِيْهٌ وَّاحِدٌ مُّتَوَرِّعٌ اَشَدُّ عَلَى الشَّيْطَانِ مِنْ اَلْفِ عَابِدٍ، یعنی یوفقیه یعنی عالم د فقهې چې پرهیزګاره وی سخت دی پرشیطان تر زر عبادت کونکی یعنی چې فقهاء نه وی،، امام محمد بن الحسن الشیبانیؒ داسې وائی سه

تَفَقَّهْ فَاِنَّ الْفِقْهَ اَفْضَلُ قَائِدٍ ؛ اِلَى الْبِرِّ وَ التَّقْوٰى وَ اَعْدَلُ قَاصِدٍ

فقه حاصله کړه ولې چې فقه بهتر قائد دیٔ ؛ وښو کارو ته او پرهیزګاری ته او ښه عادل قاصد دَیٔ.

وَكُنْ كُلَّ يَوْمٍ مُّسْتَفِيْدًا ازِيَادَةً ؛ مِنَ الْفِقْهِ وَاسْبَحْ فِيْ بُحُوْرِ الْفَوَائِدِ

او ښه هر وَرځ اخستونکی د زیاتوب ؛ دعلم فقه څخه او غوټې وهه په دریابونو کښې دفوائدو یعنې علم فقه د فائدو څخه

فَاِنَّ فَقِيْهًا وَّاحِدًا مُّتَوَرِّعًا ؛ اَشَدُّ عَلَى الشَّيْطٰنِ مِنْ اَلْفِ عَابِدٍ

ولې د فقهې یوعالم چې پرهیزګاره وی ؛ سخت دی پرشیطان باندې تر زرو عبادت کونکو؛

## کرانو وَرُونړو اَوخوندو

که زه د فقهې شریفې فضائل اوفوائد اوښې کنړی په تفصیل سره وَ څیرم بو لوی دفتر به جُوړ سی،، نو ښه داده چې پر دغه جُزوی بیان یه بَس کړم؛ گفته اندشت نمونه خروار۔

## حضرت الامام اعظم ابوحنیفه رحمة الله علیه څرنګه شخصیت دَیٔ

پوهه سه: چې حضرت الامامؒ سراج الامت دیٔ،، او په اجتهاد کې امام الائمة دیٔ،، او په تقویٰ او په پرهیزګاری دخدایؒ د قدرت علامه دی،، او دتابعینو څخه پر صحیح روایت دَیٔ.





اصل نوم دده نُعمان دپلار نوم یې ثابت دی اَبُوحَنیفه،، دده کُنیت دی؛

## ،، سَبَبْ دَ ابُوحَنیفه دَ کُنیت،،

سبب یې دادی چې حنیفه دعراقیانو په ژبه مِشوانړی ته وَائی. خطیب بغدادی په تاریخ بغداد کښې وائی چې د حضرت الامام په درس ګاه کې به (۴۰۰) څلورسوه مشوانړی وقفی پرتې وې همیشه،، چې شاګردانو بې دده مبارکه څخه اوریدلې مسئلې په نوشته کولې

وقیل غیر ذالك فی وجه الکنیة.

خطیب بغدادی په تاریخ بغداد کی د یحیٰ بن نصر څخه روایت کړی دی چې حضرت الامامؒ د روژې په میاشت کې شپیته ختمه دقران کریم کوَله؛ اوداسې روایت یې هم کړی دی چې حضرت الامام په هغه خونه کښې چې دی په کښې وفات سو اوویازره واره یې دقرآن کریم ختم کړی وو،،

او خطیب مذکور د یحیٰ بن نصر څخه روایت کوی چې هغه بیا وائی چې ما د اسد بن عمرو څخه اوریدلی دی چې حضرت الامامؒ د ماخستن په اوداسه د سحار لمونځ څلویښت کاله کړی دیٔ.

وَكَانَ هُوَ قَدْ يَقْرَأُ الْقُرْاٰنَ كُلَّهٗ فِيْ رَكْعَةٍ وَّاحِدَةٍ انتهی،، دَ رولیش وَائی؛ چې دغه څلویښتو کلو دماخستن لمونځ کول،، مخالفینو د حضرت الامامؒ ترقسم قسم تنقید لاندې نیولی دَه،، بلکه دوی وائی چې داسې کار عادةً هیڅ امکان نه لری. سره د دی دغه موضوع دَ ردمختار اونورو کتابو د تواریخو ذکر کړی ده. عاصی دَ دوی د تنقید و بیان او دهغو په زړه پوری جَواب په شرح کښې د ابوالمنتهی چې پښتو ژبه عاصی جوړه کړی ده، او هم دا اوس په خلکو او طالبانو کښې ښه شهرت او مقبولیت لری ذکر کړی ده هغی شرحی ته رجوع وکړئ.

علاوه تردی دَرولیش په هغه شرحه کی د امام اعظمؒ نسب او مناقب او نور سوانح عمری په حواله د تاریخ د کتابو په ډیر تفصیل سره بیان کړی،، نو لازمه دَه چې حنیفیان او د حضرت الامام پر مذهب عاشقان په هغه ناموړی شرحه کښې د حضرت الامام په تاریخ او مناقبو څېل زړونه روښنا نه کړی،، او حضرت الامامؒ ۵۵ واره حج ته تَللی دیٔ؛ او یوه شپه یې په خونه کښې د کعبې شریفې په دوه رکعته کی ټوله قرآن مبارك ختم کړی دیٔ؛

اوعلامه حافظ النجم الغیطی وَايي چي حضرت الامام وويل چي مارب العزت ۹۹ واره په خوب وليدی نو زما په زړه کی دا سودا پیدا سوه که چیری دی خدای جَلّ شَانُه په خوب بیا وليدی نو به پوښتنه څنګه کوی چه په څه شی خلک ستا د عذابه څخه خلاصيږی په ورځ دقیامت، هغه وو چی سلم وار چی می په خوب وليدی هغه عرض می ورته وړاندی کی ربُّ العزت وفرمايل چی هرڅوک چی سحار او ماښام دغه تسبيح هميشه وايي زماد عذابه څخه به نجات ومومی تسبيح داده

سُبْحَانَ الْاَبَدِیِّ الْاَبَدِ، سُبْحَانَ الْوَاحِدِ الْاَحَدِ، سُبْحَانَ الْفَرْدِ الصَّمَدِ، سُبْحَانَ رَافِعِ السَّمَاءِ بِغَیْرِ عَمَدٍ، سُبْحَانَ مَنْ بَسَطَ الْاَرْضَ عَلٰی مَاءٍ جَمَدٍ، سُبْحَانَ مَنْ خَلَقَ الْخَلْقَ فَاَحْصَاهُمْ عَدَدًا، سُبْحَانَ مَنْ قَسَمَ الرِّزْقَ فَلَمْ يَنْسَ اَحَدًا، سُبْحَانَ الَّذِیْ لَمْ يَتَّخِذْ صَاحِبَةً وَّلَا وَلَدًا، سُبْحَانَ الَّذِیْ لَمْ يَلِدْ وَلَمْ يُوْلَدْ، وَلَمْ يَكُنْ لَّهٗ كُفُوًا اَحَدٌ، كذا فی هامش الدر المختار.

او بله خبره داده چی خطیب بغدادی سره ددی چی د لويو دښمنانو او طعن ويونکو څخه د حضرت الامام دی لکه چی تاريخ بغداد دد غه شاهد دی، وائی چی ما د ابی يحیٰ حمانی څخه واوريده هغه وائی چی ما د ابوحنيفه څخه واوريده چی ما يو شپه خوب وليدی او ډير يه وارخطا کړم، هغه دا چی ما قبر د آنحضرت صلی الله علیه وسلم سره شنی، نو زه بصری ته ورغلم هلته ما يو سړي امر کړی چی ته زما د خوب تعبير د رئيس المعبرين محمد بن سيرين څخه وپوښته. او ما ته ورښتيه هغه سړي د ابن سيرين څخه د نامو ړی خوب پوښتنه وکړه هغه ورته وويله چی دا خوب ليدونکی هرڅوک چی دی تعبير د خوب يه دا دی چی دغه سړی به اخبار او احادیث او شريعت د نبی علیه السلام په خلکو کښی نشر کوی عبد الله بن المبارک چی مسلّم محدث دی. او امام بخاری هم دده احاديث په خپل کتاب کښی راوړی دی. او د حضرت الامام مخلص شاگرد دی، هغه په مدح کی د حضرت الامام داسی وائي:

اللهم اغفر لمؤلفه ولكاتبه ولناشره — نشر: مکتبة القراءت والتجويد کوئټه





لَقَدْ زَانَ الْبِلَادُ وَمَنْ عَلَيْهَا ∴ اِمَامُ الْمُسْلِمِيْنَ اَبُوْحَنِيْفَه
بِاَحْكَامٍ وَاٰثَارٍ وَفِقْهٍ ∴ كَاٰيَاتِ الزَّبُوْرِ عَلَی الصَّحِيْفَه
فَمَا بِالْمَشْرِقَيْنِ لَهٗ نَظِيْرٌ ∴ وَلَا بِالْمَغْرِبَيْنِ وَلَا بِكُوْفَه
يَبِيْتُ مُشَمِّرًا سَهِرَ اللَّيَالِی ∴ وَصَامَ نَهَارَه لِلّٰهِ خِيْفَه
فَمَنْ كَاَبِیْ حَنِيْفَةَ فِیْ عُلَاه ∴ امام للخليقة والخليفه
رَئِيْتُ الْعَائِبِيْنَ لَهٗ سَفَاهًا ∴ خلاف الحق مع حجج ضعيفه
وكيف يحل ان يؤذی فقيهٌ ∴ لهٗ فی الارض اثارٌ شريفه
فقال ابن ادريس مقالاً ∴ صحيح النقل فی حكم لطيفه
بان الناس فی فقه عيال ∴ علی فقه الامام ابی حنيفه
فَلَعْنَةُ رَبِّنَا اَعْدَادَ رَمْلٍ ∴ علی من رد قول ابی حنيفه

پوه سه: چی مراد د عبد الله بن مبارک د ابن ادريس امام المذهب حضرت الامام محمد ابن ادريس الشافعی دی. او د عبد الله ابن المبارک مراد دا دی چی لعنت دی خدای پر هغه چاوی چی د حضرت الامام مذهب عنادًا او تعصبًا او جهلًا رده وي. لکه وهابيان او په نامه مُوَحّدين، او سلفيان، په موجوده عصر کښی نه هغه کسان چی د اجتهاد د لاری د امام اعظم مذهب رده وی.

کرانو او ريډونکو داوو مشت نمونه خروار بيان د مناقبو د حضرت امام الائمة سراج الامت ابوحنيفه رح که په پښتو ژبه تفصيل غواړي نو شرح د عاصی پر ابو المنتهی مطالعه کړه او که په عربی ژبه تفصيل غواړي بيا نو الانتصار لامام ائمة الامصار، تر پایه مطالعه کړه چی زړه دی روښان سی، وَمَا عَلَيْنَا اِلَّا الْبَلَاغ،

## ښهانه فائدهٔ او ضروری خبرتیا

پوه سه: چی مسئلی د فقه حنيفی پر دری قسمه دی ۱: اصول چی ظاهر الروايه به هم بولی هغه هغه مسئلی دی چی د اصحاب المذهب ابوحنيفه او ابو يوسف او محمد چی

دعلماء ثلثة په نامه دفقهی په کتابوکښې یادیږی،، څخه په روایت ثابت وی،، اودغه مسئلی دظاهرالروایة اواصول دی.

په دغوکتابوکی ذکرکیږی چې ټوله یه تصنیف د امام محمدؒ دی یعنی الجامع الکبیر،، والجامع الصغیر،، والزیادات،، والمبسوط، والسیر الکبیر والسیر الصغیر،، چونکه ددغو کتابو مسئلی حضرت الامام محمدؒ په روایت دمعتمدو راویا نو څخه ثابتی دی،، نو یه ئی ظاهرالروایت بولې: په یوه تاریخ کښې داسی راغلی دی،،چې یوه ورځ امام محمدؒ د یوه سړی څخه بل سړای ته کړه کیدی نو دا ټوله خپل کتابونه که دظاهرالروایة اوکه نورو پریوه اوښ یه بارکړی وه، دیوه مسلمان په دکان کی یو یهودی ناست ؤو داپر اوښ بارکتابونه چې یهودی و لیدله نو د مسلمان څخه پوښتنه وکړه چې داخومره ډیر کتابونه دي. اودا چاجوړکړي او تصنیف کړی دی!

مسلمان ورته وویل چې دا ټوله تصنیفونه د محمد بن الحسن الشیبانیؒ چې یهودی هم پیژندی نو یهودی وویل،، هذا محمدکم الاصغر فما بال محمدکم الاکبر اشهد ان لا اله الا الله و اشهد ان محمدا عبده ورسوله،،

اودویم نوادرالمسائل دی: اودا وهغو مسئلوته وائی چې د ائمه ثلاثه وو څخه مروی وی لکن په مذکوره کتابوکښې نه وی بلکه یاد امام محمدؒ په نوروکتابوکښې وی،، لکه،، هارونیات کیسانیات ،جرجانیات،، رُقیات، چونکه ددغوکتابو د مسائلو روایت دحضرت امام محمدؒ څخه په اسانید ومعتبرو وسره نه دی ثابتی سوی لکه دهغه نوروکتابو د مسئلو نو دی کبله غیرظاهرالروایة مسئلی بولی اودغه کتابونه هم کتب غیرظاهرة الروایة بولی. اویاد غیر څخه د امام محمدؒ مروی وی لکه،، کتاب المجردات دحسن بن زیادؒ،،

اودریم کتب الامالی دحضرت امام ابویوسفؒ **پوهسه:** چې امالی جمع د املاء ده، املاء داوه چې څه وخت به مدرس ودرس ته کښیناستی اوشاګردان به ټول راټول سول د هرطالب سره به خپل کاغذ، اوقلم اومشوانۍ وه نو استاذ چې به تقریر کاوه شاګردانو به سمدلاسه نوټ کاوه،، بیابه یه هغه تقاریر د استاذ سره جمع کړه نو د املاء به یه پرکښیښنو.





اودیرو هغو کتابوته امالی وَیَله. اودا کار په پخوانی زمانوکی عادت د محدثانو، اود فقهاوو اود اهل عربیت ټولو وو،،

ولی په هغو زمانوکی شوق اوذوق د علم ډیر وو په کرارکرار د علم شوق لږ ی دی نودا کار بیخی د بین ولاړی،، ۔ وهکذا یذهب الزمان علی العبر ؛ ویفنی العلم ویدرس الاثر ؛

**شکایت** دسنه ۱۴۰۰ هجری قمری په پښتنو طالبانوکی بیخی د علم د تحصیل پر وجه اتم او اکمل باندی شوق دمابین څخه تللی دی حتی ترسنه ۱۴۲۱ هجری قمری په هر کال کښی په زرو طالبان لنګوټې تړی او شهادت نامی ترلاسه کوي او مولوی صاحب یه بولی. لکن دامولویان د هدایة النحو اوکافیه یا ایساغوجي او نورالایضاح پر درس قدرت نه لری،، اوجاه طلب مدرسان څرنګه چې طالب وغواړی چې ما ته سند راکړه لنګوټه راوتړه هغه مدرس ورته وائی ډیر اعلی. والی الله المشتکی من صنیع هؤلآء العلمآء والطلباء.

# مُقَدِّمَةٌ جَلِيلَةٌ نَافِعَةٌ

**پوهسه:** چې دین سماوی اومذهب اسلامی، اوشرع نبویؐ. دوه جانبه یعنی دوه اړخه لری،، چې د دواړو زده کړه ضروری ده، اوبیا پر هغه باندی عمل واجب دی.

**اوله جنبه د عقائدو ده:** عقیده معنی د زړه یقین کول پر یو مضبوط باندی. لکه زموږ یقین چې اسمان پورته او مځکه کښته ده،، عقائد د اسلام د مثال په ډول یقین کول چې خدای سته او یو دی، اوقیامت حق دی،، رسول علیه السلام دخدای جل جلاله نبی برحق دی اودغه قسمه څخه نور عقائد ؛

**واوره:** چې د عقائدو سمول پر هر مؤمن نر او ښځې فرض عین دی. اوچه عقائد یه صحیح نه وی لمونځ روژه وغیره په ښه نه دی: او د عقائدو زده کړه دوه قسمه ده یو تفصیلی زده کړه یعنی د هر عقیدی جلا جلا زده کړه دا تفصیلی زده کړه د عقائدو د کتابو په ویلو سره کیږی. پخوا خو عوامو ته دا عذر وو چې کتابونه د عقائدو عربي دی

اوموږ په عربي نه پوهيږو. اوس اوس، په توفيق دخداىٔ دا عذر قطع سو، ولې چې عامي دعقائدو دوه کتابه يعني نورظلم او ابوالمنتهى په مورنۍ ژبه په پښتو کړه اوبه ښه آسانو الفاظو ترجمه وکړه او فراخې شرحې ی پروکړې، اوس نو صرف چې د پښتو خط ويلاى سي، په دغو دوو کتابو کښې خپل عقائد زده کولاى سي ان شآء الله تعالى، اوبله اجمالي زده کړم يه ده چې دهغه دپاره د اٰمَنْتُ بِاللهِ زده کړه سره د ترجمې کافي اوبس ده،

## د اٰمَنْتُ بِاللهِ ترجمه واوره!

**اٰمَنْتُ بِاللهِ** زما يقين دى پر خداى يعني چې خداى سته او يو دى شريك نه لري د دې عقيدې مخالف شوږلې کافران دي (۱) دهريان چې دهغو عقيده داده چې هيڅ خداى نسته او عالَم لره خالق نسته عالم په خپله پيدا دى، داده روسانو او کميونستانو مذهب دى. (۲) خداى خو سته لکن په ذات کې شريك لري يعني دوه خدايان دي. چې ددوى په عقيده يو خداى فائده مند شيان پيدا کوي، لکه انسانان پسونه، آسان، وغيره اوفائده مندې ميوې پيدا کوي لکه، انګور، انار، سيب، وغيره اودى خداىٔ ته دوى يزدان وائي. اوبل خداى ضرر مند شيان پيدا کوي لکه مار، لړم، لنډ وغيره. او يا زهري نباتات، اودى خداى ته دوى اَهرَمَن يا شيطان وائي دا مذهب د آتش فرستانو دى (۳) دا له خداى واحد بولي په ذات کې يعني شريك نه ورته وائي په ذات کې اما په عبادت کو لو کښې شريك ورته وائي يعني د بتانو عبادت هم حق بولي چې دې دلې ته مشرکان وائي. او په اصطلاح د پښتنو يه هندوان بولي.

**وَمَلٰٓئِكَتِهٖ** اوزما ايمان دى پر ملکو د خداى چې ملکى دخداى مخلوق دي لوړې دخداى نږدى لکه مشرکان چې وائي، او دا ملکى د ګناهو څخه معصوم مخلوق دي نه داسې دي لکه انسانانو نران او نه داسې دي لکه دانسانانو ښځې.

**فائده،** ملکى دخداى يو عظيم مخلوق دي بعض په آسمانونو کې دي، او بعض په ځمکه کښې دي، او بعض پر جنتو مقرر دي او بعض پر دوزخو





او بعضې د انسانانو د خير او شر پر ليکلو، او نور نور نظام د رب جَل وعَلا. عاصي وائي چې د ملکو ډېر والى اندازه ددې حديث نبوىٔ څخه معلوميږي چې خداى پاك پر برابر د کعبې شريفې په آسمانونو کښې يوه خونه جوړه کړې چې لوى والى يه وخداى ته معلوم دى، او دا خونه د آسمانو د پيدا کولو سره سمه پيدا سوې ده، او دې خونې ته بيت العزة وائي. او ودې خونې ته د زيارت او عبادت دپاره او زيا زره ملکى په اجازه د رب جلَّ وعَلا هره ورځ ورځي: نو هغه ملکوته چې اوله ورځ ورغلي دي بيا تر او سه بلکه تر قيامت نوبت نه دى رسيدلى. نو اندازه د ډېر والى تاسې ورته وکړئ:

**وَكُتُبِهٖ** او زما ايمان دى پر ټولو آسماني کتابو چې د خداى د خوا پر مختلفو نبيانو نازل سوي او هغوته ورکړه سوي وه يعني زموږ ايمان دى چې دا ټوله کتابونه د خداى د خوا څخه نازل سوي دي دپاره د هدايت د انسانانو که څه هم عمل زموږ مسلمانانو پر قرآن کريم محصور دئ. حديث نبوى، ټوله کتابونه د خداى يوسل او څلور دي. ۱۰۴

**وَرُسُلِهٖ** او زما ايمان دى پر ټولو رسولانو يعني انبياء عليهم السلام باندې که څه هم علماء د رسول او د نبي فرق سره کوي: چې رسول هغه دى چې نوى شريعت ورسره وي، چې ۳۱۳ دي او نبي عام دى که نوى شريعت ورسره وي او که په مخنې شريعت سره عمل کوي لکه انبياء د بني اسرائيلو عليهم السلام: لکن دلته رسول په معنې د مطلق نبي دي،

**فائده:** د انبياء عليهم السلام په عدد کښې مختلف حديثونه راغلي دي، نو ښه داده چې خاص عدد دى نه معلوموىء بلکه لکه زموږ پښتانه چې وائي يو لك څلير ويشت زره زيات وکم پيغمبران منم، معنىٰ دا چې يا زيات تر دغه عدد او يا کم تر هغه انبياء عليهم السلام منم،

**وَالْقَدْرِ خَيْرِهٖ وَشَرِّهٖ مِنَ اللهِ تَعَالٰى:** او ټوله تقدير او اندازه او پيدا کول که د خير وي او که د شر وي د خداى جل شانه د خوا په بولم او عقيده پر لرم، **پوهسه:** چې ضمير د خَيْرِهٖ وَشَرِّهٖ راجع وقدر ته دئ.

**سوال:** قدر او تقدير خو د خداى صفت دى او صفات د خداى ټوله خير دي، نو په قدر کښې شر کله ځائيږي!

جواب: خیر والی دقدر اوشر والی دَقدر په اعتبار دمقدور دئ. یعنی کاهی مقدور خیر وی لکه لمونځ روژه، حج وغیره. اوکاهی مقدور شر وی لکه زنا، لواطت، شراب خوری وغیره

وَالْبَعْثِ بَعْدَ الْمَوْتِ اوزما ایمان دی چې پس له مرګه ژوند سته یعنی په ورځ دَقیامت چې په هغه ژوند کې به مسلمانانو ته اوکافرانو ته دژوند داعمالو جزاء په جنت یا دوزخ ورکول کیږی. هنـد وَان الاخرت نه منی اوحکماءهم عالَم قدیم بولی وَاو چې دادنیا نه ختمیږی نوآخرت نشته.

پوه سَه: چې دعقائدو فاسد والی به یا مفضی وکفرته وی لکه چې تیره سوه. اویا به مفضی وبدعت اوهواته وی لکه عقائد د معتزله وو، کرامیه وو، شیعه وو اونورو. قال النبی صلی الله علیه وسلم: ستفرق اُمّتِیْ عَلیٰ ثَلٰث وَ سَبْعِیْنَ فِرقَةِ کُلُّهُم فِی النَّارِ اِلّا النّاجِیَة. ترجمه: ژر دی چې زما امت به پر درو اویا ووډلو وویشل سی چې ټول به په دوزخ کې وی مګر ناجیه، یعنی دغه اهل السنة وَالجماعة ډله، عُذر» ددی ټولو مذهبونو بیان دلته نه ځائیږی کې تفصیل غواړی» کتَابُ الْمِلَلِ وَالنِّحَل» د محمدبن عبدالکریم الشهرستانی مطالعه کړه چې په دوه جلده کښی دی،، وَمِنَ اللهِ التوفیق»

دوهمه جنبه دعملیاتو ده: چې ورته فروع وائی: ددی جَنبی دپاره علم فقه مجتهدینو وضع کړی دَه، دعلم فقه مختلف اصطلاحی دی چې په تنقیح اوتوضیح اوتلویح کې مفصل بیان موجود دی. دمبتدی دپاره دلته دغومره کافی ده چې علم فقه داعمالو څخه دمکلف بحث کوی پوه سه: چې داعمالو زده کړه په هغه قدر، چې مکلف په مبتلی وی فرض عین دی، مثلاً لمونځ، روژه، چې پر ټولو مسلمانانو نراوښځو فرض دی زده کړه یې سره دَشرطو اوارکانو پر ټولو فرض عین ده: اود زکوٰة اوحج مثلاً داحکامو زده کړه پر اغنیا ووفرض ده اودغه رنګه د تجارت دحلال اوحرام زده کړه پر تجارانو فرض ده. لکن زده کړه عامه ده لکې په کتابو کښی زده کوی اوکی دملا یانو څخه د پښتنو زده کوی»، اوپر ملایانو لازمه ده چې عوامو ته داوداسه لمانځه، روژی، یعنی دفرائضو خمسه وو احکام شرطونه واجبات سُنتونه، مستحبات په مفصل توګه په وار وار ورته بیان کړی.





لکن افسوس چه واعظان مُلایان دمساجدو هغه شیان وخلګوته بیانوی چې ددوئ په هیڅ درد د نه خوری.

اوچې دوی ورته ضرورت لری هرهغو احکاموته د هغو څخه په خوله پټه نیولی وی مثلاً دیوسف علیه السلام قصه که څه هم صحیح اوقرآنی ده. لکن هغه ځاته چې دهغه اوریدونکو لمونځ اوروژه نه وی زده څه فائده ورته کوی. پوه سَه: چې دفرضی کار په نه کولو سړی فاسق بلل کیږی لکه چې یو سړی لمونځ نه کوی اوروژه خوری وغیره اودغه رنګه دحرام کار په کولو سره لکه زنا، لواطت، وغیره سړی فاسق ګڼل کیږی. توبه کښل پر لازم دَه، اما کافر نه دی په مذهب کی داهل سُنتو: حتیٰ که بی توبی مړ سی ابدی دوزخ ورلره نسته، اوکه چیری دغه تارک دفرضو یا فاعل دحرامو دهغو دفرضیت څخه یا دحرمت څخه منکر وو بیانو کافر دی بالاتفاق. اوخوارج وائی که چیری مرتکب دکبائرو وو هغه کافر دی، که بیله توبی مړ سی ځای یه ابدی دوزخ دئ. اومُعتزله وائی نه مؤمن دی اونه کافر مګر ځای یه ابدی دوزخ دی چې بی له توبی مړ سی" ددی مبحث تحقیق په شرح کښی دالبو المنتهی وګوری چې عاصی تصنیف کړی ده.. داوه هغه لنډ مقدمه دَشرح دنور الایضاح چې هم دغومره قدر دمبتد یانو دحال سره برابر دَه.

همداوس درویش محمد عبیدُ الله الحنیفی السنی» السلیمانخیلی الایوبی الافغانی الکندهاری دنور الایضاح په پښتو شرحه شروع کوی»، وَمَا التوفیق اِلّا مِنَ اللهِ اللّهم وفقنی لاختتام هـذا الشرح کما وفقتنی لشروعها بالخیر والعافیه والصحة وَاللهُ عَلیٰ کل شئ قدیر» واجعَله لوجهك الکریم

وَالهمنی الصواب فی کل باب» الحمد لله اولاً واخیرًا

والصلوٰة والسلام علی رسوله ابدا وسرمدًا

وعلیٰ اله وصحبه الیوم وغدًا وبعد ذالك ابدًا

قَالَ المصنفؒ

## بِسۡمِ اللّٰہِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِیۡمِ

شروع کوم دپاره د تبرك په نامه دخدایؒ چې ډیر احسان کوونکی په دُنیا کښې د مسلمانانو سره او د کافرانو سره په روزی اورزق ورکولو سره وغیره . او ډیر مهربانه دی په آخرت کښې پر مسلمانانو : سعدی شیرازیؒ سه ای کریمی که ازخزانۀ غیب : گبرو ترسا وظیفهٔ خور داری
دوستان را کجا کنی محروم : توکه با دشمنان نظر داری .

**پوښتنه:** څه سبب دی چې ټوله مصنفین حضرات د خپلو کتابو په اول کښې بِسۡمِ الله وائی **جواب** : اول موافقت د قرآن کریم سره کوی چې دهغه په شروع کی بِسۡمِ الله وجود لری **دوهم:** متأخرین علماء د خپلو سلفو صالحینو پسې اقتداء کوی چې د سلفو هم دا غه عادت وو « **او دریم** دا چې امام نوویؒ په شرح کی د مُسلم دا سی روایت کوی چې حضرت رسول الله صلی الله عَلیه وَسَلم دا سی فرمائلی دی « كُلُّ اَمۡرٍ ذِیۡ بَالٍ لَمۡ یُبۡدَأ فِیۡهِ بِاِسۡمِ اللّٰهِ فَهُوَ اَبۡتَرُ ، معنیٰ دا چې هر کار چې د شرف والا وی چې شروع ونه کړی سی په هغه کار کی په نامه دخدایؒ هغه کار به بې برکته وی «

## دبسم الله احکام د فقهی دَلاری دادی

۱ وجوب چې فرضیت ته هم شامل دی « په ابتداء کی د ذبح دَحیوان که څه پوره بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِیۡمِ واجب نه ده بلکه منقول بِاِسۡمِ اللّٰهِ اَللّٰهُ اَکۡبَرُ « طحطاوی ص۲ .

**او په ابتداء دَ ویشتلو د ښکار** « او په ابتداء کی د ښکاری سپی یا باز داستولو و ښکار ته او په ابتداء کښې د فاتحې د هر رکعت لکن دا مذهب ضعیف دی صحیح دا ده چې سنت دی « ردالمختار

۲ **سُنتیت** : په شروع د اودا سه کی په اِبتداء د خوراك کی « په ابتداء کی د څښلو « په ابتداء کی د هر امر ذی بال لکه قرائت د قرآن کریم « تدریس « د دینی کتابو د مطالعې په شروع کی « او د جماع په وخت کی چې پر تگا بن په نروی خلاص کړی « ردالمحتار « دروليس «

۳ **استحباب** « په ما بین د فاتحې او سُورت « وَالنَّاسُ عَنۡهُ غَافِلُوۡنَ « ردالمحتار

۴ **اباحت** اباحت په ابتداء کی دَ ولاړی ، ناستی ، تگ وغیره « رد «





۵ **کراهیت** : په ځای د ناپاکی کی لکه مکان ، پاخانه « په وخت د استعمال د هر بد بُوی شی لکه چلم ، نسوار ، سگریټ ، پیاز ، گندنه « هوږه ، وغیره . او په اول کی د سورة براءة « رد ، طحطاوی

۶ **حُرمت** : په وخت کښې د حرام کار کولو د بِسۡمِ الله ویل حرام دی « لکه زنا . لواطت ، شراب ، د مغصوب مال خوړلو په وخت کی یا دَغلا د مال خوړلو په وخت کښې هم حرام دی . په وخت د جنابت کی که په نیت د قرآن وویل حرام دیٔ او که په قصد د ذکر وو بیا پروانه لری .

**مسئله** : که سړی بِسۡمِ الله وَیل په وخت کی د فعل حرام لکه زنا روا بولله نو هغه سړی کافر سو . او کی روا نه بولله مگر وی ویله . نو دا معصیت دی . توبه پر هغه لازمه ده .
وَتمَام هذا المبحث فی الطحطاوی « شرح نُورالایضاح ، ص۲

## دبسمِ الله په باره کښی بعض په زړه پوری معلومات

**دَ الله** لفظ نوم دی د ذات دخدایؒ او عربی لفظ دیٔ . او دا هم مذهب دی د امام اعظمؒ ابوحنیفهؒ او د محمد بن الحسن الشیبانیؒ او د حضرت محمد ابن ادریس الشافعیؒ او د امام النحویین خلیل ابن احمد الفراهیدیؒ «

**اودا زیری هم واوری** « چې حضرت الامام محمدؒ د حضرت الامام ابوحنیفهؒ څخه روایت کړی دی چې اَللّٰهُ اسم اعظم شریف دیٔ ، او فقیه ابوجعفر الطحاوی وائی چې دا مذهب د ډیرو علماءو او د اکثرو صوفیا ی کرامو هم دیٔ . اوتردی لوی ذکر نسته « رد محتار ج۱ ص۵

او درویش باگناه وائی چې ما د خپل بعض تجربه والاوو استاذانو څخه اوریدلی دی « چې ورد کامل د دی اسم پاك ۵۰۰۰ یعنی پنځه لکه واره دی « په یوه اعتکاف کی سره دَ روژی « او د یو شیخ کامل عامل په اجازه « او روزانه وظیفه یې ۲۳۶۰ یعنی دوه زره او دری سوه شپیته واره ده هم په اجازه د شیخ «

**تنبیه** : دا روزانه عدد یې د دی څخه معلوم کړی دیٔ . چې د دغه مبارك اسم په قرآن کی په اسم ظاهر او یا ضمیر سره دغونه وارونه ذکر سوی دی « او که چاته یو مُهم سخت کار چې شرعًا جواز لری ورسته پینځ سوی نوم ماخستن تر لما نځه وروسته دی دا اسم مُبارك

۲۳۲۰ واره مخ پرقبله ووائی. او بیادی دخدای پاك څخه خپل دمُهم حل وَغواړي.
اوودی وظیفی ته دی تردروشپو پوري دوام ورکړي اِنْ شَآءَ اللّٰهُ الْکَرِیْمُ، هغه کارئی خدای حل کړی، اودپوره بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِیْمِ وظیفه روزمره ۷۸۲ واره ده چی داپه حساب دَاَبْجَد دبِسْمِ اللّٰهِ عدد دی. اَلرَّحْمٰنُ عربی دی اواسم صفت دی، ولی چی معنی د صفت د رحمت وَرسره ملحوظ ده اومعنی یه داده چی مهربانه په دنیا کی پر کافرانو اومسلمانانو، ددنیائی نعمتوپه ورکولوسره، سعدی

ای کریمی که ازخزانهٔ غیب. گبروترسا وظیفه خورداری: دوستان راکجاکنی محروم: توکه بادشمنان نظرداری.

پوښتنه: په بیضاوی اونوروکتابوکی وَائی چی درحمان اطلاق پرماسوی دخدائ ناروادی، اوسره ددی چی یوستر شاعِرد پښتوژبی چی په عَبْدُالرَّحْمٰن بابا مشهوردئ. دخپلوغزلوپه پای کی وائی زه رحمان،
بعض مُلایان وَائی چی عبد الرحمٰن بابا خو یوشاعِرسړی وو ناخبره داحکامو څخه نود هغه و قول نه اعتبارنشته، د الجواب غلط دی ولی چی دَتاریخ ورق د عَبْدُالرَّحْمٰن بابا په بنه عالِم سړی دی بلکه اصل جواب دادی چی درد مختار په جلد ۱ ص ۶ کی وائی چی مخصوص په خدائ لفظ د الرَّحْمٰن دی یعنی چی الف ولام دتعریف ورسره وی. اوبوازی رحمان و غیرته دخدائ ویل روادي.
اَلرَّحِیْمِ: هم دخدائ اسم صفت دی اومعنی یه داده چی ورکونکی دنعمتو ومؤمنانوته په جنت کی، دَتصوفو په کتابوکښی راغلی دي چی روزانه وظیفه د الرحمٰنُ ۲۹۸ سبب د فراخی درزق دی په دنیاکی اووظیفه د، اَلرَّحِیم ۲۵۸ سبب دډیر والی دَنعمتو داخرت دی، وَالعلمُ عِندَ اللّٰهِ، په حدیث مبارك کی راغلی دی چی آنحضرت صلی الله علیه وسلم، وفرمایله چی کلیٔ یاچابی دقرآن شریف. بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِیْمِ ده ددی څخه دا حکم ښکاریږی چی مستحب ده چی دتلاوت دقرآن کریم شروع دي په بِسْمِ اللّٰه سره یعنی پس له اَعُوْذُ بِاللّٰهِ څخه،
ابن عباسؓ روایت کړی دی چی رسول کریم صلی الله علیه وسلم وفیله چی کوم وخت چی یو مُعلّم





وهلك ته ووائی چی ووایه بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِیْمِ هغه مُتعلم هم بِسْمِ اللّٰه ووائی خدای پاك لیکی براءت دَنجات ددوزخ دهغه مُتعلم پرنامه اودهغه مور او پلار او مُعلم پرنامه،
تفسیر یعقوب چرخی ص ۶،
پوښتنه، آیاد بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِیْمِ په وَیلوسره کبیره گناهونه هم بخښل کیږی اوکه څرنگه! جواب: کتابونه دشروحو داحادیثو شریفه وو کښی وَائی چی هرښه عمل یاقول چی په حَدیث شریف کی وعده د بخښنی دگناهو ورکړه سوی وی، مراد دهغه څخه صغیره گناهونه دی. اودگناه کبیری د بخښنی یاد تخفیف امید شته.
سوال: دکبیری گناه بخښنه په څه کیږی جواب: داخلاصه دکه توبه سره ولی چی په حَدیث پاك کی راغلی دی، اَلتَّائِبُ مِنَ الذَّنْبِ کَمَنْ لَاذَنْبَ لَهٗ.
تنبیه: توبه دخولی کار نه دی فقط بلکه توبه اول پښیمانی دزړه غواړي په اخلاص اود آینده دپاره تینګ قصد غواړي چی بیابه دغه گناه نه کوم اودتیرو سوو گناهو خدای پاك ته عذرویل غواړي، اوهغه عمل چی قضا لری لکه لمونځ روژه وغیره دهغه به قضاء راوړی، اوکی دخلګومالونه په غلا یاغصب یاخیانت خوړلی وه یابه هغه تو له اداکوی یابه دهغو څخه عفوه غواړي.
مسئله: دحضرت الامام الصائبؒ په مَذهب کی عفوا ود حق بخښنه اجمالاً کافی ده مثلاً که یوسړی دیو چا مال په غلا یا په خیانت وغیره خوړلی وي اودی پوهیږی که زه تفصیلاً ورته ووایم عفوه نه راته کوی نوورته ووائي چی فلانیه حق به سره بخښو هغه ورته ووائي چی ما خپل حق در بخښلی دی په دغه اجمالی بخښنه هم هغه سړي یعنی سارق مثلاً د مسروق منه د حق څخه خلاصیږی،
دپښتنو خبرو راز، پوښتنه: چی یوسړي چی په پښتنو کی ناجوړی وی، چی قریب الموت دخلکو په خیال کی ورسی نوهرعائد یعنی دده پوښتنی ته چی راځی داورته وائی چی فلانیه وَتولو مسلمانانوته حق پَل که یعنی حق وروبخښه. چونکه ناجوړی په سبب دناجوړی یه زړه نرم سوی وی، نوهغه عائدینو ته داسی وائی چی ما وَتولو مسلمانانوته حق بخښلی دئ.

نوېه دی کی عفو عمومی اجمالی راسی» نو بناءً علی مذهب الامام ؒ تول خلک د مړی د حقوق څخه خلاصیږی.

**اِستفهام** پوه کول د ځان، د قرآن د هر سورت په سر کښی سِوا د سورت براءت بسم الله سته آیا دغه بسم الله د هر سورت جزء ده او که نه **جواب** د حضرت امام شافعیؒ په مذهب کښی د هر سورت جزء ده» اما امام اعظمؒ په دی باره کښی واضح خبره نه ده کړی خو بیا هم د امام اعظمؒ د مذهب لوړ رتبه امامان وائی چی بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِیْمِ د قرآن یو مستقل جزء او ایت دی او د هر سورت جزء نه ده، او د هر سورت په اول کی د قرآن مبارک د سورتو د جلا کولو د پاره او هم د تبرک د پاره ده،، تفسیر بیضاوی ص۳

**سوال**: که څوک د بسم الله د قرانیت څخه منکر سی باید هغه سړی کافر وګڼل سی. او سره د دی فقهاءؒ وائی چی دغه سړی کافر نه دی» **جواب**: د عقائدو او فقهی په کتابو کی مسئله داسی ده چی هغه ایت چی اتفاقاً قرآن وی د هغه منکر کافر دی،، بسم اللّٰه شریفه اتفاقی قرآن نه ده ولی چی امام مالکؒ بِسْمِ اللّٰه قرآن نه بولی بلکه ذکر یې بولی.

**پوښتنه**! جنب او حائض نفساء ښځی ته ولی په مذهب کی د امام اعظم صاحبؒ ویل د بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِیْمِ ویل روا دی او سره د دی د غه مذکوره کسان د تلاوت څخه د قرآن کریم شرعاً منع دي **جواب** د غو کسانو ته ویل د بِسْمِ اللّٰه په نیت د تبرک روا دی،، لکه چی دوډی خوری یا او به چښی بِسْمِ اللّٰه و وائی، نه په نیت د تلاوت د قرآن» خزینه ص۸۲

**سوال**: دغه نامه وړه کسانو ته ماسوی د قرآن کریم د نورو اذکارو لکه لَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ» سُبْحَانَ اللّٰهِ وَ بِحَمْدِهٖ» او نور د د غه قسمه اذکار ویل روا دی. **جواب**، هو په اتفاق د ټولو مذاهبو روادی» او د غه رنګه د غو کسانو ته» اَلسَّلَامُ عَلَیْکُمْ وچا ته ویل یا وَ عَلَیْکُمُ السَّلَامُ د چا د سلام په جواب کی ویل روادی» بلکه اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعٰلَمِیْنَ په قصد د شکر د نعمت نه په د تلاوت روادی خزینه ص۸۲.

کتبه احقر الوری فضل الحق حقانی استاد جامعه تجوید القرآن سرکی روډ کوئټه.





# د پښتنو بد عادت

د پښتنو حتیٰ عوام خو څه کوی د طالبانو هم دا عادت دی چی جُنب سی یا حمام یا بل ځای ته د غسل ځی نو یه پټه و پرسر اچولی وی محکی ته ګوری،، چی د لیری بل سړی په دی پوهیږی چی دا سړی جنب دی نو چاته سلام وایی او نه د چا سلام جواب ورکوی دا طریقه غلطه ده د **تحفه نصائح** چی یو فارسی کتاب دی دا غلطه بنوونه ده، تاسی فکر وکړی په حدیث شریف کی چی بخاری او نور کتابونه یې روایت کوی،، د ابو هریرهؓ دی وایی زه یو ورځ جنب وم او د غسل د پاره روان یم»

چی نا ګاه آنحضرت صلی اللّٰه علیه وسلم په مخه راغلی او تر لاس یې ونیو لم خبری راسره کوی. زه حیران پاته سوم چی ستا صورت خو نا پاکه دی او رسول کریم صلی اللّٰه علیه وسلم تر لاس نیولی یم خبری درسره کوی،، خیر په دی وخت کی یو بل سړی پیدا سو او رسول اللّٰه صلی اللّٰه علیه وسلم زما لاس ایله کړی. او د هغه سړی سره په خبرو سو زه پټ ولاړم او غسل می وکړی او بیرته راغلم آنحضرت صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّم راته وویل چیری په پټه ولاړی ما ورته وویل چی زه خو جنوب وم، رسول کریم صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّم د تعجب په لهجه داسی فرمائیله:

سُبْحَانَ اللّٰهِ اِنَّ الْمُؤْمِنَ لَا یُنْجَسُ»

او تحفه نصائح وائی چی جُنب سوی، نه به لمر ته ګوری او نه سپوږمی او نه د استاذ ومخ ته» خیر دا یو جمله معترضه وه د خلګو د پوه کولو د پاره» د اسرار مخزونه په ص۸۵ کی وائی که څوک دیوه جابر حاکم دربار ته ورتلی او ځندی بیریدی نو پنځوس۵۰ واره دی بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِیْمِ ووائی او بر ظالم د داخل سی هغه ظالم به بر مهربا نه سی بلکه د ویونکی سړی به پر ظالم هیبت پریوځی او د شر څخه بی په امان سی» او کوم کار چی درلودی هغه به ور اجراء کړی:

او د غه رنګه که څوک دیوه پیریانی یا بیهوشه سړی په غوږ کی څلویښت۴۰ واره بسم اللّٰه شریفه ووائی پیریان بی ایله کی او یا بیهوشی بی ولاړه سی» او د غه رنګه که څوک په وخت د بیدیدو کی شل واره بسم اللّٰه شریفه ووائی په دغه شپه کی به د شیطان، پیری، غله» د ناببره مرګ څخه

بلکه دهرآفت به په امان وی:
اوکه یوسَړی بسم الله شریفه هره ورځ ډیره وائي رزق بی خدای پاك فراخه کړو اوبه اسانی به رزق ورر سیږی،خ ص۸۶

اوکه خوك دیکشنبی په ورځ د لمر راختلو په وخت کی مخ پر قبله کښینی او بسم الله شریفه په عدد درسولانو ءم چی ۳۱۳ دی ووائی او نسل واره درود شریف هم ووائی خدای یونابره رزق ورکړی، اودغرنګه که یوسَړی بسم الله شریفه په حساب ابجد یعنی ۷۸۶ واره په ښه اخلاص ووائی دهرحاجت دپاره چی شرعًا رَوا وی، خدای پاك بی هغه حاجت پوره کړی اوکه د ظالمانو یا د ښمنانو څخه بیریږی خدایٔ به هغه ځندی دفع کړی، اوکه دیوځا راجلبول یه مقصود وی هغه سړی به ورته راسی، اوکه دتجارت دګټی دپاره یه ووائي تجارت به یه ډیره ګټه ورته وکړي»

حضرت الامام ابوحامد محمد الغزالی په احیاء العلوم کی وائی،"که څوك دتسپی یا دوَرځی بسم الله شریفه ۱۲۰۰۰ دوولس زره واره په دی ترتیب ووائی چی اول اودس تازه کړي یاغسل وکړي او پاکی جامی واغوندی اوپه پاك ځای کښی کښینی نوزره واره چی بسم پوره کړي، دوه رکعته نفل دِ وکړی اوبیا دِ لاس پورته کړی حمد دخدایٔ او درود دی پر علیه السلام ووائی اوخپل حاجت دی دخدای څخه وغواړي. اوبیادی په قرائت د بسم الله شروع وکړی زره واره چی پوره سوه بیا دی دوه رکعته نفل وروسته حمد اودرود ووائی. اوبیا خپل حاجت دخدایٔ څخه وغواړي دغه دَول تراخیر پوری د ۱۲۰۰۰ هغه حاجت بی رب جل شانه وعظمت قدرته په لنډه موده کښی ورپوره کړي، که هرڅو ګران کاروی،خ ص۸۶.

اوپه حدیث شریف کښی هم راغلی دی چی نه ریږی هغه خواست چی په اول کښی ئی بسم الله شریفه وویل سی کذا فی تفسیر الفاتحة»

اوکه څوك همیشه توب وکړی د بسم الله شریفی پر وَیلو هره ورځ ۷۸۶ واره خدایٔ به وهغه انسانان فرمانبرداره وګرځوی لکن دا طرز په اجازه سره اره لري. دتفسیر کبیر په اول کی دابوهریرهٔ په روایت داسی راغلی دی چی رسول الله صَلَّی اللّهُ عَلَیْهِ وسلم ویه ته وویل





"یَا اَبَا هُرَیْرَةَ اِذَا تَوَضَّأْتَ: چی ته اودس تازه کوی، فَقُلْ بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِیْمِ: ته ووایه بسم الله شریفه فَاِنَّ حَفَظَتَكَ ، پس په تحقیق ستا ساتونکی ملکی. لَا تَسْتَرِیْحُ اَنْ تَکْتُبَ لَكَ الْحَسَنَاتِ» استراحت نه کوی چی تاته نوشته کوی نیکی: حَتّٰی تَفْرُغَ: ترهغوچي ته اوداسه څخه فارغ کیږی.

وَاِذَا غَشِیْتَ اَهْلَكَ: اوچی ته ورځې خپلی ماینی ته دجماع دپاره فَقُلْ بِسْمِ اللّٰهِ» نوته بسم الله شریفه ووایه» فَاِنَّ حَفَظَتَكَ یَکْتُبُوْنَ لَكَ الْحَسَنَات» په تحقیق چی ستا ساتونکی ملکی ستا نیکی نوشته کوی» حَتّٰی تَغْتَسِلَ مِنَ الْجَنَابَةِ: ترڅوچي ته غسل دجنابت څخه کوی»

درویش محمد عُبَیْدُ الله الاویلی الکندهاری المسلما غخیلی وائی: چی دا ووجوجزئی معلومات دفقیر په خواصو کښی او احکامو کښی د بسم الله» اما دا د درویش معلومات مشت نمونه خروار دي اودي درویش ته چی هرڅو ډیر ډیر نعمتونه خدایٔ جل جلاله ورکړی دی په برکت د ورسته اذکارو او وظائفو» سعدی شیرازیٔ وائی:

ګلی ناچیز در حمام روزی ؛ رسید ز دستِ محبوبی بدستم ؛ بدو گفتم که مشکی یا عنبری ؛ که از بوئی دلاویزی تو مستم
بگفتا من گلی ناچیز بودم ؛ ولکن مدتی با گل نشستم ؛ جمال همنشین در من اثر کرد ؛ وگرمن همان خاکی که بودم ؛

اَللّٰهُمَّ وَفِّقْنِی لِمَا تُحِبُّ وَتَرْضٰی وَاجْعَلِ الْاٰخِرَتِی خَیْرًا مِّنَ الْاُوْلٰی
وَلَا تَقْطَعْ نِعْمَتَكَ عَنِّی بِعِصْیَانِی - بَلْ اِغْفِرْ سَیِّاٰتِی بِفَضْلِكَ الْعَمِیْمِ
وَمَا ذَالِكَ عَلَیْكَ یَا اَللّٰهُ بِعَزِیْزٍ وَاخْتِمْ لِی بِالْخَیْرِ وَالسَّعَادَةِ وَالْاِیْمَانِ
بِجَاهِ نَبِیِّكَ عَلَیْهِ الصَّلٰوةُ وَالسَّلَامُ» وَجَنِّبْنِی مِنْ جَمِیْعِ
الْمَعَاصِی وَالْاٰثَامِ بِحُرْمَةِ الْقُرْاٰنِ.

النَّاشر: مَکْتَبَةُ الْقِرَاءَتِ وَالتَّجْوِیْدِ وحقّانی تقاریر سنٹر
کاسی روڈ، شالدره، کوئٹه نزد مسجد نور،

قَالَ المُصَنِّفُ **اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعٰلَمِيْنَ** ټوله ثنا او صفت خاص خدایٔ پاك لره دی
وئیلی دی مصنف

چې رب یعنی سا تونکی دَ ټولو مخلوقاتو دے. د اَلْ معنیٰ ټول دَ **حَمد** معنیٰ په لغت عربۍ کی پروجه د تعظیم، په ښو الفاظو ښکلا یا بناښته افعالو ستاینه ده.

**پوه سه:** چې د دی توری چې پروجه د تعظیم، پسخند په ځاوهل خارج سو، او په قید د، په ښو الفاظو، دا فائده ده چې حمد په ژبه پوری خاص دی، او په ښائسته افعالو اشاره وده ته ده چې حمد په عمل او فعل اختیاری پوری خاص دی، ولې چې ظاهره دا افعالو غیر اختیاری عملونه مراد دی. نو حمد په دی سبب چې په ژبه پوری خاص دی، تر شکر خاص دی، ولې چې شکر تعظیم کول دی د احسان کونکی که په ژبه وی او که په اندامو وی لکه دیوه منعم خدمت کول، او یا په زړه وی لکه د منعم سره په زړه کښی اخلاص او محبت کول.

او شکر په دی سبب سره چې په نعمت پوری مربوط دی تر حمد خاص دی، ولې حمد گاهی پر نعمت لکه یوسړی ووائی چې الحمد لله ما ته خدایٔ سنه رزق فراخه راکړی دیٔ. او گاهی پر نعمت نه وی لکه څوك ووائی چې خدایٔ دلوی علم او قدرت ښښتن دی، نو متعلق د حمد عام دی که نعمت وی او که نه وی، او ځای یه خاص ژبه ده او شکر بالعکس دیٔ یعنی ځای یه عام دی که ژبه وی او که اعضاوی او که زړه وی، او متعلق یه خاص نعمت دیٔ نو دی ته په اصطلاح عموم و خصوص من وجهٍ وائی، یعنی هر یو حمد او شکر سره په یو وجه عام دی او په بله وجه خاص دیٔ.

مَدح تر حمد په دی سبب عام دَه چې فعل اختیاری نه غواړی، لکه چې وییل کیږی، مَدَحْتُ اللؤلؤَ عَلٰی صَفَائِهَا، زه مدح کوم د ملغلری پر صفا والی باندی، یا داسی چې د فلانی سړی سنه مخ او قد و قامت دیٔ،

**پوه سه** چې د حَمد او شکر او مدح په تفصیل سره په تفسیر بیضاوی او تفسیر کشاف او نورو کتابو کی د تفاسیر مذکور دی. بلکه په میر ایساغوجی او په شرح مطالع کښی په دی باره کی په زړه پوری معلومات ستهٔ،





## الحمد لله دَ فقهی دلاری څخه

الحمد لله گاهی واجب وی لکه دَ لمانځه په دوه رکعتو کی، او گاهی سُنت وی لکه په خطبه کی د جُمعی د لمانځه یا د اختر د لمانځه او د مخه تر دُعا، او پس له خوړکه او څښلکه، او ورسته تر پرنجلو، او گاهی مباح وی لکه بی سببه الحمدُ لله وییل، او گاهی مستحب وی لکه په اخیر کی د دُعا د درود د مخه، او گاهی مکروه وی لکه پس د خوړلو د حرام شی، بلکه فتاوی بزازیه اختلاف په کفر کښی ذکر کړی دیٔ، او گاهی حرام وی لکه د بولو او غولو په ځای کښی حمد وییل، او یا چې غلیظه عورت یه لڅ وی، رَبِّ د رب معنیٰ ده تربیه ورکوونکی او ساتونکی، او کمال ته رسوونکی، دا د خدای پاك اسم صفت دیٔ او لفظ د اَلْ په اَلْعٰلَمِیْن کی د پاره د استغراق دی یعنی ټوله. او عَالَمِیْن جمع د عالم دَه، عالَم په لغت کی علامه ته وائیٔ، لکه دود علامه ده د اور، او په اصطلاح کی هر هغه شیٔ دی چې غیر او جلا د خدایٔ څخه وی، او په دی سبب عالم ورته وائیٔ چې دا ټوله شیان پر وجود دَ خدایٔ پاك علامه او دلیل دی، سعدی شیرازیٔ وائیٔ:

برگ درختان سبز در نظر هوشیار: هر ورقی دفتریست معرفتِ کردگار، دیره ښه وینا ده،

**فائده:** عالَم پر دوه قسمه دیٔ (۱) **عَالَمِ عُلوی:** یعنی پورته عالَم لکه اسمانونه ملائکه جنتونه (۲) **عالَمِ سُفلی:** یعنی کښته عالم لکه مځکه بلکه څلور سره عناصر مځکه، او به، هوا، اور، انسانان بلکه ټوله حیوانان نباتات، معدنیات، د دی ټولو خالق او کمال ته رسوونکی پوازی، او یوازی خدای جل شانه دیٔ. بل څوك ورسره شریك نسته په حقیقت کی **پوه سه:** چې دَ ټول عالَم شمیر او حساب او په تفصیل سره د هغوی حالات بی خدایٔ بل هیڅ چا ته نه دی معلوم، ایت کریمه: وَلَا يَعْلَمُ جُنُوْدَ رَبِّكَ اِلَّا هُوَ، یعنی خبر نه دی په لښکر دَ خدایٔ یعنی په مخلوق د خدایٔ مگر خدایٔ،

**سَوال:** علماء حضراتٌ څرنگه ترجمه د اَلْحَمْدُ لِلّٰه داسی کوی چې ټوله ثنا او صفت خاص خدایٔ پاك لره دی او سره د دی چې د مخلوق صفت هم کیږی او روا دیٔ، لکه چې یو سړی ووائیٔ فلانی سنه عالِم او زاهد او متقی او سخی او لمونځ گذاره او غازی دی او نور هم ډیر ثنا و صفت هم د

مخلوق کیږي. **جَوَابُ** دغه مذکوره حَمدُونه د مخلوق هم په حَقیقت کښې راجع وخدایٔ جَل سُلطانَهٗ ته دی ولی قدرت ورکوونکی پرِدَغو صفا توحمیدَهٔ وو یَا افعالو بنا ئسته وو هم خدای پاک دیٔ. حَق چه صاحِب کشاف چی معتزلی دی او د معتزلوو مذهب دادی چې خالق دافعالو بنده ګانو خدائ نه دی بلکه بنده ګان دی هم تولهٔ محامِد په خدائ پوری خاص بُولی ولې چې اقدار او تمکین دَدَغو افعَالو چې بنده یه کوی. ورکوونکی هم خدای جَل شانه دیٔ.

**مسَـــئله**: حَمَد دخدائ جَل شانه پرهر نعمت پُربنده واجب دیٔ. اوحمد اوشکر وَیلٔ دنعمت الهی سَبَب د زیات وَالی دَهغه نعمت ګرځی،، قرآن کریم: وَلَئِنْ شَكَرْتُمْ لَأَزِيدَنَّكُمْ" که تاسی شکر د نعمت الهی وَوَایاست زه به نعمت دِرته زیات کمُ؛

**فـــا یِـدہ**: ترټولو لوئ نعمت او بهترین نعمت د مسـلمانانو دپَاره ایمان او اسلام دی،، چې هم په دې دنیا او هم پـه اخرت کښې نعمت دی او د نورو نعمتونو سبب دی" امَا په دُنیا کښې،، سبب دادی چې اکثر عذابونه دُدنیا لکه دلاس پری کیده پرغلا، پـه ډبرو سنګساره وَل پرزنا، او قصاصول پرقتل، اونور، داسـلام پرمخالفت بناء دی" وبس" نوکه سَری اسلامی احکام پرځان جاری کړی دَدِی عذابونو څخه به امن کښې وی،، اِمَّاپه اٰخِرت کی خو معلومه خبره ده چې دوزخ او د دوزخ عذابُونه داسـلام پرخلاف کولو بناء دی، چنانچه کتاب اِلهی او احادیث نبوی ص پروی خبرو شاهدان دی،،

**پوښـــتنَه**: څه سبب دَی چې مصنفین حضرات دخپلو کتابو رسالو پـه شروع کی حمدوائی

**جَـوابُ**: موافقت دقرآن کریم سره کوی، او پـه سلف صالحینو پسی اقتداء کوی،، او بل پـه حدیث شریف سره چې روایت یه ابن ماجهٔ او امام نووئ او نورامامانو کړی دیٔ رسول کریم صَلَّی اللّٰهُ عَلَیهِ وَسَلَّم فرمَائی: كُلُّ أَمْرٍ ذِي بَالٍ: هرکارچې شرافت دَرلوونکی وی لَمْ يُبْدَأْ فِيهِ بِحَمْدِ اللهِ،، چې شـروع و نه کړو سی پـه کارکې په حَمَد د خدائ،، فَهُوَ أَبْتَرُ، هغه کاربه قطع یعنی بی برکته بوی،، او دا خو ښـتیا خبره ده چې تصنیف دکتابو دشرف کار دیٔ.

**سَوال**: ورته حدیث د بِسْمِ اللّٰه په باره کښې هم راغلی دی کما مَرّ، او دا معلومه خبره ده چې د دوو شـیانو پـه څوله پـه یوه وار شروع نـشی کیدای نو دا دوه حدیث به





څرنګه سره جمع سی **جَوابُ** مولی خیالیٔ وائی: چې ابتداء په حَدیث کی د بِسْمِ اللّٰه ابتداء حقیقی ده یعنی ترمقصود او غیرمقصود د مخَه،، او پـه حدیث کی دَحمد ابتداء اضافی ده یعنی ترمقا صدو دکتاب دمخه،، او د دی سوال نور جوابُونه پـه حواشی کی دشرح جامی او د خیالی هم سـته.

**سُـوال**: ویر دینی کتابونه دحمد څخه خالی لیدل کیږی، لکه بُخاری شریف،، ترمذی شریف،، کافیـه،، وغیره،، نو هغوی ولی امتثال دَدَغه حَدیث نبوی ص نه دی کړی **جَوابُ** د دی سَوال مختلف جوابونه دي،،

د بُخاری شریف د صل پـه حواشی کښې مذکور دی،، او د غه رنګه حضرت عَبد الرحمٰن الجامیؒ د کافیه په شرح کښې یوپـه زړه پوری جواب ذکر کړی دیٔ،، او عاصی هغو ټوله جوابونه په تفصیل سره پـه فیض الصمد کی چې د عاصی حاشیه ده پر عَبد الغفور او نور محمد باندی لیکلی دی،، خوتر ټولو آسان جواب د مبتدیانو د حاله سره مناسِب دادی چې شروع به حَمَد چې په حدیث شریف کی راغلی ده عامه ده کتابت لیکنی سره وی،، او که صرف دخولې په وَیلو بې له لیکنې وی،، نو دَغو حَضراتو حمد د خدائ په خوله ویلی دی اما لیکلی یـه نه دی،، نو مخالفت د حدیث نبوی ص پر دوی لازم نه دی؛

**فـــائِـدَه**: چونکه عمرُونه دامت محمدیه ص لنډ او کوتاه دی،، نُو دی کبله خدای پاک ودی امت مرحومه ته جامع عبادات قولی او فعلی ورکړی دی یعنی چې کول یه آسانه وی او ثوابونه یه ډیروی،، د دی جُملی څخه الحمد لله دَه ولی که موږ وَغواړو چې تفصیلی حَمد دخدائ ووایوُ،، نو بَه وایوُ خدائ پرهرشی علم لری او پرهرشي قادر دَیٔ. او رازق دی او نُور صفات الهیـه چې تفصیل یه نهایت ډیروخت غوَاړی مَیاشـتی او کلونه غواړي،، مـګر خدای جَل سلطانهٔ په خپَل فضل او کرم سره دې اُمت ته کلمه د اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ فقط ورته را واستَول چې دیوه وار وَیلو ثواب یه دومره ډیردی لکه چې د خدائ ټوله صفات په تفصیل سره ذکر سی،،

## بِنهانَه فَائِدَه

د رولیښ محمد عُبَیدُالله کنـد هاری ایوبی نقشـبندی غفرله الباری،، وَالیٔ چې بی ځایه

برنه وی که په مناسبت د اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعٰلَمِيْنَ» د دی پوره سورة قرآنی بعض احوال او
خواص بیان کړه سی د پاره د هغو ورونړو او خوندو، چی په عربی کتا بونه پوهیږی،
بلکه د هغو طالبانو او نوی ملا یانو چی د دوی سره نادر تصوفی کتابونه نه وی او دا ټولو
شفقت د لاری.

## نوواوره

چی د دی مُبارك سورة ډیرش نومان دی، ۱ـ فَاتِحَةُ الْكِتَابِ چی شروع د کتاب الٰهی د دی
څخه کیږی ۲ـ اُمُّ الْكِتَابِ یعنی مور او اصل د قران قاضی بیضاوی دوی وجه داسی
بیان کړی ده چی معانی د قران ټوله په دی سورت کی اجمالاً درج دی. او دا نوم هم په صحیح
روایت ثابت دی، بیضاوی صفحه ۳ـ اُمُّ الْقُرْاٰنِ چی وجه یه بیان سوه ۴ـ الْقُرْاٰنُ
الْعَظِيْمُ دا نوم د آنحضرتؐ څخه مروی دی وجه یه داده چی معانی د قرآن مبارك په
دی سورة کی موجود دی کاملاً» ۵ـ السَّبْعُ الْمَثَانِيْ سبع یه په دی بولی چی اوه ایت دی
او مثانی یاد ثنا څخه جوړ سوی دی، او په دی سُورة کی ثناء او حمد د خدای پاك ویل سوی
دی، او یا د تثنیة څخه جوړ دی چی معنیٰ یه تکرار دی دا سُورة مُبارك په لمانځه کښی
مکرر ویل کیږی او دا نوم قرآنی دی قَالَ اللّٰهُ تَعَالیٰ» وَلَقَدْ اٰتَيْنَاكَ سَبْعًا مِّنَ الْمَثَانِيْ،
۶ـ الْوَافِيَةُ: سُفیان ثوریؒ وائی چی دا سُورت وفا کوی په ټولو معانی وو سره د
قران، ۷ـ الْوَاقِيَةُ یعنی ساتونکی او دا سُورت که د خپلو شرائطو سره چی رابه سی کی څوك
وائی د ټولو آفا تو امراضو څخه به په امان وی، ۸ـ سُوْرَةُ الْكَنْزِ یعنی خزانه، دا سورة
هم خزانه ده د ټولو معانی وو د قران، یاد دی نام سبب دا دی چی سَیّدنا علیؓ وائی چه
دا سُورت نازل سوی دی د یوی خزانی څخه چی تر عرش لاندی ده، ۹ـ سُوْرَةُ الرُّقْيَةِ
یعنی سورت د دم کولو، ولی چی په حَدیث صحیح کښی راغلی چی دا سورة مبارك شفاء د هر
مرض دی، او دا په تجربه اهل اللّٰه ته ثابته ده، لکن دا سورت بعض شرطونه لری،
او د روزانه و یلو د پاره مخصُوص عدد لری، چی د هغو شرطو او عدد خاص بیانول په
دی عمومی کتاب کی مناسب نه دی ځکه چی د اسرارو څخه دی،





۱۰ـ سُوْرَةُ الشِّفَاءِ وجه یه داده چی جابرؓ روایت کړی دی چی آنحضرت صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ
وفرمایله» سُوْرَةُ الْفَاتِحَةِ شِفَاءٌ مِّنْ كُلِّ شَيْءٍ. سورة فاتحه شفاء د هر مرض ده.
اِلَّا السَّامُ وَالسَّامُ الْمَوْتُ» مگر د سام شفاء نه ده او سام مرگ ته وائی.

## عُذر

نور نومان د دی سورة مبارك درویش په شرح کی د قدوری بالتفصیل ذکر کړی
دی، په یوه صحیح حدیث کی چی روایت یه بُخاریؒ او مُسلمؒ ابوداؤدؒ ترمذیؒ، ابن
ماجهؒ نسائیؒ او امام احمدؒ، او ابن الجریرؒ الطبریؒ او حاکمؒ بیهقیؒ د حضرت ابا
سعید الخدریؓ څخه داسی راغلی دی۔
قَالَ بَعَثَنَا رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: وَویل ابوسَعیدؓ چی واستول لومونږ رسول اللّٰه
صَلَّى اللّٰهُ علیه وَسَلم: فِيْ سَرِيَّةٍ ثَلٰثِيْنَ رَاكِبًا، په یوه کشنی فوج کی چی دیرش سپاره یکښی
وه، فَنَزَلْنَا بِقَوْمٍ مِّنَ الْعَرَبِ» نوموږ واړول پر یوه قوم د عربو یعنی چی کافران وه»
فَسَأَلْنَاهُمْ اَنْ يُّضَيِّفُوْنَا، نوموږ وغوښتل د د غه قوم څخه چی موږ ته مهمانی راکی
یعنی د خوراك د پاره یوڅه راکړي» فَاَبَوْا فَلُدِغَ سَيِّدُهُمْ» نو هغه منع د میلمستیا
څخه وکړه، پس په هغه شپه رئیس د هغه قوم لړم وخوړی.
فَاَتَوْنَا فَقَالُوْا هَلْ فِيْكُمْ مَنْ يَّرْقِيْ مِنَ الْعَقْرَبِ» نو د غه قوم خلگ موږ ته
راغله او وی ویله چی آیا ستا سو کی داسی څوك چی دم کوی د لړم د وهلو څخه،
فَقُلْتُ نَعَمْ اَنَا» ابوسعیدؓ ورته وویل چی هو زه یم یعنی دم کونکی د لړم»
وَلٰكِنْ لَّا اَفْعَلُ حَتّٰى تُعْطُوْنَا شَيْئًا» لکن زه دم نه کوم ترهغو چی تاسی به راکوی
موږ ته یو شیٔ یعنی په اصطلاح د پښتنو شکرانه» قَالُوْا نُعْطِيْكُمْ ثَلٰثِيْنَ شَاةً» دوی
وویل چی موږ درکوو تاسو ته دیرش پسونه» قَالَ فَقَرَأْتُ عَلَيْهِ الْحَمْدُ لِلّٰهِ
سَبْعَ مَرَّاتٍ» ابوسعیدؓ وائی چی پس ما وویل په هغه سړی لړم وهلی باندی الحمد للّٰه
یعنی د سورت تر پایه پوری اوه واره» فَبَرِئَ مِنْ سَاعَتِهٖ» نو هغه سړی جوړ ستی
فَلَمَّا قَبَضْنَا الْغَنَمَ پس څروخت چی موږ قبضه کړه پسونه:

عَرَضَ فِي اَنْفُسِنَا مِنْهَا شَيْءٌ": ر او کرځیدی زمونږ په زړو کی د هغو پسود اخستلو په سَبب یو شئ. یعنی په دی سَبب چی داخود قرانْ شریف پرَویلو مزدوری اخستل دی نُودا به روا وی او که ناروا. فَكَفَفْنَا حَتّٰى اَتَيْنَا النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: نو مونږ هَغو پسودو لیشلو څخه، او یا د حَلالولو او خوړلو څخه منع وکړه، یعنی د علیه السلام ترمشوری پوری ځتی چی مونږ نَبی عَلیه السَّلام ته رَاغلو" فَذَكَرْنَا ذٰلِكَ لَهٗ، پس مونږ بیَان د هغه تهولو ماجرٰی وَعَلیه السلام ته وکړی، فَقَالَ مِنْ اَيْنَ عَلِمْتَ اِنَّهَا رُقْيَةٌ" پس ابو سعیدؓ واِلی چی مَا ته عَلیه السَّلام وویَل چی ته د کَم ځایه څخه خبر سوی چی سورۃ فاتحه دم دی، اَقْسِمُوْهَا وَاضْرِبُوْا لِيْ بِسَهْمٍ" نو علیه السلام وَفرمَائیل سره وی ولیشئ هغه پسونه او ماته برخه په کښی راکړئ.

**فَائـده:** د دی حَدیث شریف څخه په واضِح ډول معلومه سوه چی پر دَم یا تعویذ مزدوری اخستل روادی، که څه د قرانْ شریف په آیتو دم وکړی، په دی مسئله کښی وهابیان سَلفیان سخت مخالف دی، ډوی وَائی چه هغه قوم خو کافران وه د کافِر مال خو حَلال دی، لکن دوی نه پوهیږی چی د کافرانو مالونه په غنیمت کښی حلال دي، چی د جهادِ شرعی نتیجه ده، او په چل وَل او په حرامه طریقه سَره خود کافرانو مالونه مونږ ته حلال نه دی، نو که د قرآن مبارَك پر ویلو مزدوری اخستل حرام وای، نو ولی آنحضرتؐ د هغه پسودو لیشلو او په خپله هم د برخی اخستلو امر ورکاوه، او سره د دی چی د غه مزدوری مشروطه وه. د هیه په توگه نه وَه، او وهابیان وائی چی اخستل دَمال د کتاب الهی په مقابل کښی دَ یهودیانو د مُلایانو کار وو، لکه چی خدای پاك په شان کی د دوی وَائی. وَيَشْتَرُوْنَ بِهٖ ثَمَنًا قَلِيْلًا. یعنی رانسی یهودیان یعنی د دوی مُلایان په عوض کی د کتاب الله چی توراۃ شریف وو لږ قیمت"

**جوابُ:** مُلایا نو دَ یهودیانو خو پر بدلولو د تورات شریف د اُیاتو، لکه بدلول د اُیت د رجم یا بدلول د اوصافو د آنحضرت صلی اللہ علیہ وسلم، بډی او رشوت اخستی نه پر دم کولو، ډرویش وَائی چه دا مسئله یعنی شکرانه پر دم د قرآن مُبارك د اُیتو په ویلو یا د قرانْ





عظیم پر تعلیم باندی مزدوری اخستل، یا پر اذان کولو، یا پر امامت کولو باندی مزدوری اخستل، او یا پر تعلیم د دینی علومو مزدوری اخستل، او دا تهول هم په مشروط ډول دیره مختلف فیهَا مسَئله ده:

متقدمین د احنافو" دا تهول ناروا او حرام بولی، او متأخرینو تهولو فتوی داسی صادره کړیده چی دا تهول روادي. درویش وَائی چی چونکه دا یوه مختصره شرح ده نو د دی کښله دلائل د متأخرینو مابه تفصیل سَره دلته نه راوړه، تفصیل د دلائلو د دوی په شرح وقایه، رد محتار او په نورو فتاوو کښی د فقهی حنیفی مطالعه کړئ. او دا ځای خو د پاره د بیان د فضائلو د سورۃ فاتحه وو، او د مزدوری اخستلو پر مذکوره کارو. تبعًا دلته او ره سوه نو ما صرف په اشاره سره اکتفاء وکړه، اصلی ناروا، خبره خو دا ده چی لعض تعویذ گران، کودگران صرف په نامه مُلایان، پر غیب ویلو شکرانه او روپی غواړي دا یقینًا حرام ده ولی چی علم غیب خاصه د خدای جَلجَلاله ده، وَعِنْدَهٗ مَفَاتِحُ الْغَيْبِ لَا يَعْلَمُهَا اِلَّا هُوَ" نو دغه کودگر، غیب وَیونکی، او بی دینه گمراه ته مونږ وایو، چی ته چی د غیبو او پټو شیانو د علم دعوه کوی، نو د دی ایت قرانی څخه منکر ته منکر یه "کرهیمه"

قُلْ لَا يَعْلَمُ الْغَيْبَ اِلَّا اللهُ" ووایه ای محمدؐ چی علم نه لری پر غیب او پټ شئ بیله خدایه بل څوك، او په بل ایت کښی داسی راغلی دي، وَلَوْ كُنْتُ اَعْلَمُ الْغَيْبَ لَاسْتَكْثَرْتُ مِنَ الْخَيْرِ وَمَا مَسَّنِيَ السُّوْءُ" خدای پاك د آنحضرتؐ د خوا وائی "که چیری زه خبر وای په غیبو سره هر آئینه به ما جمع کړی وای ډیر خیره څخه او ما ته به نه وای رسیدلی یو غم او تکلیف" نو د دی ایت مبارك څخه دا معلومه سوه چی آنحضرتؐ سره د دی چی سید د رسولانو وُو، او د خدایج لوی دوست وُو، وځان ته یه علم غیب نه وَایه، وَلی چی لفظ د "لَوْ" په عَربی ژبه کی امتناعی دی یعنی دا خبره مُمتنع ده لکه چی په عربی ژبه خبر کسان په دغه پوهیږی" نو تعویذ گرو کودگرو ته څرنگه وځان ته علم غیب وائی، ایا ته خپله رتبه تر سید العالمین لوړه بولي" العیاذ بالله.

اللهم اغفر لمؤلفه ولکاتبه ولوالدیهما امین.

**دکوډ کرانو وینا:** دوی وائي چې ما ته پیریان، شیطانان د پټو، شیانو حالات راته
بیانوي، نوزه وبوی ته وایم چې ته اَخُ الشیطان یه او کاهن یې لکه عرب د جاهلیت د وخت
کاهنان چې د هغو په باره کښې آنحضرت م داسې فیصله کړېده،
مَنْ اَتیٰ کَاهِنًا، که څوك ورسی کاهن یعنی غیب ګوي ته، فَصَدَّقَهٗ بِمَا قَالَ، او بیا
تصدیق یه وکړي د هغه کاهن په هغه خبرو کښې چې کاهن ورته وکړه، فَقَدْ کَفَرَ بِمَا اُنْزِلَ
عَلیٰ مُحَمَّدٍ، پس په تحقیق سره هغه سړي کافر سو په هغه قرآن سره چې نازل کړه سوي دیٔ
پر محمد صَلَّی اللہ علیہ وسلم،
او که چیری کوډ کره جادوګره په ظاهره مسلمان یه په حقیقت کی شیطان ته دا دعوه کوي چې
پیریان دا خبری ماته راوړي نو ته خو دا عقیده لرې چې پیریان په غیبو خبر دی خو دا هم کفر دیٔ
او که ته وائې چې زه د علم غیب دعوه نه کوم او نه هم د دی دعوه کوم چې پیریان ما ته خبرونه
راوړي، بلکه زه د خولې په صفائي او نورو قرائنو خلك خطا باسم، او روپۍ ځندی اخلم،
نوزه وایم ته خو غدار حرام خوره او غل یه، باید د دی کاره توبه وکاږی ځان او عیال د حرامو
څخه وساتی مرګ او قبر او اخرت دی په مخ کښی دې،
درویش محمد عُبَیْدُ اللہ کندهاری سُلیمان خیلی ایوبی وائي: چې علی العموم د دی غدارۍ سبب
ښځې دی، او بیا هغه نا پوه په دین نا خبره انسانان دی، دوی چې د غه غدار غیب ګوي پتې
معلومونکی ته ورسی، اول دوی دا خبره ورته کوي، چې ته په کتاب کښی وګوره چې په ما څه
سوي دی، هغه کوډګر دیوه کتاب ورقې پر له اړوی، او ورته وائې چې یوی لنډی ښځې یا
توری ښځی، یا ځکی ښځی یا یوه نر په تا تعویزونه کړي دي، نو د هغی ښځې یا نر په قریبانو
کښی نږدی یا لیری په همسایه ګانو کښی که د غه رنګ چې تعویزګر ورته و ویل ښځه یا نر وو
نو هغه تعویزګر ته وائې چې مُلا صاحب رښتیا وویل د غه رنګه ښځه یا نر زما په قریبانو
یا همسایه ګانو کی سته، نو بیا هغه ښځه یا نر وهغه غدار ملا صاحب ته وائې چې ښه
او س یه چاره راکوه، غدار ملا صاحب ورته ووائې، چې ته خپل نوم، او مور یا پلار نوم او
د هغی بلی ښځې نوم ماته راو ښیه، نوزه به ما ښام خپل پیریانان پسی راواستوم،





تعویذونه بہ راوړی ته یه صباد ښې شکرانې سره راسی، او تعویذونه به در کړم، خیر ښځه کوره
ولاړه نومان یه و غدار ته وروښووَل،
نو حقیقت خو دا وی چې د هغی ښځې یا تبه یا د ملا درد یا بله ناجوړی وی، ښځه د هغی
ناجوړی څخه صرف نظر وکړی. او د غدار مُلا پر قول باور وکړي، هغه اندازه روپۍ
چې غدار ورته وئیلی وه د هری خوا چې وی برابری کړي، نو دا بله ورځ چې راسی، غدار
ملا د مخه دیر تعویزونه او دا ټری په زړو تکرانو کښی پیچلی وی او په خاورو کښی ښځی
کړی وی، یو یا دوه تعویزه د هغو څخه راوکاږی، او په خام قلم هغه نومان پکښی نوشته
کړی. صبا چې ښځه ورسی هغه زاړه تعویزونه پلاس ورکړی، او ورته ووائې چې په
یوه بل مُلا یه وګوره ستا او ستا د مور نوم په کښی نوشته دی، ښځه خوشحاله سی
چې د نا جوړی څخه خلاصه سوم، غدار مُلا ته په مینه مینه شکرانه ورکړی.
کور ته چې ولاړه سی هغه داوی او هغه یه ناجوړی وی، غدار مُلا روپۍ یووړی،

## دلعض غدارانو بل عجب چم، او ځان ته بزرګی ناتول،

دوی د سحاره ترغرمی پوری په خپل ځای کی ناست وی، ښځې او نر ورته راځی، په د غه وخت
کی دوی صرف نومان نوشته کوی، او وه هرچا ته وائې چې په تا تعویزونه سوي دی. او
هر یوه ته وائې چې صبا راسه چې زه مو تعویزونه در کړم، شکرانې څنډ سے واخلی،
ما پښین نو دوی کار نه کوی، بلکه ما پښین به دوی هغه زاړه تعویزونه چې دوی
بر لاد مخوا څخه په زړو وړستو ټوکرانو کښی ښخ کړي وه راوبی کښلو او په یوه کی
بی په خام قلم دیوی ښځې یا نر نوم نوشته کړی. او په بل کی د بل چا نوم، نو بیا بر دوی
پسی راسم سی د هرچا وکورته نږدی ادیره (قبرستان) وای مثلا او یا یوه خرابه وی یا لیری
او نږدی کوڅه یا باغ وای هغه تعویزونه بی ترما زدیګر پوری ښخول، سحار وختی چې
هغه دیرون ورځی نر او ښځی بیرا غلل، نو دوی وهری ښځې او نر ته وائې چې ستا د تعویز
ځای به در ووښیم ورسه پخپله لئ راوکاږه ...

چا ته بیا وائی چی ورسه فلانی ادیری ته فلانی قبرته ورځنګ ته د هغه یوه ډېره ده مثلاً هغه پورته کړه تعویذ ترلاندی دی په فلانی ،ځای تکرانوکښی پیچلی دی، بل ته بیا بل ځای وروښیي، هغه تعویزونه چی هغه خلک په هغوځایوکی پیدا کړي، نو پیر غدار کوډګر دلوی بزرګ سري عقیده راسی او هرځای د ده بزرګی وخلکوته بیانوی، نوری ښځی او نر هم ور ځغلی،

**برادران عزیز:** خدای پاک دی فضل وکړی نه پوهیږم اوښه پوهیږم، چی د ځوانانو ښځو او ځوانانو غادرانو کوډګرانو ترمابین نور څه ګوی مګوی پلېښیږی، په حدیث مُبارک کی راغلی دی چی بیګانه ښځه او نرچه په خالی ځای کی سره یوځای سی دریم یه شیطان وی،

**درویش محمد عُبَیدُ الله** وائی چی دا کار په افغانستان کی ډېر کم وُ بلکه تخمیناً نه وُو، مګر په پاکستان کی ډېرد ځوائخز دا کاروبار روان وو، نو څه وخت چی برافغانستان بد بختی د انقلاب ثور راغلی۔ او ملک تولِه خلقیانو کمیونستانو او روسانو اشغال کړی او د افغانستان عمومی خلک وهجرت ته مجبورسول او وځرمه اسلامی حکومت پاکستان ته مهاجرسوله:

نو بعض صرف په نامه ملایانو ودې تکی، غداری، جادوګری، ته لاس ورواچاوه اوډېر پیسو دجمع کودپاره یه واسلام ته شاکړه، او د خلکو په خطا یستولو خصوصاً د ښځو په لاس پوری کړی او زمونږ د وطن د غه غدارانو دومره شهرت یه حاصل کړي چی پاکستانی غداران ورته حیران سوه، عُذر، که څه هم د غه غداران د درولش نوم په نوم یېږنی لکن بیا هم نوم اخستل یه وګناه ته د غیبت سري کښوی،

اَللّٰهُمَّ اَعِذْنَا مِنْ صَنِيعِ هٰؤُلَآءِ الْغَادِرِينَ، اوس بیرته دسورۀ فاتحه پرلور، درولش باګناه محمد عُبَید الله نقشبندی، کندهاری، ایوبی، سلیمانخیلی وائی چی خواص ددی سورۀ مُبارک بی حسابه او ترشمیر ډېر دی که هغه فائدی زه ولیکم چی په کتابوکښی ما عاجز ته معلومات سته تخمیناً ۱۰۰ مخه کتاب به ځندی جور سي،





## دسُورۃ فاتحه شرطُونه

(۱) درولش وائی چی اول شرط ددی سُورۃ دُ نفع اخستلو حُسن اعتقاددی:

**دویم شرط:** یه پاکی دبدن او کالوده د نجاست څخه، **دریم شرط:** یه پاکوالی دځای دَوَیلودی: **څلورم شرط:** یه اجازه اخستل دې دیوه پاک عالم عامل څخه، **پنځم شرط:** یه بِسمِ الله په وصل د الحمدُ لله سره ویل دی یعنی بِسْمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيمِ اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعٰلَمِيْنَ ط آه: **شپږم شرط:** یه دادی چی دعدد معلوم په مابین کښی به دچا سره خبري نه کوی، **اووم شرط:** یه دادی په وخت کښی د تلاوت کولو به څامخ وقبلی ته کښینستلی وی، **اتم شرط:** په دادی چی دګناه دپاره یا دګناه د کار دپاره بی نه وائی: **نهم شرط:** یه دادی چی اسرار به نه افشاء کوی۔ **لسم شرط:** یه همیشه توب کول دی،، فقیر وائی چی بعض فائدی ددی سورۀ مبارک بزه وخپلو ګرانو ورونږ او خویندو ته بیان کړم، په فتاوی صوفیه کښی به نقل د اسرار مخزونه ص۱۱ کی راغلی دی چی یو کال د ملتان په ښار کی سخته وبا او طاعون پیدا سوه، نو شیخ تمیمیؒ چی د هغه عصر یو بزرګوار شخصیت و وخپلو مریدانو ته امر وکړی چی تاسی د طاعون پر مریض باندی ۳ یا ۷ واره اَلحمدُ لله په شرط د وصل د بسم الله وایاست او پر مریض یه پوه کوی، هم په هغه وخت به خدائ وهغه مریض ته شفاء ورکړه، او په لږ موده کښی خدائ وبا رفع کړه، او هم په د غه ص۱۱ کښی راغلی دی که څوك همیشه توب وکړی پرقرائت دسورۃ فاتحه په مابین د سنتو او د فرضو دسحار لمانځه ۴۱ واره، که مسکین و وخدای پاك بی غنی کړی، او که پوره وړی وو خدائ بی پوراداکړه،

او که مریض وو په هره مریضی چی وی خدائ بی ژر جوړ کړي کی اجل نه وو پوره، او که ضعیف و وخدائ به قوت ورکړی، او که بیعزته و وخدائ بی لوړ مقام ته دعزت ورسوی، او که دیوه منصب څخه لیري سوی و وخدائ بی هغه یا ترهغه لوړ منصب ته ورسوی، او که نر یا ښځه دُ نکاح خواهش لری خدائ پاك به د هغه د طبیعت

سره موافقه ماینه یا میړه ورکړی، اوکه څوك عیال نه لري یا عیال یې نه پالی. خدای به عیال ورکړی اویا بې عیال وربا یوي، اوکه د دښمن څخه بېرېږي هغه دښمن به خدای پاك بېده باندې مهربانه کړي، او یا بې دښمن ورك کې. اودی به څندې خلاص کړي اوکی تجارت نفع نه کوي یا تاوان کوي هغه تجارت بې خدای پاك وچلوي، او ګټوړ به ګرځوي، او پرهر مریض چې فاتحه شریفه دم کړي هغه مریض به خدای جوړ کړي، کذا فی اسرار الفاتحة،

اود درة الآفاق په نامه کتاب کښې دا سی وائي، که څوك همیشه توب وکړي پر ویلو د الحمد لله په وصل د بسم الله پس له هر لمانځه اوه اوه واره خدای جل جلاله به خلاص کړي پر هغه بنده باندې د دنیا اود اخرت دخیر دروازې، او خدای به ده ته د دین او دنیا مهمات ورحل کړي، اوامن او خوشحالي سره د ښه حلال رزق به خدای ورکړي، والله الموفق، او په صلا که چاته منظوروي، چې زما هر مشکل دې ژر آسانه کېږي، او د هرې بلا څخه دې زه په امن کې یم، او د هر چا په زړه کښې زما هیبت وي نو په حساب د حروفو د دې سورة یعنی ۱۲۵ واره دې وروسته د سحار تر لمانځه د همیشه دا سورت مبارك وائي: بل طریقه: د سورة فاتحه د ویلو چې په نیز د علماوو ډېرا محبوبه او ډېره کامیابه طریقه یې بولي داده،

چې سورة فاتحه دې د سحار تر لمانځه وروسته ۳۰ واره، او د ماپښین تر لمانځه وروسته ۲۵ واره، او د مازدیګر تر لمانځه وروسته ۲۰ واره، او د ماښام تر لمانځه وروسته ۱۵ واره او د ماخستن تر لمانځه وروسته ۱۰ واره، چې مجموع ۱۰۰ واره کېږي،

خبرتیا: هغه لس شرطونه مهم دي نو ځکه درویش تر ټولو مخه ذکر کړه.
سوال: د عامل د اجازې خبره تا وکړه عامل کم سړی ګرځیدای سی جواب هغه سړی عامل دی، چې په یوه چله یعنی په څلویښت شبانه روزکی سره د روژې او اعتکاف که د فرضي روژې سره لس روژې د مخه ونیسي او ټولې نفلي روژې ونیسي یو لك او پنځه ویشت زره وائي، او بیا یې په نورو ورځو کښې همیشه توب





وکړي پر هغه عدد چې بیان سو، ۱۰۰ واره نو دغه سړی حقیقةً عامل دی.
سوال: ته چې ځان عامل د الحمد لله شریفې بولې، نو ته دښمنان حاسدان او بدخواهان غیبت کوي نکي بهتان ویونکی نه لري اوکه څه رنګه: جواب: هو لرم یې.. ولی حسد د بعض ملا یانو طبعي کار دی مګر په برکت د الحمد لله شریفې د ټولو دغو کسانو ضرر او د مخامخ مقابلې خدای پاك زه او زما عیال سا تلي یو. اوکه چا مقابله کړې وي هغه خدای مغلوبه ګرځولي دي، او ما ته بهتان یا غیبت په هغه کښې زما اخروي فائده ده ولې چې د هغو حسنات ماته را نقل کېږي لکه چې یو حدیث نبوي دی: د حسد په باره کښې د در مختار خطبه مطالعه کړه:
بو ځای هغه وائي، ے هُمْ يَحْسُدُونَنِي وَشَرُّ النَّاسِ كُلِّهِمْ: مَنْ عَاشَ فِي النَّاسِ يَوْمًا غَيْرَ مَحْسُودٍ: سوال: د تعصب منشأ او بیا خاص په بعض ملا یانو کې څه شی دی.
جواب: تعصب د دوو جهتو څخه مروج دی یو تعصب قومي دی چې دا په امیانو کښې هم موجود دی. او یو تعصب په سبب د فوقیت علمي دی، او تعصب علمي دا سې یو آفت دی لکه یو شاعر چې وائي، چشم بداندیش که برکنده باد: عیب نماید هنرش در نظر:
سوال: یو د هغو لسو شرطو څخه د عامل څخه اجازه اخستل وه، نو مونږ وایو چې مونږ عامل چیرې پیدا کړو، او مونږ یې څه پیژنو چې دا شخص عامل دی اوکه نه! دا سې خو هر پیر یا خلیفه وائي چې زه عامل یم نو هغه سړي په حقیقت کښې که عامل نه وي او مونږ ته اجازه وکړي خدای نا خواسته مونږ ته پر ځای د نفع ضرر ونه رسیږي،
جواب: دا سوال ستاسې پر ځای دی او ما د عامل ماهیت وړاندې بیان کړی.
پوښتنه: تا شرائط د عاملیت د الحمد لله پر ځای کړي دي. جواب، هو درویش پس له اعتکافي ویلو څخه یعنی ۱۲۵۰۰۰ تخمینًا پنځوس کاله کېږي چې روزانه په ترتیب مذکور یعنی ۱۰۰ یې وایم چې تخمینًا یو نیم لك واره کېږي ۱۵۰۰۰۰ او په دم کولو سره او بیا په کتابت سره مې په لکو وارونه وتیلي او لیکلي ده، بناءً علی هذا که زه ژوندی وم او د طالب تر ما لاس رسیدی خو را دې سي چې زه بالمشافه اجازه ور ته وکړم،

کړیه چیری اهل وُو۔ اوکه دلیری ملک سَرې وو چې درویش ته یه لاس نه رسیدی نو دا سی عَمَل دې وکړي،، چې یوه هفته یَر له پَسې دمابنام ترلما نځه وروسته دوه رکعته دی وکړي او ثواب دِ درویش ته و بخښی،،

وروسته دِ دَ درویش دپاره دعاد مغفرت په دربار کی درب العزت وکړی و هغه سړي ته نهایت پوره اجازه ده، اوکه زه مَرحوم دغه مذکوره اجازه هم باقی ده،، اوزه وخپلو زامنو ته پس له مرګه داجازی ورکولو اجازت میراثی وَر پریږدم،، وما توفیقی الا بالله علیه توکلت والیه انیب،،

قال المصنف **وَالصَّلٰوةُ وَالسَّلَامُ عَلٰى سَيِّدِنَا مُحَمَّدٍ**
وئیلی دی مصنف

ترجمه: درود دِ وی، او سلامتیا دِ وی آفاتو څخه پر سردار زموږ چې نوم یې محمد دی

**خَاتَمِ النَّبِيِّيْنَ وَعَلٰى اٰلِهِ الطَّاهِرِيْنَ وَصَحَابَتِهِ اَجْمَعِيْنَ**

او ختم دی د نبیانو یعنی انبیاء ع پر ده ختم سَوله،، چې بل نبي تراخرت نه راځی،، او پر آل او اقرباؤ د ده او پر اصحابو د ده ټولو،،

پوه سه،، چې صلوٰة په لغت کی دُعاء ته وائي،، او په فقه شریفه کی لمانځه ته وائي او د درود په ځای کی چې نسبت یه و خدای ته وَسی په معنیٰ د نزولِ رحمت دی. او چې نسبت یه و بنده ګانو ته وَسی په معنیٰ دَ طلب د رحمتِ الٰهی،، دَی،، او صاحب کشاف د درود یوه په زړه پوری ترجمه کړی ده هغه دا،، یا الٰهی ته خپل فضل په اجراء د ثبوت نبوت او په دنیا کی په لوړه ولود ذکر د آنحضرت صَلی اللهُ عَلیه وَسلم دی بهرود کری،، او په عقبیٰ او اٰخرت کی په دوچنده کولود ثوابو د ده،، او په قبلیدو د شفاعت د ده په باره کی د امت دی سرلوړی کړی،، رد،، تفسیر کشاف،،

سُوال: طلب د رحمت پر علیه السلام څه معنیٰ لری سَره د دی چې آنحضرت صَلی الله عَلیه وَسلم باندی رحمت عامه د خدائ د خوا څخه نازل دی **جواب**: رحمت الٰهی هیڅ پای ته او نهایت ته رسیږی. نو بندګان طلب د مزید رحمت الٰهی کوی پر آنحضرت م باندی،،





او د سلام معنیٰ سلامتیا د آنحضرت م په دنیا او اخرت کښی چې د دُنیا د سلامتیا یوه برخه دا هم ده چې دین د عَلیهِ السَّلَام برقرار او سرلوړی وی،، او سا تونکی د دین د علیه السلام کامیابه او بَر لاسی وي،،

**مسئله**: په کَم درود کښی چې لفظ د آل او اصحابُ وی هَغه درود تر ټولو افضل دی په مختصره توګه داسی ویَل،، اَللّٰهُمَّ صَلِّ عَلٰى مُحَمَّدٍ وَّعَلٰى اٰلِهِ وَاَصْحَابِهٖ،، ردمحتار صاوی

**مسئله**: بعض عُلماءِ چې اِفراد د صلوٰة دَ سلام څخه مکروه دی ولی چې په ایت مبارک کی داسی راغلی دی،، صَلُّوْا عَلَيْهِ وَسَلِّمُوْا تَسْلِيْمًا،، لکن رد محتار وائی چې جمع کول د صلوٰة او سلام خو ډیر ښه کار دی،، مګر یوازی صلوٰة ویَل هم مکروه نه دیُ بلکه که خوك فقط عَلیه السلام وَوائي هَم کفایت کوی،، او د ایت جواب دا دی چې قران په ذکر کی قران په عَمَل کی جفت والی نه غواړي،، غنیه حنفیه

**مسئله**: اکثره علماؤ وائي چې درود ویَل د انبیاء علیهم الصلوٰة والسلام خاصه ده،، او پر بُل چا که صحابی وی او که بل څوك وی درود ویَل استقلالًا مکروه تحریمی یا تنزیهی دیُ،، البته په تبع د انبیاء ع روادی لکه چې څوك ووائی وَالصَّلٰوةُ عَلَى النَّبِی وَاٰله وَاَصحَابِهٖ وَاَبی حَنِیفَة واَحبابِهٖ مثلًا،، مزرع الحسنات،،

**مسئله**، جلا سَلام ویَل استقلالًا پر غیر د انبیاء عَلیهمُ السَّلام روا دی لکه چې موږ یو و بَل ته وایو،، اَلسَّلَامُ عَلَیْکُمْ نو بناءً عَلٰى هٰذَا،، عَلیٌّ علیه السلام جائز دی لکن چونکه شعار د شیعه ګانو دی،، ځکه اهل سُنت اجتناب ځنی کوی او د هغه په ځای کښی کَرَّمَ اللهُ وَجْهَهٗ وائيُ،، درویش،،

**پوښتنه**: څه سَبب دی چې د ټولو صحابه کرامو د نامه سَره رَضِیَ اللهُ تَعَالٰی عَنْهُ وَیل کیږی او د حضرت علیؓ د نام سَره عمومًا کَرَّمَ اللهُ وَجْهَهٗ ویل کیږی،، **جوابُ**: په فتاوٰی حدیثیه کی د ابن حجرؒ د دی وجه دَا وائيُ چې حضرت علیؓ په کشنوالی مسلمان سوی دیُ او هیڅ وخت یه و بت ته سجده نه ده کړي،، نو د دی سببه کَرَّمَ اللهُ وَجْهَهٗ د ده د پاره متعارف سو انتهی،،

**لکن دَرَولیش والیٔ:** چہ امام نواویؒ پہ شرح کښې دَ مُسلم ترمذکوری وَجهی دیره پرزار پوری وجہ راوړی ده هغه دا چې هغه وخت چې مروانیان چې دحضرت علیؓ دښمنان وُه وقدرت دخلافت ته ورسیدَله نُودوی پـه وخت کی د ذکرد نامر دحضرت علیؓ داسی ویل « سَوَّدَ اللّٰهُ وَجْهَهٗ »، نوځکه حقانی علماوو د هغه پہ مقابل کښې داسی لفظ عرف وگرځاوه کَرَّمَ اللّٰهُ وَجْهَهٗ »

**مسئله:** امام نوویؒ والیٔ چې دعا دَرَضِیَ اللّٰهُ عَنْهُ ، یا رَحِمَہُ اللّٰهُ عَلَیْهِ ، واصحابوٗ تا بعینوٗ، تبع تا بعینوٗ، اوعلماؤته ددین، اونیکانو، اولیاء اللّٰه ته مستحب دَیٔ، لکن دکنزالدقائق پہ شرح کښې چې « کُنُوْزُ الْحَقَائِق » پہ نُومِدی داسی وَائی چې ښہ داده چې دصحابی دَنُومِ اخستلوسَرَه « رَضِیَ اللّٰهُ عَنْهُ » ووائی اودتابعی دَنومر یادَولوسرہ « رَحِمَہُ اللّٰهُ » وائی « اوُنورو علماوو صلحاوو دنوم ورہ سرہ دِی « غَفَرَلَهٗ » وَائیٔ. اوکه صحابی دصحابی زوی وو بیادِ « رَضِیَ اللّٰهُ تَعَالٰی عَنْهُمَا » وَائیٔ. اودا دی خبری نخلی امام نوویؒ پہ شرح کښې دمسلم کړیدی

**پوښتنه:** کوم خصوصی شرعی سَبب سَته چې مصنفانؒ عمومًا پـه خپلو تصانیفو کی پس له حمده د خدایٔ درود پرآنحضرتؐ وَائی» **جَوَابْ:** پہ صحیح حدیث کښې چې مفتاح الحصن یہ روایت کړی دیٔ، « رَسُوْلِ کَرِیْم صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وسلم داسی فرما ئیلی دی» که چا درود وایـه پُرما باندی پـه یوه کتاب کی نوملا ئکه به تر هغو پوری چې زمانوم پکښې وی درود ویونکی سرپی ته یه دعاد مغفرت کوی »

**مسئله:** درود ویَل پـه ټوله عمر کښې یو وارفرض دی وَلی خدایٔ پـه صیغه دامرفرمائیلی یَا اَیُّهَا الَّذِیْنَ اٰمَنُوْا صَلُّوْا عَلَیْهِ وَسَلِّمُوْا تَسْلِیْمًا ۞ صدق اللّٰه العظیم ۞

اودی څنه وروستہ چې هروخت نام نامي دَرَسُوْل اللّٰهُ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ، ذکرسی یعنی محمَّدٌ یا احمَدٌ وغیره، ذکرسی »، بعض فقهاءؒ وَائی چې درود ویَل سُنت دَیٔ. اوکه مکرر ذکرسی پہ تداخل سَرہ یو وار درود ویَل کفایت کوی »، لکن مختاره اوفتوی پر دی دَه ، چې دهروار نامه اخستلوسَرہ د آنحضرتؐ صَلّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّم درود ویل واجب دی او تداخل هم پکښې نشته » کذا فی درالمختار »





اوبیله ذکره دنامه دده مبارك درود ویل مستحب او ښه کاردیٔ.

پہ صحیح حَدیث کښې رَاغلی دی چې » آنحضرت صَلَّی اللّٰه عَلَیْهِ وَسَلَّم، فرمائیٔ که چا یو وار پرما درود وَوَایـه خدای جَلَّ جَلَالُه به پر هغه سرپی لس رحمتَ وکړی .، اوبله خبره دا ده چې درود ویَل پر آنحضرت صلی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّم سَبب دَقرب دآنحضرتؐ دی پہ وَرځ د قیامت کی چې پہ صحیح حدیث کی راغلی دی چې نن دی دَخلگو وَمانه پـه وَرځ دقیامت هغه سرپی به وی چې پُرمایہ پـه دنیا کښې ډیر ډیر درودونه وئیلی وی »

پہ روح البیان کښې دفوق الذکر ایٔت پہ تفسیر کښې داسی وَائیٔ »، چې اهل تجربه دعلماؤؒ او اولیاؤ څلورزره مختلف درودونه جمع کړی دی دپاره د مختلفومقاصدو » چې هریو یـه تیر بهدف دی» پہ شرط داخلاص اویقین »

**قَوْلُهٗ عَلٰی سَیِّدِنَا** » مِنْ سَادَ یَسُوْدُ سِیَادَۃً وَسَیْدُوْدَۃً، مهترشدن » **پوښـتنه:** چې مُراد د ضمیر متکلم مَع الغیر څخه یوازی امت محمدیؐ مراد نہ دی بلکه ټوله افراد د نوع انسانی مراد دی او لہ چې پہ صحیح حدیث کښې راغلی دي » اَنَا سَیِّدُ وُلْدِ اٰدَمَ وَلَا فَخْرَ » **قَوْلُهٗ مُحَمَّدٍ** دالفظ مبالغه دیٔ د محمود »

## حِکمت الٰهی

پہ هغه زمانه کښې چې آنحضرت صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وسَلم د رحِم د مورچې » اٰمِنَه » یہ نوم وو دنیا ته تشریف راوړی هغه زمانہ توره دوره دجاهلیت وَه چې عمومی نومُان دهغی زمانی، عمرو یا بکر یا عبدالعزی یا عبد المناف وامثالها » به پر ږدل ایښودل کیدل خدایٔ زمانوُ ایښودل کیدَل خدائ دعبدالمطلب چې د عَلَیْهِ السلام نیکه دی یو داسی مبارك نوم پہ زړه کښې ورواچوه یعنی محَمَّد چې دوروسته حالاتوسرہ د آنحضرتؐ ډیر موافق دی »

**قَوْلُهٗ خَاتَمُ** » الخاتم ما یُخْتَمُ بِهِ الشَّیءُ یعنی انبیاء عَلَیْهِمُ السلام پر آنحضرتؐ ختم سوه. وروسته تردہ هرڅوك چې دعوی د نبوت کوی هغه کاذب اودجال او کافرمطلق دی

**فائدَه:** پہ پاکستان کی چې دین اومذهب اوقلم او وینا آزاد دی »، اودمخه ترجوړیدو دپاکستان د پنجاب پہ علاقه کښې یو سړی پہ نامہ د غلام محمد پیدا سوی وُو »

چې ختمِ نبوت د آنحضرت ﷺ په زمانه اوځان په هم نبي صاحب الوحي بالله چنانچه دهغه
دوه چې کتابونه اوس هم په پاکستان کې موجود دي.
دې سرې په کمک دانګریزانو چې دوی ګرده عمر د مسلمانانو څخه احساس دخطر کوي» او
چې دوی کارنامې دحقیقي مسلمانانو د تاریخ په پاڼو کښې ونیلی دی: نو ګرده عمر په مسلمانانو
کې رخنه او شګاف پیدا کوي.
خو انګریزانو د غلام محمد قادیاني ته لوی مالي کمک ورکاوه او ده ته تحفظیه کاوه حتی چې دې
ملعون کافر لوی شهرت او ډیر اتباع په لاهور او پنجاب کښې پیدا کړه چې د قادیانانو په
نامه تر اوسه یادیږي. په مقابل کې دهغه مسلمانانو د ختم النبوة په نامه اداره قائمه کړه او
پر غلام محمد او ده پر تابعانو یې متفق القول فتوی د کفر صادره کړه. لکن سره دهغه قادیاني
مذهب تر اوسه چلیږي او خپل دعبادت ځایونه په هر ښار کښې لري. او مقابله تر اوسه ۱۴۲۱ هجري
پورې جاري ده، که څه غلام محمد ملعون خود و ختم مړ دی. لکن پر ځای یې بشیر احمد چې د ده
زوی دی چې فعالیت کوي»

## د غلام محمد مړک

دی دغولو کولو دپاره دغولو پر عمیق ځای ناست وو، لکه چې په ټوله پاکستان کې دغه خاهان رواج دي
چې نا ببره دغا سرو نړیدی او غلام محمد ونماه نه ولویدی، او دهغه غولو په خاکې دی مردار
مړ سو، وَذٰلِكَ جَزَاءُ مَنْ حَارَبَ اللّٰهَ وَرَسُوْلَهُ فِي الدُّنْيَا. وَاَمَّا عَذَابُ الْاٰخِرَةِ لَهُمْ فَهُوَ اَشَدُّ وَاَبْقٰى.
**قوله: النَّبِيِّيْنَ**: دا لفظ جمع د نبي ده او نبي هغه انسان دی چې خدای د خپلو احکامو د تبلیغ
او رسولو دپاره انسانانو ته راستولی وي: او په ورسره معجزو سره ده د نبوت تائید کړی
وي که نوی کتاب ورسره وي او که نه وي»
**او رَسُوْل**، په عربي لغت کې پیغام وړونکی ته وائي. او په شرع شریفه کې بعض علماء وائي
چې رسول او نبي په یوه معنیٰ دی. لکن حق دا دی چې رسول تر نبي خاص دی ولې چې رسول
هغه نبي دی چې نوی کتاب او دین ورسره وي،
د درویش ایوبي په عقیده دغه مذهب د احادیثو مبارکه سره برابر دی: ولې چې په صحیح حدیث



کښې راغلی دی، چې یو ځای د آنحضرت صلی الله علیه وسلم څخه پوښتنه وکړه چې انبیاء علیهم السلام
څو دي! آنحضرت ﷺ جواب ورکړی چې یو لک و څلیر ویشت زره دي. هغه سړي پوښتنه
وکړه چې رسولان په دوی کې څو دي! آنحضرت ﷺ وویله درې سوه اوديارلس: ۳۱۳
**سوال**! په حدیث مبارك کې راغلی دی چې کتابونه دخدای یو سل او څلور دي نو څرنګه
به یو سل او څلور پر ۳۱۳ تقسیم سي» **جواب**: مولی خیالیؒ په حاشیه کښې د شرح العقائد
وائي چې بعض د دغو کتابو مکرر نازل سوي دي لکه چې سوره فاتحه دوه واره نازله سوې ده
کذا في الحدیث النبوي» نو په دې ترتیب دغه ۱۰۴ کتاب پر ۳۱۳ رسولانو نازل سوي دي:
**فائده**: اول د انبیاء علیهم السلام آدم ابو البشرؑ دی او اخیر د نبیانو محمد خیر البشر دی
علیه وعلیهم الصلوٰة والسلام:
**مسئله**: د انبیاء علیهم السلام د شمیر تعیین د سړي نه کوي ولې چې په حدیثو مبارکه
ووکې اختلاف دی بلکه یا دی داسې وائي چې پر ټولو انبیاءؑ هر څو چې دي زما ایمان دی.
او یا دې داسې وائي چې زه یو لك څلیر ویشت ز/ ۹/ زیاتو کم پیغمبران منم»
**مسئله**: دین محمدی صلی الله علیه وسلم د ټولو ادیانو ناسخ دی» او ټولی دیني لارې خدای
جل جلاله بندې کړې دي بیله دین محمد صلی الله علیه وسلم»      سعدیؒ
مپندار سعدی که راه صفا: توان رفت جز در پی مصطفیٰ» د آنحضرت صلی الله علیه وسلم
نومان ډیر دي» دلائل الخیرات مطالعه کړی»
**قوله وَعَلٰى اٰلِهٖ** آل د علیه السلام بعض علماء وائي چې اهل بیت د ده ؑ دي» یعنی د کور
انسانان» چې امهات المؤمنینؓ یعني د آنحضرت ﷺ کور والا چې د ټولو مسلمانانو مندې دي
او د علیه السلام لونړې دیؓ او خادمان د ده مبارك» او بعض علماء وائي چې آل د علیه السلام
اقرباء نسبي د علیه السلام دي په شرط د ایمان» یعنی اولاد د علیؓ او عقیل او طالب دي» تر ورځې
پورې د قیامت» او بعض دا وائي چې آل د نبي علیه السلام هر مسلمان تر یا بنځه چې تقوی دار
وي» کما ورد في الحدیث النبوي» كُلُّ مُؤْمِنٍ تَقِيٍّ نَقِيٍّ فَهُوَ اٰلِيْ»
**قوله وَصَحَابَتِهٖ**» صحابه جمع د صاحب دی یعنی ملګری» او په شرع شریفه کښې صحابي

هرهغه انسان مُسلمان دی چې په وخت کښې داسلام په آنحضرتؐ لیدلی وي اویایه دعلیه السلام مجلس کړی وي، لکه عبد الله ابن ام مکتومرض چې په ستر ګوړوندوو، اوپر هغه اسلام مروی، که څه هم یوګړۍ یې ملاقات ورسره کړی وي، او بعض محدثان طول صحبت یعنی کم از کم ۲ شپږ میاشتې، او بعض محدثان روایت دحدیث هم شرط بولي دملا علی قاریؒ شرح مشکوٰة، اومقدمه د بخاری شریف مطالعه کړی.

## نادره خبره

یوه سه: چې په پښتو کښې حتی په علماؤ اود طلباء کښې دارواج دئ. چې استاذته یامرشدته یا بل محترم دینی عالم ته فلان صاحب، یامولوی صاحب، یا فلان پیرصاحب وائی او سره دې چې صاحب په معنیٰ لغوي چې ملګری ته وائي د تعظیم لفظ نردئ بلکه په عرف دعربو صاحب شاګرد ته وائي. نو پښتانه څرنګه دا لفظ د تعظیم په ځای کې استعمال وي، بلکه بعض عوام بلکه طالبان واستاد ته وائي، مولوي ساب، دا لفظ دسب نه مشتق دی چې معنیٰ یې بنکنځل دی، نو د ساب معنیٰ بنکنځل کوونکئ،

یوه سه: چې د دې معمی حل دادئ چې دالفظ په غیرکی دا صحابوؓ د علیه السلام صائب دی چې د صواب نه جوړ سوی دی یعنی حق ته رسیدلی، او اصل یه صاوبٌ وو پس له الف زائده نه واو په همزه بدل سو، صائبٌ ځندی جوړسُو او پردی تقدیر دالفظ د تعظیم دی استاذ یا شیخ یا بل لوی عالِم ته ویل تعظیم دی، دانوی فائده په یاد کړی او دا لفظ یعنی صائب تر استعمال لاندی ونسی، درولیش ګناه محمد عبید الله الایوبی السلیمانخیلی کندهاری غفرله البارئ

## د درود ویلو په باب کی پر زړه پوری معلومات

### اومسائل فقهیه

پوښتنه: ذکر یعنی نوم د الله ج یا کلمه طیبه افضل دې اوکه درود پر آنحضرت صلی اللہُ علیہ وسلم افضل دئ: **جواب**: شاه انورشاه کشمیری المرحوم چې یو وخت په مدرسه کی د دیوبند صدر المدرسین وو او شیخ الحدیث وو او پر ترمذی شریف باندی





یوه لنډه او محقق شرحه یه کړیده، داسی فیصله کړیده چې د یاره د امید د شفاعت نبویؐ پر ورځ د قیامت درود ویل بنه دئ، اود پاره د مغفرت د ګناهو د جانبه څخه د رب العزت ذکر افضل دی"
په حدیث مبارک کی راغلی دی، اَفْضَلُ الذِّکْرِ لَا اِلٰہَ اِلَّا اللہُ، وَاَفْضَلُ الدُّعَاءِ اَلْحَمْدُ لِلہِ،
ابن حجرؒ په فتاوی حدیثیه کی داسی ویلی دی چې چونکه ذکر تر دعاء افضل دی نو کلمه توحید تر حمد ویلو افضله ده"

مسئله: چونکه شیخ او اجازه ورکوونکی د درود ۶ آنحضرت صلی الله علیه وسلم دئ. نو څکه اولیاء الله ؒ وائی چې د درود ویلو دپاره اجازه د پیر کامل نه غواړي. نو په درود ویلو سیله اجازی د شیخ هم خدائ ته رسیږي. او آنحضرت م ته نږدی کیږي او برخلاف د نورو اذکارو چې د هغو په ویلو کښې اجازه د شیخ کامل ضروری ده"، ولحې شیطان مداخله په کښې کوی خدانا خواسته چې د نفع پرځای ضرر ورونه رسیږي"، هکذا فی الصاوی شرح جلالین،

یوه سه: چې درود ویل په ټوله عمر کښې د مسلمان یو وار فرض عین دی، چې وړاندې تیره سوه، او کوم وخت چې نوم د آنحضرت م په مجلس کی یادسي، پر ویونکی او اوریدونکی پر درود ویل واجب دی دا مسئله هم مختصر ذکر سوه، ګرلته دا زده کول په کار دی چې ویونکی په درود ویلو داوریدونکی غاړي نه خلاصیږي. داده قرآن عظیم الشان خاصیت دئ چې سامع لکه لوستونکی دئ.

مسئله: که چا د آنحضرت ص نوم وَوایه یا یه واوریدی مګر درود ویل یه هیر سوه نو دا درود د هغه په ذمه کښې پور دی هر وخت چې ور بیادسی درود دې و وائی" ردمحتار،
د تعجب ځای دئ، چې زمونږ پښتانه عموماً خصوصاً بعض واعظان او امامان د رسول اکرم صلی الله علیه وسلم د نام نامی چندانې احترام په درود ویلو سره نه کوي. او سره د دې چې په ترمذی شریف کی حدیث نبوی دی چې آنحضرت صلی الله علیه وسلم وائی چې بخیل هغه څوک دی چې زما نوم د ده په وړاندی ذکر سي او درود پر ما نه وَوائي"

او ابن حجرؒ په درمنضود کی دا سی روایت کړی دی چی آنحضرت صلی الله علیه وسلم وفرمائیل چی جبرئیل امین علیه السلام ووییل چی هغه سړی د رحمت الٰهی ډیر لری دی ویٰ چی ستا نوم د ده د مخه یادکړه سی او دی درود پر تا نه وَوَائی علیه السلام وَائی ما وویل اٰمین، ردمحتار، حاصل دا چی درود په ویلو کښی فلاح د دنیا او اخرت ستـه، او نه وئیلی کی یه خسر الدنیا وَالاٰخرة دی،

## درود سُنت دیٔ

په اخره ناسته کی د ټولو لمونځو که فرض وی که سنت وی او که نفل، او د نفلو په اوله ناسته کی هم سُنت دی، وَالناسُ عن هٰذا غافِلون، او د جنازی په لمانځه کی پس له دوم تکبیر څخه

## درود وَیل مُستحب دیٔ، په دے لاندی ځایو کی:

۱ په شپه او ورځ کی د جمعی، ۲ په وخت کی د دا خلیدو مسجد ته او یا د وتلو د مسجد څخه ۳ په روضه مقدسه مُعلیٰ کی د آنحضرت صلی الله علیه وسلم بلکه سیخی ډیر ډیر دی وَائی ۴ پر صَفا او مروَه په وخت کی د سعی. ۵ په هره خطبه کی ۶ پس له اجابت د مؤذن. ۷ په اول او اٰخِر کښی د دُعا، د دی ویاو راز دادی چی درود نبویؐ خونیه دربارکی د خدائ قبول دی نو درب جَل شانه د کرمه څخه لیری نه ده چی د ما بین دعا دِهم قبول کړی ۸ پس له تلبیه څخه ۹ د اودس تازه کولو په وخت کی ۱۰ په وخت کی چی په غوږ کی ازانگه وَسی ۱۱ کله چی د سړی یوه خبره یا کار هیر سی درود دی ووَائی ور په یاد بسی، وہٰذا من المجربات ۱۲ څو وخت چی وعظ ته کښینی یعنی وعظ شروع کوی ۱۳ څه وخت چی مدرس درس شروع کوی خصوصًا د علوم دینی وو، ۱۴ چی مبارک وَائی ۱۵ په اول او اخیر کی د تلاوت د قرآن عظیمُ الشان، ۱۶ چی استفتاء لیکی یا فتوی لیکی یا کتاب لیکی، ۱۷ چی مرکه د نکاح یو ځای استوی ۱۸ د نکاح ترلو په وخت کی ۱۹ د مخه تر هر کار چی مقصود او شرعی وی، ۲۰ په وخت د لیکلو د نامه د آنحضرت صلی الله علیه وسلم

## درود وَیل مکرُوه دیٔ، ۱ په وخت کښی د جماع کولو ۲ چی عورت غلیظه

په ښکاره وی ۳ د پاره د خرید او فروخت او د سامان د رواجولو د پاره، ۴ د تعجب په وخت کی ۵ چی نوک وَوَهی یا غوځارسی ۶ په وخت د ذبح کیدو د حیوان،





۷ په وخت کی د اذان ۸ بیله اخیری ناستی د لمانځه په بل ځای کی ۹ چی په درود سره په مجلس کی د غټ شخص یا سردار د پاره ځای غواړی،

**مسئله:** درود شریف په هر حالت کښی بلا کراهته روادی.. حتی په وخت کی د حدث یا جنابت هم روادی، کذا فی ردالمحتار،

## دَاخبره هم زده کړه

حضرة المولی البرسویؒ مصنف د روح البیان په تفسیر کی د دی ایت مبارک، اِنَّ اللهَ وَ مَلٰئِکَتَهٗ آه دا سی لیکلی دی چی د درودونه څلور زره دی، او په بل روایت کی دوولس زره دی، عارفان، او اولیاء، او عاشقان د نور محمدیؐ شرقًا وغربًا وجنوبًا وشمالًا یو درود په ما بین د ځان او د روح مقدس مطهر نبوی سبب د رابطهٔ روحانی گرځوی، او د قسم قسم امراض ظاهره او باطنه یو درود په تجربه رسولی دی، او د رقم رقم فائدی ترینه اخستی دی چی د هغو ټولو درودو، او د هغو د خواصو او فائدو ټولو بیانول د طوق څخه د قلم د عاصی پوره نه دی. او د هغو ټولو بیانول لوی کتاب او دفتر غواړی،

لکن درویش به دگرانو وروڼو او خوندودِ پاره لبعض درودونه وَړاندی کړم، شاید بعض محبان د آنحضرت ؐ او په اورسوی عاشقان د آن سرور کائنات ؐ گـته ځندی وَاخلی او د ذات انور نبوی ؐ سره په رابطه حاصله کړی،

درویش وائ چی د پاره د دفع د ټولو غمو او مصیبتو او د جلب د ټولو منفعتو په تجربه د اولیاء اللهؒ رسیدلی درود هم دادی: بِسْمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ اَللّٰهُمَّ صَلِّ عَلٰی سَيِّدِنَا مُحَمَّدٍ وَّعَلٰی اٰلِ سَيِّدِنَا مُحَمَّدٍ صَلٰوةً تُنَجِّيْنَا مِنْ جَمِيْعِ الْاَحْوَالِ وَالْاٰفَاتِ وَتَقْضِیْ لَنَا بِهَا جَمِيْعَ الْحَاجَاتِ، وَتُطَهِّرُنَا بِهَا مِنْ جَمِيْعِ السَّيِّئَاتِ، وَتَرْفَعُنَا بِهَا اَعْلَی الدَّرَجَاتِ، وَتُبَلِّغُنَا بِهَا اَقْصَی الْغَايَاتِ مِنْ جَمِيْعِ الْخَيْرَاتِ، فِی الْحَيَاةِ وَبَعْدَ الْمَمَاتِ دا درود په شبانه روز کی کم از کم پنځه واره وائ، به همیشه توب سره بی د دنیا او اخرت فائدی تر لاسه کړي، ان شاء الله العزیز،

شیخ اکبر محی الدین ابن عربی ؒ وائی چی دا درود د لوی خزانی نه د خزانو د عرش الرحمن دی او ډیر سابع التاثیره دی، او د غه رنګه امام جزولی ؒ او شیخ بونی ؒ د دی درود مبارک په سوو فائدی بیان کړی دی، او صاحب الاسرار د دی درود په فوائدو کښی ډیر مفصل بیان کړی دی۔

د حضرت جابر بن عبد الله رض نه روایت دی چی حضور اکرم صلی الله علیه وسلم و فرمائیله که یو چا پر ما هره ورځ سل واره درود ووایه، یعنی هر درود چروی، خدای پاک به پوره کړی د هغه سل حاجته سل کاره، او ۷۰ یا په آخرت کښی او ۳۰ ئی په دنیا کی۔ او په یوه بل روایت کی داسی راغلی دی، که څوک درود ووائی پر ما هره ورځ ۵۰۰ واره، یعنی که پر یوه ځای وی او که جلا جلا مسکین به نسی ابدًا۔ او د غه رنګه د نبی علیه السلام نه روایت دی چی زه حبیب یعنی دوست د خدائی یم، او پر ما درود ویونکی زما دوست دی، نو که څوک غواړی چی زه حبیب سم د حبیب یعنی خدای پاک، نو درود د ډیر وائی پر حبیب حضرت الامام جلال الدین سیوطی ؒ وائی چی دا احادیث ټول صحیح دی۔

او دی ؒ وائی: چی په تحقیق سره درود ویل پر سردار دو عالم ﷺ باندی سبب د ډیر والی د رزق دی۔ او سبب د ډیریدو د برکت دی په مال او عیال او تجارت کښی۔ او په درود ویلو سره لوی لوی حاجتونه د سره کیږی، او غمونه، فکر خرابی، وسواس دفع کیږی۔

جلال الدین سیوطی ؒ زیاته کړیده، چی دا ټول خبری په تجربه او مشاهده رسیدلی دی او د درود ویل پر آنحضرت صلی الله علیه وسلم واسطه کول۔ په ټولو جائزو کارو کښو او مهماتو کی، د ټولو علماوو که متقدمین ؒ دی او که متاخرین ؒ بلکه په پیریانو او ملکوکی قدیم رواج دی، درویش وائی چی امام سیوطی ؒ په دی باره کښی لوی تحقیق کړی دی او ډیر اوږده اولنډ حدیثونه یی روایت کړی دی، زمونږ د اهل سنتو عقیده د اده چی اصحاب کرام رض د رسول الله صلی الله علیه وسلم ټول عادلان دی۔ او د امت محمدیه غوره او بهتره کسان دی هیڅ صحابی رض ته مونږ بد نه وایو لکه معتزله او خوارج او شیعګان چی بعض صحابه وو ته بد نسبتونه کوی حتی پر بعض اصحابو د کفر ثا فی هم لګوی، العیاذ بالله





البته مونږ عقیده لرو چی د ټوله امت افضله بلکه د ټولی نوع انسانی بیله انبیاء ؑ افضل ابوبکر الصدیق دی رضی الله تعالی عنه، او بیا عمر بن الخطاب دی رضی الله تعالی عنه او بیا عثمان بن عفان دی رضی الله تعالی عنه او بیا علی بن ابی طالب دی رضی الله تعالی عنه چی ورته څلورو نفروته خلفاء راشدین وائی۔

**پوښتنه**: تا په د مخه کښی د پیر کامل ذکر وکړی د پاره د اجازی داذکارو نو زمونږ پوښتنه داده چی پیر کامل څه نخښی او علامی لری او که په صرف دعوه سره سړی پیر کامل جوړیدای سی! **جواب**: هو پیر کامل خپل ماهیت او معنی لری هغه دا چی پیر کامل هغه څوک دی چی عقائد یی د اهل سنتو وی۔ او د هر بدعت څخه خلاص وی او د شریعت مطهره په تمامو معناوو پابند وی۔ او حتی الامکان ټوله امور شرعیه پر ځای کوی۔ او په مباح شهواتو کښی هم ډیر غرق نه وی، پیری په نسب نه ده لکه د اوس عصر د عوامو چی زعم باطل دی۔

یعنی چی د چا پلار ښه دیندار مبارک سړی وو، نو زوی یی هم پیر کامل دی که څه هم فاسق فاجر بی لمانځه، ږ رخریلی، سګوان وی، حتی چی عوام د د غسی فاسقانو پیرزاده ګانو هم احترام کوی او هم یی مریدان کیږی۔ بعض عوام د پیرزاد ګانو په تعریف کی وائی، د ښو غو ښو ښه ښوروا وی۔ جواب، هو لکن چی په ښوروا مرداری نه سی ګډه - سه بیت: پسر نوح با بدان بنشست ؛ خاندان نبوتش گم شد۔

**قوله الطاهرین** آه ای من العقائد الفاسدة، د عقائدو فاسده وو څخه او د اعمال خبیثه وو او ناروا عملو څخه ټوله پاک وه۔

## سوال جواب طلب

تاسو اکثره د غه مسئلی او فوائدی چی تر اوسه تاسی ذکر کړیدی د قدوری په شرح پښتو کی چی د نور الایضاح تر شرحی د مخه تاسو تصنیف کړی وه ذکر کړیدی نو په دی شرح د نور الایضاح کی ورا وړو ته څه ضرورت وو... بلکه باید چی په مشترکه...

مسائلو اوفوائدو کښې مو شرح قدوری ته صفحه بنده حواله کړې وای نو داشرح به
اوږ دیدلای **جواب**: علامه تفتازانیؒ پر تلخیص دوې شرحې کړې دي چې یوه شهرېه
د مُطوّل په نامه یادیږی او بله شرحه یې مختصر المعانی بولی نو د ده جناب پر دې کې
څه غرض وو اوسره ددې چې مشترك بیانات په دواړو کښې سته،
ددرویش غرض دادی چې طالب علم ته دحوالی په سبب دقت په پید اکولو کې دشرح
قدوری پلټن نه سی،، بلکه هرڅه مضمون چې وی په دی شرح کښې زده کړی: اوبل سبب
دادی چې چونکه قدوری که څه هم په فقه حنیفی کښې لوی قدر لری او محقق کتاب دی لکن
چونکه په سبقی کچنیانو ویل کیږی، نود طالبانو چې وځانته یوځه وائی دقدوری و
دَرسَولوته میل نه لری،، نوو شرحې ته دهغی به څه میل ولری، بخلاف دنور الایضاح چې
هغه مُسَلّم مغلق کتاب دی چې طالبان بلکه امامان یې په حل پسې سرگردان دی،،
نوچې دوی واوری چې پر نور الایضاح پښتو شرحه سویده نوهغه شرحه به مینه مینه
لاس ته راوړی،، نو ددرویش مسائل اوفوائد دشرح دقدوری په دی شرح کښې هم ذکرکړه
تاچه طالبان دهغو سپیڅلو فوائدو څخه محرومه او بې برخې پاته نه سی.
وهذا نتيجة غاية شفقة العاصی معهم، والله الموفق،

مصنفؒ وئیلی دی **قَالَ الْعَبْدُ الْفَقِيْرُ اِلٰى مَوْلَاهُ الْغَنِىِّ اَبُوالْاِخْلَاصِ**

ترجمه: وئیلی دی فقیر یعنی محتاجه و بادارته خپل چې مراد خدایٌ دی، هستی خدای چې غنی

**حَسَنُ الْوَفَائِىُّ الشَّرُنْبَلَالِىُّ الْحَنَفِىُّ**

یعنی بې پروا او غیر محتاجه چاته، چې پلار د اخلاص دی چې حسن یې نوم دی او وفائی دی دا یې تخلص دی.
او منسوب و شرنبلال ته چې دا یې وطن دی. او حنفی مذهبه دی.
**پوه سه**: چې فقیر په لغت کې هغه چاته وائی چې مال نه لری نوچونکه فقیر په دی معنی
وصله ته حاجت چې،، اِلٰی، دی نه درلودی ددې سببه علماؤ دلته د فقیر ترجمه په محتاج کوی





چې هغه بیا، اِلٰی، غواړی،
**قوله اِلٰى مَوْلَاهُ**، پوه سه چې مولا په ډیرو معنا وو کښې په عربی کې استعمالیږی
لکه د مربې مالك او خود مربی ته هم وائی. او د آزادکړی شوی ته هم مولا وائی،، خو دلته
په معنا د بادار دی او حقیقی بادار د ټولو مخلوقاتو پوازی او یوازی خدای پاك دی جل سلطانه.
**قوله الغنى**: غنی په عرف کې د فقهی شریفی هغه چا ته وائی چې یو نصاب د نصابو
د زکوٰة لری. او په لغت کښې ضد د فقیر دی،، او غنی کامل خدای پاك دی وئیلی:
قَالَ اللّٰهُ تَعَالٰى: وَاللّٰهُ الْغَنِىُّ وَاَنْتُمُ الْفُقَرَآءُ،، خدایؒ دی غنی مطلق چې نه په ذات
او نه په صفاتو کښې اوهم په افعالو کښې چاته محتاجه دی. او تاسی ټوله فقراء او محتاجه
یاست هم په ذات کی او هم په صفاتو کښې او هم په افعالو کې،،
طحطاویؒ په شرح کښې د مراقی الفلاح،، چې مختصر شرح د نور الایضاح ده منك،، په نسبت
کی د شرنبلالی داسی وائی،، چې مصنفؒ په اخیرکې د رسالی دده چې،، دُرَرُالکنوز، یې نوم دی
داسی وئیلی دی چې د النفظ شائع دی یعنی شرنبلالی،، او اصل لفظ،، شبرابلولی، دی ولی
هغه قریه چې په سواد مصر کښې واقع ده او مصنفؒ هم د هغی قریې دی نوم یې شبرالولة
دی،، **قوله**،،
**الحنفی**، یعنی په مذهب د امام اعظم سراج الامة ابوحنیفهؒ دی، **پوه سه**
چې نسبت وه ابوحنیفه ته په حذف د جزء اول دی،، او تاء د تانیث کیږی،، اما بعض علماء
د جهت د کثرت استعمال لفظ د،،یا،، هم حذفوی لکه مصنفؒ چې حذف کړیده،، او
بعض علماء یې په اثبات د یاء وائی یعنی حنیفی،، مصنفؒ وئیلی دی

**اِنَّهُ الْتَمَسَ مِنِّىْ بَعْضُ الْاَخِلَّاءِ عَامَلَنَا اللّٰهُ وَاِيَّاهُمْ بِلُطْفِهِ الْخَفِىِّ**

ترجمه: چې په تحقیق سره خواهش او طلب وکی زما څخه بعض دوستانو چې خدایؒ دې
معامله وکړي زمونږ او د دوی سره په مهربانۍ خپله چې پټه ده،،
**قوله اِنَّهُ**،، دا مقوله د قال ده، او ضمیر یې د پاره د شان دی،،

قَولُہٗ اِلتمَسَ آه اهل عربیت اواهل اصول وائی، چې څوك طلب دیوکار وَکی دبل سَري څخه اودی ځان پرهَغه لوړ بُولي هغه طلب ته اَمَر وائی لکه چې باداروَمَریي ته وَوائي اِفعَل کَذَا، یا یوحاکم وعسکرته وَوائی اِفعَل کذا، اوکه طالب ځان بَرابر باله دمامور سَرِه هغه ته التماس وائي، لکه یولنډیوال وَبَل ته وَوائی چې دااوبه خورا که، اوکه طالب ځان عاجزه اوخوار کَاږه هغه طلب ته دعاوائی، لکه چې یوبنده خدای ته وَوائی، اَللّٰهُمَّ اغفِرلِي ذُنُوبِي وَارزُقنِي وَاخبُرنِي وَغَيرُ ذَالِكَ، قولہ الاخِلاء، جمع دَخلیل دَه، لکه اَحبّاء جمع دحبیب ده یا اطباء جمع د طبیب ده اود خلیل معنیٰ دوست برگزیده یعنی چې دوستی یه دنفاقه خالی وی،

قَولُہٗ عَامَلنَا اللّٰہُ آه یوه سَه چې عامِل باب دمفاعله دیٔ، چې عَمَل ددواړوطرفو څخه غواړي، لبعض عُلماء وَائي چې داباب دلته په معنیٰ دمجرد دیٔ، چې عمل دی، یعنی خدایٔ دموږ سره عمل وکړی په لطف سره لکن سره دمبَالغی کذا قال الرضیؒ، او بعض علماء وائی چې باب دمفاعله دلته پرخپل معنیٰ جاری دی، وَلَحِی داباب صرف اشتراك په مصدرکی چې عمل دی غواړی که څه هم نوع دعمل یه مختلفه وی، نومعنیٰ داسی ده چې خدایٔ دِ عمل دمغفرت وکړی چې زموږ دخوا عَمَل دمعصیت وی، اوخدایٔ دعَمَل دا دجنت وکړی چې زموږ دَخوا عمل سَبب ددوږخ وی، وَعَلیٰ هذا القیاس غیره من الاعمال

قَولُہٗ بِلُطفِہٖ، دلطف معنیٰ مهربانی ده که څه سبب یه نه وی قَولُہٗ الخَفِیٗ، اگرچه دخدایٔ لطف جلی اوخفی دَواړه ستہ لکن لطف جلی هغه دی چې ظاهری سَبب وَلری، اولطف خَفی هغه ته وَائی چې بیله کومَه سَببه وی یعنی بیله کم سَببه خدایٔ پرخپل بنده لطف اومهربانی وکړی، او بعض عُلماءوائی چې لُطف جلی دخدایٔ په نعمتوسره د دُنیادی، اولطف خَفی دخدایٔ پـه نعمتوابدی ووسَره داخرت دَی،

فائده: چونکه لطف خفی دخدایٔ پـه هره معنیٰ وی تر لطف جلی فضیلت لری نو ځکه مصنفؒ طلب دلطف خفی وکړیٔ،

« کتبه ورتبه فضل الحق حقانی غفرله الباری »





مصنفؒ وَئیلی دی

# اَن اَعمَلَ مُقَدِّمَةً فِی العِبَادَاتِ تُقَرِّبُ عَلَی المُبتَدِی

ترجمه: ددی التماس یه وکړی چې زه عمل وکړم، یعنی تصنیف کړم یو مقدمه یه عباداتوکی هسی مقدمه

# مَا تَشَتَّتَ مِنَ المَسَائِلِ فِی المُطَوَّلَاتِ

چې نږدی کړی وَه مبتدی ته یعنی نوی زده کونکی دفقه هغه مسائل چې پراگنده اوپاشلی دی په لویٔ اوغټوکتابوکښی یعنی دفقه شریفی،

قوله اَن اَعمَلَ آه داالفظ مفعول د اِلتمَسَ، دیٔ: عمل خویوعَام لفظ دی لکن په قرینه دمقام مراد ځندی تصنیف کول دی، تنبیه: مصنفؒ دعمل لفظ مختاره کړی دی ددی سَببه چې تصنیف هم یوعَمَل دی، فقهی

فَقَولُہٗ مُقَدِّمَةً: دمقدمی معنیٰ هغه ډله چې د مخه ترنورو وی، لکه مُقَدِّمَةُ الجَیش، چې ترعمومی لښکرد مخه تلونکی ډلی ته وائی، مصنفؒ داخپل کتاب ته مقدمه ووئیله اشاره یه وکړه چې داکتاب باید ترنورومطولاتو دفقهی کتابونو دمخکښی دزده کړی پـه میدان کی ودرَول سی، تاچې هغوته لاره خلاصه سی،

قولُہٗ فِی العِبَادَاتِ، عبادت هرهغه عمل ته وائی چې ربجل وعلا ته تقرب په کیږی که فرضی وی اوکه واجب وی اوکه سنت یا مستحب دی:

یه دی کښی مصنفؒ داول الامر څخه متعلم ته اطلاع وَرکړه چې دمنهیاتو لکه زنا، لواطت وغیرها دده پـه دی کتاب کی نسته، قَولُہٗ تُقَرِّبُ آه دا صفت دمقدمة دیٔ والتقریب معناه نزدیک گردانیدن،

قَولُہٗ عَلَی المُبتَدِی، اگرچه دتقریب صِله خود اِلیٰ، لفظ راځی کما فی تَقَرَّبتُ اِلَیہِ، لکن حروف صله یودبَل په ځای کی بی انکاره دَچارَاتلای سی، کما فی التلویح، وحاصل کلام المذکور دادی داکتاب یعنی نورالایضاح دعَباداتو پـه باره کښی هغه مسائل مهمه چې په لویوکتابوکښی پراگنده وی، ومُبتدی ته دفقهی جمع کوی گویا

در ریاب پہ کوزہ کښې جمع کوې، مصنفؒ ویئلي دي

## فَاسْتَعَنْتُ بِاللهِ وَاَجَبْتُهٗ طَالِبًا لِلثَّوَابِ

ترجمہ: پس ما کمک اوتوفیق وغوښتی دخدائ څخہ. اوما قبلوَنہ دهغوی التماس وکړه پہ داسې حال کې زه غوښتونکې دثواب یم دربّ العباد څخہ. یعنی ریا او سُمعت چې دعمل خیر لغوکونکې دي زما مطلب نہ دې» مصنف ویئلي دي

## وَلَا اَذْكُرُ اِلَّا مَا جَزَمَ بِصِحَّتِهٖ اَهْلُ التَّرْجِيْحِ مِنْ غَيْرِ اِطْنَابٍ

ترجمہ: اوزه نہ ذکر کوم پہ دې کتاب کې مگر هغہ مسائل چې لیقین کړې وي اهل الترجیح پہ صحیح والي سره دهغو مسئلو او د اجمع د مسئلو مې کړیده بیله درازوالی» یعنې چې اوږدې خبري او مسائلې زده کړه پہ پرمبتدیانو تکلیف دی. «مُصنفؒ ویئلي دي»

## وَسَمَّيْتُهٗ نُوْرَ الْاِيْضَاحِ وَنَجَاةَ الْاَرْوَاحِ

اوما نوم کښیښو پردغہ کتاب» رڼرافې دپاره دپاره دایضاح دمسائلو فقهیه وو. او نجاة ورکوونکې دي روحانو تہ دطالبانو دفقهي دتاریکی څخہ د شک اود جهل»

## وَاللهَ اَسْئَلُ اَنْ يَّنْفَعَ بِهٖ عِبَادَهٗ وَيُدِيْمَ الْاِفَادَةَ

اوخاص دخدائ څخہ زه سوال کوم د نفع ورکولو پہ دې کتاب سره وبندګانو تہ دخدائ اود همیشہ فائدې رسولو ددې کتاب»

**فائده:** ددرویش عقیده داده چې دمصنفؒ دغہ خواست خدائ قبول کړې دې ولې چې پہ ټوله اسلامي نړۍ کې او پہ ټولو مدارسو دینیه وو کې دنور الایضاح تعلیم اوتعلم کیږي» **پوه سه:** چې ضمیر د «سَمَّيْتُهٗ» راجع دی و «مقدمة» تہ لکن پہ تاویل دکتاب ولې ضمیر مذکر دی او لفظ د «مقدمة» مؤنث دی» او تقدیم د مفعول د «اَسْئَلُ» چې لفظ د «الله» دی دپاره دحصر د سوال دی پرجناب الٰهی او لفظ د «اَنْ» پہ «اَنْ يَّنْفَعَ» کې مصدریه دی ای «اَسْئَلُ النفع» او لفظ د «يُدِيْمَ» عطف دی پر «يَنْفَعَ» ای «اِدَامَة الافادة»





درویش مُحَمَّد عُبَيْدُ اللهِ الْاَمُوْلِی الْكَنْدَهَارِي وائې چې څرنګه چې مصنفؒ پہ متن کې لفظ د اهل الترجیح استعمال کړې نوزه مجبوره یم چې طبقات، او اقسام دفقهاوو دمذهب درو ښیم، تا چې معلومه سي چې اهل الترجیح کمې ډلې تہ وائی:

## دَ فقهاوو طبقات او اقسام

نوواوره!

چې د رد محتار پہ ص $\frac{۷۱}{۷۲}$ کې وائې چې اوله درجه او طبقه د **مجتهدین فِی الشَّرع**» یعنی چې پہ شریعت محمدیؐ کښې مجتهدین وې» لکه څلور امامان رَضِیَ اللهُ تعالیٰ عَنْهُ. یعنی سَیِّدُ الائمة ابوحنیفهؒ» اوحضرت الامام مالکؒ، اوحضرت الامام محمد بن ادریس الشافعیؒ، اوحضرت الامام احمد بن حنبلؒ او دویمه طبقه د **مجتهدین فِی المذهب** یعنی مجتهدین دمذهب حنیفي لکه» قاضي ابویوسفؒ. او امام محمدؒ. او هر هغہ څوک دشاګردانو څخہ دحضرت الامامؒ چې وی» چې قادر وی پر راایستلو د احکامو د فقه شریفي دڅلورو دلائلو څخہ یعنی قرآن عزیز، احادیث نبویه م. اجماع د مجتهدینو او قیاس، لکن د هغو قوانینو سره برابر چې استاذ ددوی یعنی ابوحنیفهؒ ودوی تہ وضع کړیوي که څه هم پہ بعض فروعیه احکامو کښې د حضرت الامامؒ څخہ مخالفت وکړي»

اودریمه طبقه اودرجه د ۳ **مجتهدین فی المسائل**» ده یعنی هغہ مسائل چې د صاحب المذهب څخہ پہ هغہ مسئله کې کومه تصریح نہ وی موجوده» لکه خصافؒ، ابوجعفر الطحاویؒ ابی الحسن الکرخیؒ، شمسُ الائمة الحلوانیؒ، شمسُ الائمة السرخسیؒ، فخر الاسلام علی البزدویؒ، فخر الدین قاضیخانؒ او نور ددوی امثال» نو دغہ ډله د مجتهدینو پہ مسائلو کښې نہ پہ اصولو کښې او نہ پہ فروعو کې مخالفت کوی د خپل صاحب المذهب.

بلکه صرف د هغو مسئلو چې نص د صاحبُ المذهب نه وي جواب موافق د اصولو سره د
صاحب المذهب کولای سي ،، څلورمه درجه او طبقه دَ ،،

۴ اَصحَابُ التَخرِيج. بُولي يعني په مُقلدانو کې د مذهب هغه کسان چې په هيڅ توګه
پر اجتهاد قدرت خو نه لري ،، لکن په سَبب د حفظ کامِل د اصولو د مذهب دوئ قدرت
لري چې تفصيل دَ يو قول مجمَل د صاحِب المذهب دی وکړي چې هغه قول دوه جهتَ لري
نو د يوه جهته تعيين په دوی کولای سِي ،، لکه په هدَايه کښې چې وَائِيُ ،، هذا عَلیٰ تخريج
الکرخي ،، او يَا داسې وَائِيُ دا قول بناء دی پر تخريج درازيٌ :

او پنځمه دَرجه او طبقه ده د ،، ۵ اَصحَابُ الترجِيح : د مقلدينو څخه د مذهبَ،
چې د هغو شان دادی چې يوه روايت ته پر بَل روَايت تفضيل وَرکړي ،، لکه چې د غه
کسان ووائي ،، هَذا اَولیٰ يا هذا اصح روايتً يا هذا اَرفق بالنّاسِ ،، د دې ډلې
څخه دی ابوالحسن القدوريؒ ،، او صاحِبُ الهداية وَامثالهما ،،

او شپږم طبقه دَه ۶ مُقلّدين في المذهب ،، دَه ،، چې دوی تميز کولای سِي دَقوي او دَاقویٰ
او د ضعيف ،، او فرق کولای سی د ظاهر الرواية د نادر الرواية څخه لکه صاحبُ الکنز
صاحب المختارؒ صاحبُ الوقاية ،، وصاحِب المجمع او نورا صحاب المتون المعتبرة د متاخرين
څخه د حنيفيانو ،، او د دوی حال دادی چې اقوال مردودة يا روايات ضعيفه نه نقل کوي
او اوومه درجه او طبقه دَه د ،،

۷ مُقلّدين محض ،، چې هغوی پر هيڅ شئ د مذکوره کار و قدرت نه لري لکه
زمونږ د زمانې عُلماء ،، نو د هغوی شان دادی چې د مذهب کتابونه په مَطالعه کوي او پَه
موافق د هغو سره حکم او فتویٰ ورکوي :

**شِکايَت** زمونږ د زمانې بعض علماء چې څوک د يوې مسئلې پوښتنه څنګه وکړي نو څه هم وَده نه په صحيح توګه حکم نه وي معلوم خو بيا
دَ خپلې خيټې څخه يو څه وَرته وَائِيُ ۔ او دا نه ورته وائي چې په دې مسئله زه نه پوهيږم
او دا هم نه کوي چې پر بَل يو عالم چې دده څخه هم سَل په سَل کې يقين وي ،، چې هغه





عالم ته ما په احکامو د فقهي خَبردی حواله دی وَرکړي ۔ يعني چې ورته ووائيُ چې زه خو نه
يم په دی حکم خبر ته فلانی عالِم ته ورسه چې هغه تر ما په احکامو ښه خبردی ،،
ولې چې په دواړو خَبرو کښې دده نفس اماره خواريږي ۔ په اعتقاد کې د مسائل ۔ او دا ټوله
څخه د تکبر دی چې زمونږ په نفسو کې قرار نيولی دی ، مطلب دادی چې په او سنی عصر
کې چې کم ملا دَ امامت په محراب کښې وَدَريږی هغه د خلکو په خيال کې داوَر کوی
چې جامع العلومِ عالِم يم په عِلم کې چا ته د زده کړی ضرورت نه لرم ،، وَالَی اللّٰهِ المشتکیٰ ،،
مصنفؒ وَئيلی دی

# کِتَابُ الطَّهَارَات

پُوه سه : چې مصنفؒ شروع د عبَاداتو په لمانځه سره وکړه ، د دې سَببه چې لمونځ
متصل د ايمان سره ذکر سوی دی ، لِقَولِهٖ تَعالیٰ : اَلَّذِيْنَ يُؤْمِنُوْنَ بِالْغَيْبِ وَيُقِيْمُوْنَ الصَّلٰوةَ ، او لمونځ
په وجوب کې هم اول واجب دی پس له ايمانه . ولې چې اول واجب شهادتين دی او دوهم
لمونځ دی او بيا زکوٰة ، او لمونځ په افضيلت کې هم پس له ايمان څخه افضل عبَادت دیٔ ۔
په دليل د دی قول د عَليهِ الصَّلوٰةُ وَالسَّلامُ : چې چا پوښتنه څنګه وَکړه ، اَیُّ الاَعمَالِ
اَفْضَلُ بَعْدَ الاِيْمَانِ ،، کوم عمل افضل دی پس له ايمان څخه ، قَالَ اَلصَّلٰوةُ لِوَقْتِهَا ،،
لمونځ کول دی پر خپل وخت ،، او بيا نو چونکه طهارت مِفتاح الصَّلوٰة کما وَرَدَ فی الحديث ،،
يعنی شرط يه دی او شرط پر مشروُط د مخه وی ،، نو شروع څکه په ټولو کتابو کښې فقهي
د بيان څخه کوی ،، درمختار ، رد محتار ،،

وَاوره : چې د کتاب لفظ مصدر دی په معنیٰ د جمع کولو ،، نو کتابو ته چې کتابونه وَائيُ
د دی جهته چې په هغو کښې جمع د حروفو او د کلما تو کيږی ،، او په اصطلاح د فقهاوو
او نورو يوه ډله دَ خبرو ده چې مستقله وی او پر ډيرو انواعو د مسائلو مشتمله
لکه دا کتاب الطهارة ،، چې پر طهارت داود اسه ۔ او پر طهارت د غسُل ، او پر طهارت

داوبو اوپر طهارت دخاوروچې تيمم دی مشتمل دی» اوگاهې دکتاب اطلاق داسې ځای هم کيږي چې په هغه ځای کې انواع مختلفه دمسئلو نه وي. اوپه باب پکښې وی اونه فصل، لکه کتاب اللقطة، کتاب الأبق، کتاب المفقود» كذا قَالَ الطحطاوي
طَهَارَت په زَوَر د طاء په معنیٰ دَنظافت دی » اوپه ضمه دطاء هغه اوبودی چې پرې اودَاسَه یا تهِ سِي.» اوپه زیر د طاء آلتِ تهِ دَ پاکی وَائي لکه اوبه، خاوري. قاله الطحطاوي
**پوښتنه**: چونکه طهارت اوپاکی شرط د لمانځه دی نود هغه چاچې په قصد لمونځ بې اوداسه وکړي حکم به څه دی: ت دجا
**جواب**: په سیر وهانیه کې وَائي : وَفِي كُفْرِمَنْ صَلَّى بِغَيْرِطَهَارَةٍ مَعَ الْعَمَدِ خلف الروايات يسطره اوصاحب درمختار په ص٧٥ کې داسې وَائي، چې ددغه سړي کافر گنړل روایت دنوارودیٔ. اوپه ظاهر روایت کې کافر نه دی، لکن داخلاف هغه وخت دی چې داسړي چې لمونځ بې اوداسه کوي.» دسببه دسستي یا جهل وي یعنې پرْ وجه د استخفاف بالدین اود اهانت په لمانځه یاد استهزاء او مسخرو پر طریقه نه. اوکه چیري پر دغو طریقو به لمونځ بې اودسه وکړي بیا هغه سړي کافر بالاتفاق دیٔ.
**تنبيه**: بعضې طالبان دیوچا دَ لمانځه پیښنې کوي پروجه د مسخرو او د خند ولوده نورو طالبانو، نوهغه کافر دی اوچې پرخاندی هغه هم تو له کافران گرځي»

مصنفؒ وَئیلی دی:

## اَلْمِيَاهُ الَّتِي يَجُوْزُ التَّطْهِيْرُ بِهَا سَبْعَةُ مِيَاهٍ

هغه اوبه چې رواوی پاکول په هغو سره یعنې اودس کول غسل کول، کالی پریولل چې مړا روی اوه قسمه اوبه دی، مِیَاهُ جمع دماءٌ» مصنفؒ وَئیلی دی»

## مَاءُ السَّمَاءِ وَمَاءُ الْبَحْرِ وَمَاءُ النَّهْرِ وَمَاءُ الْبِئْرِ

داسمان اوبه یعنې دباران اوبه، اود دریاب اوبه، اود وَلې اوبه، اود څاه اوبه





## وَمَاءُ ذَابَ مِنَ الثَّلْجِ وَالْبَرْدِ وَمَاءُ الْعَيْنِ

هغه اوبه دی چې دَ ویلیدو څخه دواوري پیداسي، اویا دویلیدو څخه د ژلیو پیداسي اواوبه دچینی» **سَوال**: مصنفؒ يجوز وويل آه چې معنیٰ یه روا والی دی نوکه یو سړی دبل سړي په مخصوصو اوبو سره اودس بیله اجازی دمالِك تازه کړي داتطهیر خو نه دی روا نوباید په دغه اوداسه لمونځ نه وي صحیح اوصحیح دیٔ. **جواب**: مراد دَجواز څخه صحت دی نود غه اودس په مغصوبه اوبوسره صحیح دی اما روا اوجائز نه دیٔ.
**فائده**: دصحیح عمل اودجائز څه فرق دیٔ! **جواب**: صحت دَعمل دادی چې دَشریعت دلاری سره برابر وی اوجواز دعمل دادی چې سبب دعذاب الهی وَنه گرځي. نودغه اودس په مغصوبه اوبوسره صحیح دی ولې چې په شریعت کښې بنو وَل سوی اوداسه پرطریقه دی اوجائز نه دیٔ. ولې چې تصرف په ملك کی دبل چا بې اجازه ناروادی اوموجب دَعذاب الهی دیٔ:
**فائده**: مصنفؒ تصریح په ماءالبحر سره ددی سببه وَکړه چې چا به توهم کاوه چې دَدریاب په اوبوبه طهارت نه وی روا. ولې په دی چې دهغو بدبوئی لکه لبعض صحابهؓ چې داغسې وَائي، طحطاوي» په ص١٩ د سیدؒ څخه داسې یو سؤال نقل کړي چې تو له داوبو اقسام چې مصنفؒ ذکر کړي مَاءالسماءِ دی» نوو هغه نورو اقساموته داوبو څه ضرورت سته» قَالَ اللّٰهُ تَعَالىٰ: اَلَمْ تَرَ اَنَّ اللّٰهَ اَنْزَلَ مِنَ السَّمَاءِ مَاءً فَسَلَكَهُ يَنَابِيْعَ فِي الْاَرْضِ» ترجمه: ته نه گوری چې په تحقیق سره خدایؒ را نازل کړیدی» داسمان څخه اوبه بیا دغه اوبه رسولی دی چینی په مځکه کی» عینیؒ ددی سوال جواب داسې راکړي دیٔ. چې داتقسیم داوبو بناء پرعرف دخلگو دیٔ.
**قَوْلُهُ وَمَاءُ ذَابَ** آه. مراقی الفلاح او طحطاويؒ وَائي چې تخصیص په دَواوری او ژلیو وکړي له دی کبله چې یو قسمه قُدرتی مالگه سسته چې په ژمي کښې وریږي اوپه دوبې کې منجمده کیږي.

نو په دغه ویلی سوی ماګه او دس غسل نه دی رَوَا البته د مرداری جامی یا بدن په پریولو یې روا دی

قوله وَمَاءُ العَیْنِ آه مصنف په شرحه کی ددی کتاب نُورُ الایضاح چی مَرَاقی الفلاح

یې نوم دی وائی: چی ماء العین چی طهارت په روا دی هغه اوبه دی چی پر محکه بهیږی

اوکه نه بهیدلی نو حکم یې د حوض دی چی لږ په لږ ګډ کیږی به وی - ورنه اودس

نه دی په روا مګر په لوښی یې واخلی اودس په تازه کړی: هذا حاصل کلامه.

قال المصنف

# ثُمَّ الْمِیَاهُ عَلٰی خَمْسَةِ اَقْسَامٍ

پس له دی اوبه پر پنځه قسمه دی. یعنی هر قسم یې خپل وصف خاص لری لکه چی بیان

به راسی پوهه سه: چی لفظ د ثم صرف د پاره د ترتیب فی الذکر دی ، او دا تقسیم

د اوبو په اعتبار د اوصافو د اوبو دی - په اعتبار د ذات د اوبو نه دی - م. ط،

# طَاهِرٌ مُطَهِّرٌ غَیْرُ مَکْرُوْهٍ

یعنی په ذات کی پاکی، یعنی بل شی پاکوونکی، که حدث حکمی وی اوکه نجاست ظاهری وی، یعنی استعمال یې مکروه نه وي،

# وَهُوَ الْمَاءُ الْمُطْلَقُ

یعنی چی داسی یوشی نه وی ورسره ګډ سوی چی په هغه مُقید وګرځی ،، م،، فائده: اودس تازه کول او غسل کول په اوبو د زمزم روادی زموږ په نیز، بیله کراهته بلکه ثواب لا ډیر لری ،، لکن مصنف د لبابُ المناسِك وائی چی اودس تازه کول یا غسل کول په اوبو د زمزم هله مکروه نه دی چی سړي اودس لری صرف د پاره د تبرك په لمبیږی یا اودس تازه کوی،، او نه بنائی چی بی اودسه سړي په هغو اوبو اودس تازه کړی یا جنب سړي دی په هغو اوبو غسل وکړي او نه دی هم استنجاء په وهی،، او نه دی مردار کالی په مینځی،، او نه دی په نجس ځای کی استعمالوی،، ط،،

اَللّٰهُمَّ اغْفِرْ لِمُؤَلِّفِهٖ وَ لِکَاتِبِهٖ وَ لِلْمُؤْمِنِیْنَ ط





نـ لکن

# وَطَاهِرٌ مُطَهِّرٌ مَکْرُوْهٌ

یعنی په ذات کی پاکی دی، د بل شی پاکوونکی وی اوکه خبث یعنی نجاست وی، یعنی استعمال یې مکروه وی لکن مکروه تنزیهی وی چی د امذهب د امام کرخی دی. ولی چی پیشی وغیره د نجس شیانو د خوړلو څخه نه ساتی او فقیه ابو جعفر الطحاوی یې مکروه تحریمی بولی. علت یې نجاست د غوښو د هغو دی.

# وَهُوَ مَا شَرِبَ مِنْهُ الْهِرَّةُ وَنَحْوُهَا

او دا هغه اوبه دی چی پیشی چیننګ څندی کړی ،، یا مثل د پیشی لکه چرګه چی ایله وی،، یا ماریا موږك یا باز یا خرخك وغیره من سباع الطیر،،

## فَوَائِدُ شَتّٰی

مراد د پیشی څخه کورنۍ پیشو ده چی اهلی یې بولی،، ولی چی د وحشی پیشی پس خورده نجسه ده،، لعدم الاختلاط مع الناس فلا عذر ، او دا کراهت هم مذهب د امام اعظم او د امام محمد دی او د امام ابو یوسف په مذهب کی هیڅ مکروه نه بولی،، او صحیح مذهب د امام کرخی دی. چی مکروه تنزیهی یې بولی،، کما قال المصنف فی المراقی،، او دا کراهت د استعمال د دغو اوبو هم هلته دی چی مآء مطلق وغیره موجودی وی،، اوکه هغه اوبه نه وی نو بیا هیڅ کراهت نسته،، قاله الطحطاوی فی شرح المراقی،،

# وَکَانَ قَلِیْلًا

او وی هغه اوبه چی پیشی وغیره خوړلی څندی کړي وی لږ،، پوهه سه: چی د لږ او ډیر اندازه به په وروسته کی راسی،، ان شآء الله تعالٰی،

# وَطَاهِرٌ غَیْرُ مُطَهِّرٍ وَهُوَ مَا اُسْتُعْمِلَ لِرَفْعِ حَدَثٍ

او بل قسم اوبه هغه دی چی پاکی وی یعنی بل شی نه په مردار یږی مګر پاکوونکی د بل نه وی،، او دا هغه اوبه

دی چی استعمال سوی وی دپاره دپورته کولو دبی اودسیا،

## اَوْلِقُرْبَةٍ كَالْوُضُوْءِ عَلَى الْوُضُوْءِ بِنِيَّتِهٖ

اویا د پاره دثواب لکه اودس تازه کول پس له اودس در لو وَلو مخه په نیت داوداسه پوه سه: چی رفع دحدث، اوقصد د استعمال، دپاره دثواب په ما بین کی عموم وخصوص من وجه سره لری، ولی چی په داسی صورت کی چی محدث اودس تازه کړی، اوقصد داوداسه یه هم وی، نو بی اودسیا یه هم پورته سول او ثواب هم خدای پاك ورکوی، نو دوارو سره جمع سول، او په داسی صورت کی سړی اودس لری، اوپه قصد او اراده اودس تازه کړی، ثواب خوسته په سبب د نیت، او رفع دحدث نه په کیږی ولی چی حدث خو موجود نه وو، نو به پورته څرنګه سي،

اوکه سړی محدث وی، او د تَبَرُّد (یخ والی) په قصد اودس تازه کړی، حدث خو یه پورته سو مګر ثواب یه نسته لعدم النية، او په دی دروسر وصورتو کی او به مستعمل ګرځی، اوکه چیری یو سړی چی اودس لری مګر په نیت د تبرد اودس تازه کړی نو هغه او به مستعملی نه دی. ولی نه ازاله دحدث پکښی سته ځکه چی اودس خو یه درلود او نه ثواب په کښی سته ولی قصد او نیت داوداسه یه نه وو،

### «فوائد شتیٰ»

**قوله قُرْبَةٍ**، قربت هغه فعل ته وائی چی خدائ پاك ثواب پر ورکوی بنده ته، او د ثواب مدار پر نیت دی، لِقَوْلِهٖ عَلَيْهِ الصَّلٰوةُ وَالسَّلَامُ «اِنَّمَا الْاَعْمَالُ بِالنِّيَّاتِ» رواه البخاری وغیره چی د دی حدیث مبارك ترجمه په نیزد حنیفیانو، اِنما ثوابُ الاعمالِ با النیات، ده

**قولهٗ كَالْوُضُوْءِ**، پوه سه چی اودس پر اودس، داسی ثواب لری چی په اول اودس سره یو داسی عبادت وکړی چی تطهیر وهغه ته مشروع وی، لکه لمونځ یا مسحه د مصحف، او یا مجلس بدل کړی لکن نیت دقربت وکړی ...





اوکی مجلس بدل کړی او نیت دثواب یه په نوی اوداسه کښی نه وو، نو دا اسراف دی اواسراف حرام دی. او او به هم مستعملی نه ګرځی. اوکه چیری مجلس یو وی او په اول اوداسه یه کم عبادت نه وی کړی. نو په دوهم اوداسه کښی که څه هم نیت دقربت او ثواب وکړی مکروه دی، ولی چی دا اسراف دی او اسراف حرام دیٔ"

نو مراد د کراهت څخه چی په بعض کتابو کښی د فقهی راغی کراهت تحریمی دی، ط "

سَوال! په ګنج کی وائی ـــ ورتوای خواجه برلب جوئی "نیست اسراف برچه میشوئی"، نو که یو سړی دولی پرغاړه په نیت د وضوء علی الوضوء، دوهم اودس تازه کړی نو ولی اسراف دیٔ، **جَواب**: چی سید سندؒ ویلی دی، وَلَو عَلٰی شطِ النهر، یعنی که څه هم اسراف او بوخو نسته لکن څه دولی پرغاړه وی هم اسراف دی، پر شَطِ النهر، که څه هم اسراف دعمر عزیز خو دیٔ:

سَوال: یو سړی چی اودس لری نو دهغه پر اندامو خونه نجاست حقیقی سته او نه نجاست حکمی سته نو په نیت دقربت ولی او به مستعملی ګرځی. **جواب** چونکه دغه سړی نیت دقربت وکړی لکه په اول اوداسه کښی نو وصف ته داو بو یه تغییر ورورساوه یعنی مستعملی وګرځیدی، ط

**بنهانه فائده** یو بی اودسه سړی چی یو اندام پر یولی فقط دغه اندام او به مستعملی سوی ولی چی فرض په ساقط سو یعنی که دی نور اندامونه ور وسته ومینځی د دغه اندام پر یوله نه غواړی. لکن زوال د حدث دهغه اندام څخه نه دی سوی. ولی چی زوال دحدث د ټولو اندامو څخه په یو ځلا کیږی فقهاءؒ وائی چی بی اودسیا او طهارت تجزیه نه قبلوی. رد، ط، ب، ع،،

مصنفؒ په مراقی الفلاح کی وائی چی دا هم قربت دی چی د ډوډی خوړلو څخه مخکښی یا وروسته لاسونه پری مینځی نو دغه او به هم مستعملی ګرځی، په دلیل د دی حدیث، اَلوضوء قبل الطَّعام بَرَکةٌ و بعدهٗ ینفی اللَّمم، اودس یعنی لاس پر یوله د مخه تر طعام برکت دی او پس له طعامه نفی کوونکی دی دلیونتوب دی، ط "

مسئله: که یو سړی لاسونه ووینځي ته په دی سبب پریولی چې خیرن وه نو پرینځل دا داء د سُنت مګر اودس یې درلودی، نو هغه اوبه مُستعمل نه دی، دغه رنګه که سړی پاکه جامه د خیرن والي د سبب پریوله اوبه یې مستعملی نه دی. م،

پوښتنه: چې په مُستعملو اوبو کښې بعض فقهاءؒ دری روایت راوړی دي، یو روایت چې مُستعملی اوبه نجس دی نه طاهر دی او نه مُطهر.

بل روایت دا دی چې طاهری دی یعنی نجس نه دی چې بل شئ دی په مردار سی لکن مطهر نه دی چې اودس په تازه سی، او بل روایت دا دی چې دا اوبه هم طاهری پاکی دی او هم مطهر یعنی بل شئ هم په پاکیږی.

لکن فقهاء او مشائخؒ د عراق وائي، چې په اوبو مُستعملو کښې هیڅ اختلاف د روایت په مذهب کی نسته. بلکه په نیز دامامانو د مذهب په اتفاق مُستعملی اوطاهری دی پاکونکی نه دی، شیخ الاسلام علی البزدویؒ په شرح کی د جامع صغیر وائي چې دغه د عراقیانو رأیه زمونږ هم خوښه ده، او هم دغه رأیه په کتابو کی د امام محمدؒ ذکر کړه سویده، او دغه رأیه خوښه کړی محقق علماوو د ماوراء النهر،

په مجتبیٰ کی وائي چې صحیح روایت د ټولو اماما نوؒ څخه د مذهب هم دغه دی چې ماء مستعملی طاهری دی مطهر نه دی، لکن د حسن بن زیاد څخه یو روایت سته او هغه روایت شاذ دی چا عمل نه دی په کړی، چې وائي ماء مستعملی طاهر او مطهر دي کذا فی مجمع الانهر،

فائده: مُستعملی اوبه که څه هم په مذهب کی پاکی دی، لکن چښل یې مکروه دي او یا کتهوتی اچول مکروه دی، او یا اوړه خمیره ول مکروه دی، تنزیها ولې چې طبع انسانی نفرت ځنی کوی. ط، مصنفؒ وئیلی دی.

## وَيَصِيرُ الْمَاءُ مُسْتَعْمَلًا بِمُجَرَّدِ انْفِصَالِهِ عَنِ الْمَسَاجِدِ

او ګرځی اوبه مُستعملی په نفس جلاوالی سره د بدن څخه یعنی کی څه هم یو ځای یې قرار نه





دی نیولی، مصنفؒ په مراقی الفلاح کی وائي چې دا مذهب صحیح دی دا د دی سببه چې د بدنه ترجلا والی د بدنه څخه خو ضرورت دی او پس له جلا والی څخه ضرورت نسته. او طحطاوی وائي چې دا مذهب د عاموا و ډیرو فقهاوو دی. او په هدایه کی هم دا مذهب صحیح ګنړل سوی دی. او فقیه ابوجعفر طحاویؒ چې اعلم علماوو دی په مذهب د ابوحنیفهؒ کی، او بعض مشائخ د بلخ وائي چې اوبه هلته مُستعملی بللی کیږی چې یو ځای قرار ونیسی

سوال: د دی اختلاف څه فائده ده

جواب: فائده یې دا ده چې یو سړی چې اودس یې تازه کاوه یو اندام ئې پریولی او بیا چې د هغه اندام څخه جلا سوی نورو اندام و بهیدلی بیله دی چې اودس کونکی دی پلاس پر بهیولی وی. نو په دغو اوبو هغه بل اندام پاک سوا وکه نه؟ نو د مصنفؒ او صاحب هدایه پر رایه هغه بل اندام نه پاکیږی. ولې اوبه چې د اول اندام څخه صرف جلا سوی مُستعملی ګرځیدی. او د مستعملو اوبو حکم د مخه تېر سو چې شئ نه په پاکیږی او د طحاویؒ او د مشا ئخو د بلخ پر مذهب هغه بل اندام په پاک سو. ولې چې اوبو خو تر او سه قرار نه دی نیولی نو مستعملی نه دي. قال المصنفؒ.

## وَلَا يَجُوزُ بِمَاءِ شَجَرٍ وَثَمَرٍ وَلَوْ خَرَجَ بِنَفْسِهِ مِنْ غَيْرِ عَصْرٍ فِي الْأَظْهَرِ

او نه دی روا اودس په اوبو د ونو او په اوبو د میوو که څه هم راووزی د غه اوبه بیله نښتیځلو په ظاهر روایت کی

فائده: مصنفؒ په مراقی الفلاح کی د، لایجوز تفسیر په لایصح سره کړی دی له دی سببه چې عدم جواز چې معنا یې حرمت دی. عدم صحت لره چې معنا یې فساد دی مستلزم نه دی، لکه لمونځ په مغصوبه ځمکه کی روا نه دی. یعنی حرام دی او مُصلی په ګناه ګار دی، مګر صحیح دی بیا قضا نسته، وقد مر من قبل،

پوښتنه: چې د دی ایت مُبارک: وَالنَّجْمُ وَالشَّجَرُ يَسْجُدَانِ، په تفسیر کښې مفسران وائي چې نجم هغه نبات دی چې پر تنه نه پورته کیږی. لکه ختکی، هندوانه،

بادرنګ، مُرغه، او نورمیوه داره جُرنګان یا وابنه»
اوشجر هغه درختی ته وائی یعنی چی تنه لری لکه توت، انار، سیب وغیره» لکن د مصنف مراد دلته دشجر نه نفس نبات مراد دی که تنه لری او کی نه لری؛ ولی چی د نفس نبات په اوبو سره اودس نه دی صحیح ـ او د ثمر نه نفس میوه ده که دخورلو وی او که نه وی حتی تولو فواکهو او تولو ګلانو ته شامل سی؛ قاله القهستانیؒ؛

**فائده:** په دغو اوبو سره چی اودس نه دی روا لردی سببه دغه چی اوبه مطلق اوبه نه دی بلکه مقیدی اوبه دی کما لایخفیٰ» امام زیلعیؒ شارح الکنز په دغو اوبو دس روا بولی ولی چی دا اوبه خالصی رونړی اوبه دی دبل شی سره په امتزاج نه دی سوی.
صاحب د بحرالرائق وائی چی په دی اوبو کښی امتزاج کامل موجود دی ـ او مصنفؒ هم په مراقی الفلاح کی امتزاج کامل وائی.

**قوله وَلوخَرَجَ بِنَفسِهِ اه** لکه تاکان چی تاک بیری کی او اوبه څندی څخیږی.
**پوهسه:** چی مصنفؒ رد کوی پر هغه بعض فقهاوو چی وائی که چیری اوبه خارج بنفسه سوی اودس په روا دی. وجه درد په دا ده چی په سبب دخروج بنفسه خودا اوبه ماء مطلق نه ګرځی بلکه ماء الکرم په بولی مثلاً نو ماء مقیدی دی» او صاحب هدایه او زیلعیؒ او صاحب تنویر هم پر دغه رایه دی چی په خارج بنفسه سره هم اودس نه دی صحیح»

**پوښتنه:** تولو فقهاءؒ او مصنفؒ هم پر دی مذهب دی چی په تولو مائعاتو طاهرو سره ازاله د نجاست حقیقی کیږی لکه په ماء مطلق سره» نو ازاله د نجاست حکمی چی حدث دی باید په دغو مائعاتو سره وکړه سی، لکه په ماء مطلق سره نو وجه د فرق څه ده»

**جواب:** فرق په دا دی چی نجاست حقیقی اجزاء په پریولو که مطلق اوبو او که په نورو مائعاتو سره د ځای او یا د بدن څخه وزی نو ځوجامه او بدن پاک وو» او په نجاست حکمی کی خو اجزاء محسوسه د نجاست حکمی په اعضاوو پوری قائم نه دی حتی چی په غسل د مائعاتو زائل سی؛





نو ازاله د نجاست حکمی پر منصوصو اوبو حصر ده چی هغه ماء مطلق دی» او مقید اوبه نه قیاسیږی» حاصل دا چی حدث امر شرعی دی چی حکم د نجاست شارع ورکړی دی په منع کی د لمانځه ونحوه» او شارع د هغه دازالی دپاره آله مخصوصه مقرر کړی ده چی ماء مطلق دی»، لکه چی بیان یه مفصل تیر سو» نو قیاس د ماء مقید و نه دی پر روا»

قَالَ المصنفؒ **وَلَا بِمَاءٍ زَالَ طَبعُهُ بِالطَّبخِ**
وئیلی دی مصنفؒ او نه اودس او طهارت روا دی په هغو اوبو چی طبیعت دا اوبو څندی زائل سوی وی په سبب د پخیدو دیوشی پکښی»

**پوهسه:** چی طبع دا اوبو بهیدل دی» او رقت دی» او د چنبونکی په او بیدل دی، او د نبات په شنه کیدل دی.

**فائده:** مصنفؒ قید د طبع وَوَایه ددی سببه چی یو سړی که په اوبو کښی نخود، یا باغلی، وغیره صرف د نرم والی دپاره خشته کړه او وی نه ایشول اودس په روا دی کیه څه هم رنګ ته د اوبو تغیر رسولی وی ترهغو چی رقت او سیلان یه باقی وی»

**تنبیه:** ما تفسیر د طبع الماء په رقت او بهیدلو او د نباتاتو په شنه کولو او بیدلو سره وکړی په متابعت د مصنفؒ چی په مراقی الفلاح کی دغسی تفسیر کړی دی ورنه په عامو کتابو کښی دفقهی شریفی طبع د اوبو یوازی رقت دی» او سیلان یه ګڼلی سوی دی» او د عامو کتابو خبره هم صحیح ده» ولی چی د تریخ او تروه دریاب په اوبو کښی خوارُوادی او انبات فته ـ نو په هغو اوبو باید اودس روا نه سی»، او سره ددی چی مصنفؒ روم بی (او بیدل) په ماء البحر سره اودس روا بللی وو؛

**تنبیه:** اخر مصنفؒ دا عبارت» بِمَاءٍ زَالَ طبعه بالطبخ» مطلق ووایه چی مفاد یه دا دی چی سره د طبخ که رقت او سیلان باقی وو، بیا نو اودس په روا دی لکن اصلاً مسئله دا ده، که چیری په طبخ سره نظافت مقصود وو لکه لوبیا، او نخود او باغلی» چی په اوبو کښی وایشول سی که څه هم د اوبو رقت او سیلان باقی وی اودس نه دی په

رَوا،، بِکمَال الامتزاج، البته که دَطبخ ځخه مقصُود نظافت وو لکه بَروځَه، سِدر، وغیره نوپه دغه صورت کی که اوبه ختمه سوی وي. اود طبع سَیلان اورقت ځخه وَتلی وي نواودس نه دی په رَوا اوکی رقت اوسَیلان بَاقی وو اودس په روادی ذکره ط نا قلاً عن س ص۱۹

قَالَ المصُنف اَوْ بِغَلبَةِ غَیْرِہٖ عَلَیْهِ وَ الْغَلبَةُ فِی مُخَالَطَةِ

اویاپه غلبه دَغیر داوبو پر اوبو بَاندی. اوغَلبه په گډوَالی کی دَوَجوشیَانو لکه

اَلجَامِدَاتِ بِاِخْرَاجِ اَلْمَاءِ عَنْ رِقَّتِهٖ وَسَیَلَانِهٖ

زعفران، خُرمَا، انگور، انار، وغیره په ایستلو دابودی دَرقت اوبَهیدو ځخه. یعنی دومره ډېر دَا وچ شیٔ ورَولویږی چې اوبَه ختمه سی اَونه بهیږی.

وَلَایَضُرُّ تَغَیُّرُ اَوْصَافِهٖ کُلِّهَا بِجَامِدٍ کَزَعْفَرَانٍ وَفَاکِهَةٍ

وَوَرَقِ شَجَرٍ اوضرر نه کوی متغیروَالی دَټولو اوصافو داوبو په جَامِد شی سَره لکه زعفران یا فاکهه یعنی میوه د درختی او بلگونه دَدرَختی.

پوښتنه: چې اوصاف داوبو درې دی، رنګ، خوند، بوی،، دزعفرانو یا دنورو میوو په گډوَلو سَره رنګ، خوند، بوی،، ټوله بَدلیږی، اوو اُوره چې دجامدَاتو ځخه مراد هغه جامدَات دی چې پاک وِی،،

نوځواب چی اوبَه ختمه سِی اوسیلان نه کوی. نوکه سَرې جامه پَه مینځی داوبدن ځنډ وزی اوکه بَدن په مینځی پر نه بهیږی نه. اوداوَاره په پاکولو کښی دجَامی یا اندامو شرط بالاتفاق دی،، قوله کزَعفَرَان آه په قنیه کښی وَائی که زعفران دومره ډېر او بُوتی واچول چې دَجامی رنګی په کیدَل اودس نه دی په رَوا. اوکه لږ وَه صرف اوبه یه زړې کړی وی لکن رَنګ ریږی نه په کیدَله بیَا اودس په رَوَادی،، ط ص۲۱.





قال المصنف وَالْغَلَبَةُ فِی الْمَائِعَاتِ بِظُهُوْرِ وَصْفٍ وَاحِدٍ

اوغلبه په مَائع شیانو کی یعنی چې بهید ونکی شیٔ وي. په ښکاره کیدو دیوه وصف دهغه مائع شی

مِنْ مَائِعٍ لَهٗ وَصْفَانِ فَقَط

په دی سرَائي چې یوصفت دهغه مائع ښکاره سی کم مائع چې هَغه دوه وصفه لری فقط،، یعنی دریم وصف نه لری،، قَالَ المُصَنف.

کَاللَّبَنِ لَهُ اللَّوْنُ وَ الطَّعْمُ وَلَارَائِحَةَ لَهٗ

لکه شیدی چې دوه وصفَ لری یعنی رَنګ غیرداوبو د رنګه ځخه اوخوند لري چې اوبَه یه نه لری، حَاصِل دَا چې که د شیدُو دواړه وصفو ځخه یو هَم که پر اوبو ښکاره نه سو، اودس په رَوادیٔ اوکی یو وصف ښکاره سو اودس نه دی پَه رَوا.

مسئَله: که مخالط یو وصف دَرلودی، لکه هند وانه، ختکی، شین کدو چې د هَغو اوبه صرف په خوند کښیٔ سَاده اوبو ځخه مخالف په رنګ کښی یوشیٔ نوکی هغه مخالف وصف ښکاره سو اودس نه دی په رَوا، ط، رد،، اوکه پَه عادی اوبو کښی خوند هم نه سُو ښکاره نو اودس پَه روادیٔ. قَالَ المُصنفُ؛

وَبِظُهُوْرِ وَصْفَیْنِ مِنْ مَائِعٍ لَهٗ ثَلَاثَةٌ کَالْخَلِّ

اوغلبه دمَائع پَه ظهور د دوو صفتو کښی کیږی. په هَغه مائع کښی چې درې وصف لری لکه سرکه چې هَم رنګ جدا داوبو سه لری. اوهم خوند اوهم بوی،، نوکه دسُرکی دوه صفت پر اوبو ښکاره سَوه اودس یه نه دی رَوا، اوکی فقط یو وَصف ښکاره سو بیَا اودس په رَوَادی.

اللّٰهمّ اغفر لمؤلفه ولکاتبه کتبه فضل الحق حقانی غفرله

قال المصنفؒ

## وَالغَلَبَةُ فِی اَلمَائِعِ الَّذِی لَاوَصفَ لَهٗ کَالمَآءِ المُستَعمَلِ

اوغلبه په هغه مَائع کښې چې هېڅ وصف نه لري، لکه مُستعملې اوبه وَلې چې په استعمال سره
نه داوبُو خوند بَدلیږي اونۀ رنګ اونۀ بوئ، او اوبه مستعملې خو پر صحیح روایت پاکې دا
مګر اودس نه دی په رَوَا ه

## وَمَآءُ الوَردِ المُنقَطِعُ الرَّائِحَۃِ تَکُونُ بِالوَزنِ

اویا اوبه د ګل ګلاف چې بوئ یه قطع سوی وی یعنی په مرورد زمان، نو غلبه یه پر وزن معلومیږي
ولې چې په وصف خویه غلبه نه معلومیږي چې وصف خونه لري. قال المصنفؒ

## فَاِن اِختَلَطَ رِطلَانِ مِنَ المَآءِ المُستَعمَلِ بِرِطلٍ

بس که چیري ګډي سوي دوه رطله د مستعملو اوبو په یوه رطل د مطلق اوبو نو اودس یا نور

## مِنَ المُطلَقِ لَایَجُوزُ بِہِ الوُضُوءُ وَبِعَکسِہٖ جَازَ

طهارت لکه غسل نه دي سره روا، ولې چې ماءِ مستعملې پر ماءِ مطلق بانډې ډیرې دي، او د عکس په صُورت
کې یعني چې دوه رطله مطلق اوبه وي او یو رطل مُستعملې اوبه وي طهارت په رَوادئ
**پوه سه**: چې مصنفؒ پخپله شرحه کښې داسې وَئیلې دي.. او که دا دواړي اوبه
یعنې مستعملې اوبَه او مطلق اوبَه سره برابرې وي،، د دې حکم خو په ظاهر الروایة کې نه دی
راغلی مګر مشائخ وائې چې د دې حکم هم د مغلوبو اوبو دی یعنی اودس نه دی په رَوا، د احتیاط
د وَجهې مثـ۲۰
**مسئله**: قَالَ فی الدر المختار» او که چیري ماءِ مُستعملې او ماءِ مطلق جامِد یخي وي نو
اعتبار یه ښخانت لره دی یعنی بنډوالې لره آه **قَولُهٗ تَکُونُ بِالوَزنِ** آه امام طحطاویؒ
وائې دا اعتبار د وزن هلته دی چې اوبه مُستعملې په او بو مطلقو کښې توی کړي. اویا





یو سَري په مطلق اوبو کښې غوټه سي»
**فائـدَه**: په ډیرو کتابو کښې د فقهې شریفې وَائې که جنب سَړي لاس یا پښه په اوبو
کې ووهله اوبه مرداری سوي» لکن دا حکم بنا پر هغه مذهب دی چې مُستعملې اوبه مرداری
بُولي. او دا روایت شاذه دی» او پر مختار مذهب چې مُستعملې اوبه پاکې بولي صرف مطهر
نه بولي هغه اوبه نه دی مرداری» ط »

## نادره مسئله

په بحر رَائق کې وَائې په بحث کښې د مُستعَملو اوبو چې په مُطلق
اوبو ګډ سی» او اعتبار وزن لره دی» اذا عَرِفتَ هٰذا، چې تاد
محنی بیان نږده کړي» نو منع مکوه داود اسه یا غسل کولو څخه په هغه کښې حوضو یا تالابو
کې چې په مَدرسو یا کورو کښې جوړ سوي وي» یعنی تر عشر فی عشر کم وي» ولې چې فرق
نسته په مابین کښې د دې چې اوبه په خارج کښې استعمال سی. او بیا په مطلق اوبو کښې توی
سي. او د دې چه سَړي په اُوبو کښې غوټه سی» یا اعضاء غوټه کی» ولې چې په صورت کی د
غوټه کید و هغه اوبه مستعملې ګرځي چې دَدَه د اعضا وو څخه جلا سي» او یا د ده د بدن
سره مُلاقی سی فقط» او شک نسته چې د غه قَدر اوبه خو لږ دی نسبت و باقی اوبو ته.
د حوض یا تالاب» او بحر زیاته کړي ده چې قول د هَغو بعضو کتابو چې وَائې داسې نه ده رَوا
قول ضعیف بناء ده یعنی چې اوبه مُستعملې مرداری بولي» اِنتہی»
امام طحطاویؒ وائې چې حاصل دَقول د بحر دادئ، چې اودس یا غسل په دَغو کچنې حوضو کښې
رَوادی تر هغو چې غالب ګمان د سړي نه وي چې ماءِ مُستعملې ډیرې او برابرې دَنورو اوبو
ګرځیدلی دی او یا یه غالب ګمان دا نه وي چې په دَغو کچنې حوضو کښې نجاست لویدلی دی ص۲۰

## دَرِطل دَمقدار بیَانُ

هَدایه ص۱۹۳/۱۹۲ قدوري «وَالصَّاعُ عِندَ اَبِی حَنِیفَۃَ وَمُحَمَّدٍ ثَمَانِیَۃُ اَرطَالٍ بِالعِرَاقِیِّ
ترجمه: کاسه په نیز د امام اعظمؒ صَاحب او امام محمد صَاحب» اته رِتله وه په عرَاقی رطل»
بنایه ص۱ عرَاقی رطل شل استاره دی» او استار شپږ د رهمه او دوه دا فقه دئ.

اودافق شپږمه حصه دد رهمدَه، او یاد اسی چې استار څلور مثقاله دی نوشل استار
۸۰ مثقاله دی، نو رطلِ عَراقی ۸۰ مثقاله دی او عراقی کاسه څلور مُده ده کذا ذکر
فخرالاسلامؒ، دلیل د مذهب د طرفینوؒ دادی چې په حَدیث صحیح کښې چې بیهقیؒ
روایت کړی دی، داسی راغلی دی چې رسولُ الله صَلی اللهُ عَلیهِ وَسلم اودس تازه کاوه په
مُد سَرَه چې دوه رطله په اندازه وَه او غسل یه کاوه په صاع سَرَه چې اته رطله په انداز
او د حضرت عُمَرؓ صاع هَم داغه اندازه وَه، قَالَ المصنفؒ

# وَالرَّابِعُ مَآءٌ نَجِسٌ وَهُوَ الَّذِیْ حَلَّتْ فِیْهِ

اوڅلورم قسم داوبو نجس اوبه دی، او نجسی اوبه هغه اوبه دی چې داخل سی په هغه کښې مُردار

# النَّجَاسَةُ وَكَانَ رَاكِدًا قَلِیْلاً

او حال دا وی چې هغه اوبه ولاړی وی او لږ وي.
**پوهَسَه:** چې دخول د نجاست به په یقین سَرَه او یا په غلبهٔ ظن سَرَه معلومَه وي
او په نفس گمان یا احتمال اوبه مرداری نه دی «م». **فائِدَه:** وقوع د نجاست
مقید دی په دې چې لږ خُوشُوئې یا پُوچې به نه وی، ولی هغه مَعفُو دی ځکه چې وروسته به راش
**فائدَه:** مصنفؒ وقوع د نجاسَت وویَل د دی سَببه چې که او به په سَبب د پروت
د ریدو په یوځای کی بوی، رنگ، خُوند، گرده په بَدل سوی وی چې رقت یه باقی وي پاک
دی، ولی پرخپل خلقت اصلی پاته دی، اما که خته سوی او نه بهیدلی بیا اودس نه دی به
**سَوال:** که داوبو بَد بوی تَلی نودسړی داشك سُو چې مرداری به وَر لویدلی وی نو دغه
اوبه نجسی دی او که څنگه!
**جَوابُ:** دغه اوبه پاکی دی او بد بوئې دی شاید په سَبب د طول مکث یا دَوقوع دَ
طاهر شی وی او د اوبو اصل خو طهارت دی «ط». **فرع:** که یو ځوك د چا میله
سوا و هغه کور والا ډوډی او به ورته راوړی نو میلمه حق نه لری چې دا ډوډی تا د کمه





کړی ده یا داوبه خو مرداری نه دی، قَالَ المُصنفؒ

# وَالْقَلِیْلُ مَادُوْنَ عَشْرٍ فِیْ عَشْرٍ وَاِنْ لَّمْ یَظْهَرْ اَثَرُهَا فِیْهِ

او لږ اوبه هغه دی چې تر لس په لس کښې کمې وی که څه هم اثر د نجاسَت نه په کښې معلومیږی
یعنی هغه محل چې اوبه په کښې ولاړی وی هغه تر لس په لس کی کمه وی.
**فائِدَه:** لس په لس کی ضرب کړی نو سل کیږی، نو سطحه داوبو سل گزه کیږی
تر دغه چې کمه وی هغه اوبه قلیل دي.
**پوهَسَه:** چې د مصنفؒ په نیز ذراع العامة، مُعتبر دی، قاله فی المَراقی، او په نیز د قاضیخانؒ
معتبر ذراع المساحة دی، ولې چې مکان د ممسوحاتو دی» او په هَدایه کښې وائی چې فتوی پر
اعتبار د ذراع الکرباس دَه» د پاره دَفراخی پر خلکو ولې چې ذراع الکرباس کچنی دی
**فائدَه:** ذراع المساحت اوه موټه دی د هری قبضی سره به بته گوته جگه دره وی،
واما ذراع الکرباس هغه فقط اوه موټه دی یعنی گوته د رهیده نه غواړی، کذا فی الکافی وملامسکینؒ
وصاحب الدر فتوی پر ذراع المساحت بولی، وَاللهُ اَعْلَمُ بِالصَّوَاب»
**پوهَسَه:** چې لس په لس کی هلته شرط دی چې حَوض چار کنجه وی او که گردی وو (۳۶) نو
شپږ دیرش گزه بی دوروي، **فائِدَه:** عُمق یعنی ژوَر والی داوبو د حَوض به دومَره
وی چې په غبرگه اخستو سره ځمکی ته نه رسیږی او دا هم صحیح روایت دی. او بعض وائی
چې عُمق د اوبو به یو گز وی. او بعض وائی چې یوه لویشت به وی، او په جوهره کښې
وائی چې فتوی پر اول قول ده **فائِدَه:** په باب کی د ډیر والی د وَلاړي اوبو اختلافات
ډیر دی لکه چې د رد محتار او هدایهٔ د مطالعی څخه ښکاره کیږی، حتی چې محی السنةؒ وائی
چې اندازه د لس په لس کی معتمد علیه نه لری، لکن شرنبلالیؒ په مَراقی الفلاح کی وائی...
والتَّقْدِیْرُ بِعَشْرٍ فِیْ عَشْرٍ هُوَ الْمُفْتیٰ بِهٖ» او دا قول د عامو مشا یخو دی، خانیهٔ
او دا قول د اکثرو دی او په دغه موږ عَمل کوو» نوازل» وَعَلَیْهِ الفتوی کما مَرَّ فی شرح
الطحطاویؒ» لکن بحر الرائق په دی مقام کی لوی تحقیق کړی دی» او په اخیر کښې وئیلی دی

چې تقدير دلسّ په لسّ کې هيڅ اصل نه لري، بلکه ظاهر الروايت د حضرت الامام" غ
بلکه د دروسرو وغځه دادی چې تفويض د لن والی دا اوبو او دير والی دا اوبو ورأی
استعمال کوونکې پر ليبنول سی بنه دئ، نوکه د ده ظن غالب دا ووچې دا اوبه ډېر
دی او نجاست تاثير نه سی پکښې کولای نو هغه ډيري دی اودس او نور طهارت پر رواي
اوکي لن بللی نولن دی طهارت نه دی په روا،
حاصل دا چې د مکلف خپل غالب الرای معتبره ده- او ورائی د خلګو مختلفي دی نوکيدای
چې يو مقدار اوبه به يو مکلف ډيري بولی نو د هغه اودس په روادی- او بل مکلف بي
لن بولی نو د هغه اودس نه دی په روا نو هر سړی مامور دی په تحری ی سره، او تحري
کول په امور دينيه وو کې خروج د مذهب نه دی، او نه په دی کې تقليد د مجتهد لازم دي
کذا فی فتح القدير، بلکه د دی مثالونه ډير دی لکه تحري کول په امر کښې د قبلې چې پرده
خلګو مشتبه سي، او پر هر سړي واجبه ده چې د جهت ته د تحري خپل به په لمانځ کی
مخامخ کيږي که څه هم د بل سړي د جهت څخه د تحري مخالف وي،
او د غه رنګه تعداد د رکعتو د لمانځه چې د سړي هير سی نو دی به تحري کوی، او په تحري
عمل کول پر ده واجب دي، کما في کتب الفقهاء، درويش وائي: چې بحر رائق او فتح
القدير چې ظاهر المذهب دی هغه بيان کړی دی، په هغه کښې خوشك نسته، او فقيه ابو جعفر
الطحاوی چې په اتفاق د حنفيانو اعلم د خلګو او علماؤ په مذهب دا بو حنيفة کی دئ
د دی ظاهر الروايت څخه بی خبره نه وو، او د غه رنګه صاحب د فتاوی خانيه، او د نوازل
او مصنف د شرنبلالی" لکن مع هذا دوی فتوی په تقدير د لسّ په لسّ کښې صادره کړه
د دی فتوی سبب دا دئ، چې ورائی ته د مبتلی به پريښول سبب اختلاف د خلګو
او د تنازع او يو پر بل باندی بد حکم کول وګرځی، مثلاً په صحرا کښې يو کلی پروت وي او
هغه ته نژدی يوه ډنډه د اوبو وي، بعض اهل د کلی دا اوبه ډيري بولی، او دس او
نور طهارت په کوی- او بعض کلی والی يه لن بولی او دس په روا نه بولی، نو لا محاله د دوي
ترمابين اختلاف او تلخ کلامی، بلکه قتل و قتال هم محتمل دئ،



غونګه نام ورو علماؤ فتوی په تقدير د لسّ په لسّ کی صادره کړه، وبه نأخذ الفقير ايضًا وان
کان ليس اهلا للافتاء، الفقير"

# بنهانه فائده

د اتفاق د فقهاوو" اوبه په اصل کښې پاکی دی- او نه مرداريږی مګر هغه وخت چې د سړي
يقين پر لويدو د نجاست يا غالب ګمان پر هغه نه وی راغلی، نو بناء پر د غه اصل کلی علامه
د شرنبلالئ په مراقی الفلاح کښې وائی-
مسئله: که يو چا د کور ومخ ته يو خم ايښی وو او کوزی او لوټی يه هم ورسره ايښی
وي د هغه خم څخه اودس تازه کول روادی تر هغو چې يقين يا غالب ظن يه په نجاست
په نجاست د هغه خم نه وی راغلی، مسئله: او د غه رنګه اودس روادی په
وبود هغه حوض صغير چې احتمال د دی وی چې نجاست به ور لويدلی وی مګر يقين
يه نه وی، او پر سړي باندی د دی اوبو پوښتنه هم نه ده واجبه،
مسئله: او د غه رنګه اودس روادی په اوبو د هغه ځا چې په خيرو نو لوښو، او په
غيرونو لاسونو او بچی او کوچنيان، او صحرايان، او مالداران او به ځندی را کاږي،
تر هغو چې يقين په نجاست د ځا نه وی راغلی، قال المصنف"

# اوجاريا وظهر اثرها فيه والاثر طعم اولون اوريح

ترجمه: او يا روانی اوبه وی او ښکاره وی اثر د نجاست يا خوند دی د هغه نجاست چې
اوبو کښې دی، يا رنګ دی، د هغه نجاست او يا بوی دی د هغه نجاست،
فائده: جاری اوبه هغه ځای يه نجس دی چې اثر د نجاست په کښې معلوميږي،
او ته تولی اوبه چې جاری وي افاده السيد" ط ص۲۲ ، قال المصنف"

# والخامس ماء مشكوك فى طهوريته

او پنځم قسم دا اوبو هغه اوبه دی چې شك يه په دی کی وی چې، پاکی يعنی اودس يا غسل وغيره

پہ رو ادی اوکړ نه! مقصد دا دی چی په طهارت کی شك نه وی، یعنی بل ملئی نه په مزائی

وَهُوَمَا شَرِبَ مِنْهُ حِمَارٌ اَوْبَغَلٌ اوداهغه اوبه دی چی چینګ ځندی کړی وی خره یا غاطر، پوه سه: چی د غاطره څخه هغه غاطر مراد دی چی مور یه خره وی پلار یه آس وی نه هغه غاطر چی مور یه اسپه وی پلار یه خروی، ولی چی اعتبار مور لره دی، نه په بعض احکامو کی لکه پس خورده، او حل د خوړلك د غوښو او حریت د هغو، او حریت او مړی تو به او په نسب کی اعتبار پلار لره دی۔ لکن اولاد د شریفی ښځی لکه سیده شرافت فی الجمله لری تر اولاد د نورو ښځو،

فائِدَه: لبعض علماء وائی چی په اولاد کښی د فاطمة الزهراء رض اعتبار نر لره او ښځی د وار و لره سته، یعنی یوه ښځه چی د اولاد څخه د فاطمه وی کی خرهم میړه د بله قوم څخه وی، د دغی ښځی اولاد هم سادات دی، لکه چی پلار یه د اولاد څخه د فاطمه وی او مور یه د بل قوم څخه وی، لکن صحیح او مفتی به لکه ډ رد محتار کی چی وائی، تولہ انساب تابع د پلار دی،

## " لویه غوټه خلاصه سوه،

په پښتنو کی بعض قومونه وائی مونږ سیدان یو، لکه ورده ګان، جمالزی په نورزو کښی، کشانیان وغیره، لکن نور پښتانه دوی ته سیدان نه وائی، د اختلاف سر یه دا دی چی د نامورو قومو په نسب کی بعض ځایونه یوه انا د دوی سیده د اولاد څخه د فاطمة الزهراء رض موجوده وی۔ نو دوی نسب تابع د مور بولی په اولادو کی د فاطمه رض لکه مذهب اول چی وو، نو د هغی ښځی لاندی قوم تول ځان ته سیدان وائی، او نور پښتانه چی دوی ته سیدان نه وائی هغه وائی چی نسب تابع د پلار دی په هر قوم کښی، کما هو المذهب الصحیح نو د غه قومونه د یوی انا په سبب چی سیده وه سیدان نه ګرځی، وَاللّٰهُ اَعْلَمُ بِالصَّوَابِ

## خبره ترخبری یا دیږی

پوه سه: چی اولاد ته د علی رض چی د فاطمة الزهراء رض د خوا څخه وی سیدان وائی، او هغه اولاد چی د علی رض وی پس له وفات د فاطمة الزهراء رض د بلی ښځی څخه هغو ته علویان وائی



او اولاد ته د ابوبکر رض الصدیق رض قریش وائی، او اولاد ته د عمر رض کړخه دوی هم قریش دی او اولاد ته د عثمان رض خواجګان وائی۔ دا د پښتنو اصطلاح ده او په حضرات وائی، او اولاد ته د علی ... اصطلاح اعتراض نشته:

# فَصْلٌ

اودا فصل په احکامو کښی د پس خوردي دی۔

## وَالْمَاءُ الْقَلِيْلُ اِذَا شَرِبَ مِنْهُ حَيَوَانٌ

او لږ اوبه یعنی چی جاری نه وی، او لږ په لس کی کم نه وی، چی چینګ وکی د هغو څخه یو حیوان،

## عَلٰى اَرْبَعَةِ اَقْسَامٍ وَيُسَمّٰى سُؤْرًا

پر څلور قسمه دی او د غو او بو ته پس خورده وائی

پوه سه: چی د سُؤْرٌ د عین کلمه همزه دی او جمع یه اَسْاَرٌ چی وَمَا بقی ته د او بو او خوړو وائی، او لفظ د سور په واو سره د ښار لوی دیوال ته وائی او جمع یه اسوار راځی "

فائِدَه: تر هغو پوری او بو ته سُؤر نه وائی چی لږ نه وی۔ نو که د ولی یا حوض څخه چی لس په لس کښی وی حیوان او به وچښی سُؤر یه نه بولی، م۔ ط،"

## اَلْاَوَّلُ طَاهِرٌ مُطَهِّرٌ وَهُوَ مَا شَرِبَ مِنْهُ اٰدَمِيٌّ

اول قسم هغه او به دی چی پاك وی، یعنی شئ نه په مرداریږی، او پاکونکی وی یعنی بی اودسیا جنابت په لری کیږی او یا مردار کالی په پاکیږی، نو داهغه او به دی چی انسان چینګ ځندی وکړی۔ یعنی د انسانانو پس خورده، لکن دا حکم هلته دی چی خوله یه مرداره نه وی، لکه چی شراب یه چښلی وی۔ او یا بل مردار شی خوړلی وی لکه د سرکوزی غوښی، او یا په

قی وهلی وی په ډکه خوله - نوکی سور دلاسه په دغه مرداره خوله اوبه وَچښلی هغه اوبه مرداری دی - او کی چیری دوه ګړی واره په خوله کی ناړی سره وګرځولی او توی یه کړی یا تر او بو چښلو مخکه یه هغه ناړی تیری کړی:
نود هغه پس خورده نجسه نه دَه، په نیزد امام اعظمؒ او امام ابی یوسف لکن مکروه دَه، ولی چی امام مُحَمَّدؒ وَائی چی په ناړو خوله نه پاکیږی، **فَائِدَه**: داحکم هلته دی چی برتیونو دشراب خوره دیر غټ نه وی چی ژبه دده نه وررسیږی او کی برتیونه غټ وَه بیا پس خورده مرداره دَه۔

**فَائِدَه**: په پس خورده کښی د لوی او کچنی مُسلمان او کافر جنب او حائض فرق نسته، په حدیث مُبارک کی چی روایت یه امام بخاریؒ کړیٗ، دبی بی عائشه رضی مخه داسی نقل شوی دی چی ما به دلوښی نه اوبه وچښلی اوزه په حیض کی وم، هغه لوښی به می آنحضرت صلی الله علیه وَسلم ته ورکړی نوده مبارکؐ پر هغه ځای دلوښی خوله مُبارکه کښیښول چی ما به خوله پرایښی وه او اوبه بی وچښلی «م، ط»

## خبرول

که چا په پس خورده دبل چا لکه نامحرم ښځه یا ښائسته هلك لذت او خوند اخستی دا پس خورده مکروه ده، مګر میړه او مایینه یا بادار او مینځه سره دَلذت شهوانی پس خورده یه مکروه نه دَه، «ط»، او دغه کسه کول دښائسته بی ږیری په حمام کښی مکروه ده»
او دغه رنګه سَر خر یل دبی ږیری دلاك کی مخلوق (دچاچی سرخرولی) تحوند ورکاوه مکروه دَه، ذکره الطحطاویؒ فی شرح المراقی۔

## ، خبری به کوو خوابه نه بده وُو»

بعض تګان پیران، دایه رواج وی چی هرسړی چی ددوی سره روغ بړ کوی، دوی هغه پټندی مُجوی په دی ضمن کښی که ښځه یا ښائسته هلك ددوی سره روغ بړ کاوه دهغو نه هم یه خپلو شهوت د زړو ډکو شوند انو سره مچه اخلی»، او د پیر مچه خلك غنیمت بولی»
. اللهم اغفر لمؤلفه ولکاتبه ولجمیع المسلمین»



# دَعوامو عقیدَه

داسی پیران په جامعَه کی داسلام خصوصًا په پښتنو او پارسی ژبانو کښی ډیر دی چی بزیره یه پاکه خریلی وی دسرو زرو ګوتمیانی ئی په ګوته وی، او د زرو سره ساعت یه هم تر لاس وی سګریټ یو لګوی بل وڅښی» او د جماعت په لمانځه کښی هم چا نه وی لیدلی» بیا هم دوی یه بزرګ د خدای دوست بولی»
قَالَ المُصنفؒ

# اَوفَرسُ اَومَا یُؤ کَلُ لحمُه

اویا آس اوبه وَچښی - اویا هغه حیوان چی غوښی یه خوړل کیږی» لکه پسه بزه وغیره، مصنفؒ په مَراقی الفلاح کښی وَائیٗ ص۲۳ چی سُور او پس خورده دآس پاکه دَه، بالاتفاق برصحیح روایت بینله کراهته آه: طحطاوی دَ دغه ځای په شرح کښی وَائی چی دآس پس خورده چی پاکه ده په دی سَبب چی غوښی یه هم خوړل کیږی» او د حضرت امام اعظمؒ صَاحب په نیز چی غوښی دآس حرامی بُولی»، وَائی چی ناړی دآس چه په پس خورده ګډیږی دغوښو څخه پیدا کیږی او د آس غوښی خو پاکی دی، حرام والی د خوړلك په سَبب د کرامَت دی چی آس آله د جهاد ده»
نو حرمت دغوښو دآس لکه حرمت دغوښو دانسان دی» نو څکه شیدی داسپی حلالی دی بالاجماع **تبیین**، بلکه ثابته سوی ده رجوع دحضرت الامامؒ وقول ته دصاحبینو دری ورځی تر مرګك دمخه وعلیه الفتوی «ط» او په مجمع الانهر کی وائیٗ چی شیخ الاسلامؒ او نور علماء وائی چی خوړك دغوښو د آس مکروه تنزیهی دی»، وهوالصحیح آه اومنیه المصلی وَالا د بعض علماوو څخه نقل کړی چی غوښی دآس نجسی دی، نو سُور یه هم نجس دی»، او بعض فقهاء وَائی چی سور دَآس مشکوکه ده لکه دخره سُور»
**پوه سه**: چی په مَاکول اللحم کی پسه، بزه، سیرلیٗ، غوا، غوییَ، اوښ، او ښیته، او مَاکول اللحم مرغان لکه، زرکه، اِلیٗ، چوغکه، بلکه چرګان، وغیره ټول له داخل دی»

فائده: په بعض کتابو کې دَ فقهې شریفې وَائي چې دَ دَغو حیوانانو سور هَلته پاک دی چې دغه حیوانات غُل نه خوري. چې ودی حیوان ته جلالت وَائي، اوکه جلالة وونو په سور مکروه دی» لکن د دوی مراد دا دئ چې فقط غُل خوره وي اویا دغُلو خوراک تروَبنو ډیر یا برابر وي. اوکې په اکثر کې پاک واښه خوړله او ګاهي بې غُل هم وخوړله د هغه حیوان سور مکروه نه دئ»، کذا فی الجوهرة:

اماماں د جلالت ترجمه خرنګه کوي! دوی وَائي د جلالت معنا کوځه ګښته» او دوی سره پوهیږي چې جَلالت مشتق د جِلّة څخه دی چې هغه په لغت کې پُوچُوته وائي او دلته کنایه د غُلو څخه د انسان ده» «قَـالَ المُصنفؒ»

## وَالثَّانِيُ نَجِسٌ لَا يَجُوزُ اِسْتِعْمَالُهُ يعنى دوهم قسم داوبو چې لږ وي.

مرداري اوبه دي چې نه دی رَوا استعمال یه که په اوداسه کې وي که په غسل کښې وي که په پریوَلو کې د جامو وي که دیوشي په پخیدو کې وي اوکه په چښلو کې وي» « »

فائده: د مردارو اوبو چښل رَوا دي په وخت کې د اضطرار او مجبوري لکه سړي د تندې څخه پر مرګ بیریږي لکه خوړل چې د میته په حالت کښې د مخمصي یعنی د ډیري لوږي چې پر مرګ بیریږي»، او دا په اتفاق دَ ټولو فقهاوو» قَالَ المُصنفؒ»

## وَهُوَمَا شَرِبَ مِنْهُ الْكَلْبُ اَوِالْخِنْزِيرُ اَوْشَئٌ مِنْ سِبَاعِ الْبَهَائِمِ

او دا هغه اوبه دي چې چینګ څُندی کړي وي سپي، او یا سرکوز، او یا یو حیوان د درنده ګانو څخه د څارپایانو

## كَالْفَهْدِ وَالذِّئْبِ لکه یږ او لیوه

پوه سه: چې سور دَ سپي او د سرکوزي نجس غلیظ دی په اتفاق او دَ نور حیوانانو سُور» څوک وَائي نجس مغلظ دی» او بعض علماء یه نجس مخفف بُولي» د نجاست غلیظه او خفیفه فرق به وروسته راسي» ان شاء الله تعالیٰ»

د سپي په پس خورده کې دارقطني د رسول کریم صَلی الله عَلیه وَسَلم څخه داسې روایت کړی





اِنَّهُ يُغْسَلُ ثَلَاثًا اَوْخَمْسًا اَوْسَبْعًا. چې هغه لوښي به دی چې په لوښي کې اوبه وچښي» زمونږ په مذهب کې یو وار پریوَله په فرض دي منځ دري وَاره یا پنځه یا اوه وَاره»، قال العیني فی شرح بخاري دري وَاره په سُنت دی او باقي په مندوب دی دَ جهت څخه د طبع د نفرت»

فائده: سبع هغه حیوان ته وَائي چې حمله کوونکي وي او تاراک اچوونکي وي او کجا کاره وي په عادت کې» م ». قَالَ المُصنفؒ»

## وَالثَّالِثُ مَكْرُوهٌ اِسْتِعْمَالُهُ مَعَ وُجُودِ غَيْرِهِ

او دریم قسم اوبه هغه اوبه دي چې مکروه وي استعمال د هغو اوبو په هرشي کې چې وي یعنی مکروه تنزیهي سره د دې چې نوري اوبه وي یعنی هغه اوبه چې مکروه نه دي»

د دې قید فائده دا ده: چې کَم وخت نوري اوبه نه وي په دغو اوبو دي اودس تازه کړي او تیمم نه دی رَوا» وَلې چې دا اوبه په ذات کې پاکي دي صرف مکروه دي.

پوه سه: چې مصنفؒ په مراقی الفلاح کې داسې وَائي چې استعمال دَ دغو اوبو په طهارت کې مکروه دي فقط» لکن صحیح دا ده چې دَ دغو اوبو استعمال په چښلو او په پخه وَلو کښې د شئ هم مکروه دی، قَالهُ الطحطاوی رح ص۲۲ » قَالَ المُصنفؒ»

## وَهُوَسُؤْرُ الْهِرَّةِ دغه قسم پس خورده د پشي»

پوه سه: چې لفظ د هِرَّةٌ نر او ښځې دَواړو ته وَائي او داسې لفظ په عربي اسم جنس بولي» د پاکوالي د سور د پشي هغه حدیث شریف دی چې ترمذي یه روایت کړی دی، او وَئیلي دي چې دا حدیث حَسَنٌ صَحِيحٌ، دَ پشي په باره کښې عَلیه السلام داسې وَفرمائیله» اِنَّهَا لَيْسَتْ بِنَجَسَةٍ اِنَّهَا مِنَ الطَّوَّافِيْنَ عَلَيْكُمْ وَالطَّوَّافَاتِ» یعنی سور دَ پشي نه دی مُردار» په دی سبب چې پشي طواف کونکي او ګرځیدونکي ده پر تاسې» یعنی په خونو ځایو کښې ګرځي»

او خلګ ځان نه سي څُندی ساتلای»، مَطلب دا چې دَ ضرورت له کبله د دې سُور پاک د

اللهم اغفر لمؤلفه ولكاتبه

فائده: په بعض کتابو کې دَ فقهې شریفې وَائې چې دَ دَغو حیوانانو سور هَلته پاك دی چې دغه حیوانات غُل نه خوري. چې ودی حیوان ته جلالت وَائې، او که جلالة وونو په سور مکروه دی» لکن د دوی مراد دادئ چې فقط غُل خوره وی او یا د غُلوخوراك ترَوَبنو ډیر یا برابر وی. او کې په اکثر کی پاك وابنه خوړله او گاهی بی غُلهم وخوړله د هغه حیوان سور مکروه نه دئ» کذا فی الجوهرة؛

امامان د جلالت ترجمه څرنگه کوی! دوی وَائې د جلالت معنا کوځه گښت» او دوی سه پوهیږی چې جلالت مشتق د جلَّة څخه دی چې هغه په لغت کی پوچوته وائې او دلته کنایه د غُلو څخه د انسان ده» «قـال المُصنف»

## وَالثَّانِیْ نَجِسٌ لَا یَجُوْزُ اِسْتِعْمَالُهٗ یعنی دوهم قسم داوبو چې لږ وی.

مرداری اوبه دی چې نه دی رَوا استعمال یه که په او داسه کی وی که په غسل کښی وی که په پریولو کی د جامو وی که دیوشی په پخیدو کی وی او که په چښلو کی وی» «» ««

فائده: د مردارو اوبو چښل رَوادی په وخت کی د اضطرار او مجبوری لکه سَړی د تندی څخه پر مرگ بیریږی لکه خوړلې چې د میتة په حَالت کښی د مخمصې یعنی د ډیری لوږی چې پر مرگ بیریږی» او دا په اتفاق دَ ټولو فقهاوو» قَالَ المُصنف»

## وَهُوَمَا شَرِبَ مِنْهُ الْکَلْبُ اَوِالْخِنْزِیْرُ اَوْشَیْءٌ مِنْ سِبَاعِ الْبَهَائِم

او دا هغه اوبه دی چې چښنگ څُندی کړي وی سپی، او یا سرکوزی او یا یو حیوان د درنده گانو څخه د چارپایانو

## کَالْفَهْدِ وَالذِّئْبِ لکه پړانګ او لیوه

پوه سه: چې سور دَ سپی او د سرکوزی نجس غلیظ دی په اتفاق او دَ نور حیوانانو سُور» څوك وَائې نجس مغلظ دی» او بعض علماء یه نجس مخفف بُولې» د نجاست غلیظه او خفیفه فرق به وروستَه راسی ان شاء الله تعالیٰ» د سپی په پس خورده کی دارقطنی د رسول کریم صَلی الله عَلیه وَسَلم څخه دا سی روایت کړی





اِنَّهٗ یُغْسَلُ ثَلَاثًا اَوْخَمْسًا اَوْسَبْعًا. چې هغه لوښی به وچښی» چې په لوښی کی اوبه وچښی» دې چې په لوښی کی اوبه وچښی دری واره یا پنځه یا اوه واره» زموږ په مذهب کی یو وار پریوله یه فرض دې منځ دری واره یا پنځه یا اوه واره» قال العینی فی شرح البخاری دری واره یه سُنت دی او باقی په مندوب دی دَ جهت څخه د طبع د نفرت»

فائده: سبع هغه حیوان ته وَائې چې حمله کوونکی وی او تا راك اچوونکی وی او بجا کاره وی په عادت کی» مر «، قـال المُصنف»

## وَالثَّالِثُ مَکْرُوْهٌ اِسْتِعْمَالُهٗ مَعَ وُجُوْدِ غَیْرِهٖ

او دریم قسم او به هغه اوبه دی چې مکروه وی استعمال د هغو اوبو په هر شی کی چې وی یعنی مکروه تنزیهی سره د دی چې نوری اوبه وی یعنی هغه اوبه چې مکروه نه دی» د دی قید فائده دَادَه: چې کم وخت نوری اوبه نه وی په دغو اوبو دی او دَس تازه کړی او تیمم نه دی رَوا» وَلې چې دا اوبه په ذات کی پاکی دی صرف مکروه دی.

پوه سه: چې مصنفٌ په مَراقی الفلاح کی داسی وَائې چې استعمال دَ دغو اوبو په طهارت کی مکروه دی فقط» لکن صحیح دا ده چې دَ دغو اوبو استعمال په چښلو او په پخَه وَلو کښی د شیٔ هَم مکروه دی، قَالهُ الطحطاوی رح ص۲۲ « قَالَ المُصنف»

## وَهُوَسُؤْرُ الْهِرَّةِ

دغه قسم پس خورده د پیشی، پوه سَه: چې لفظ د هِرَّة نر او ښځی دَواړو ته وَائې او داسی لفظ په عَرَبی اسم جنس بولی» د پاکوالی د سور دَ پیشو هغه حدیث شریف دی چې ترمذی په روَایت کړی دی، او وَ ئیلی دی چې دا حدیث حَسَنٌ صَحِیْحٌ، دَ پیشی په باره کښی عَلیه السلام داسی وَفرمائیله» اِنَّهَا لَیْسَتْ بِنَجَسَةٍ اِنَّهَا مِنَ الطَّوَّافِیْنَ عَلَیْکُمْ وَالطَّوَّافَاتِ» یعنی سورَ د پیشی نه دی مُردار، په دی سبب چې پیشی طواف کونکی او گرځیدونکی ده پر تاسی » یعنی په خونو ځایو کښی گرځئ» او خلك ځان نه سی ځندی سَاتلای»، مَطلب دا چې دَ ضرورت له کبله د دی سُور پاك د

اللهم اغفر لمؤلفه ولکاتبه

## دپشي په باره کښې بعض معلومات

۱ طوافین جمع مذکر ده نرو پیشانو ته وائي، او طوافات جمع مؤنث ده ښځو پیشانو ته وائي.

سوال: اهل صرف او نحو وائي چې جمع په واو او نون او یاء و نون، په ذوی العقول پوري خاصه ده پیشي خو د ذوي العقول څخه نه ده، نو څرنګه په حدیث شریف کې په یاء و نون جمع سوې ده»

جواب: چونکه د پیشي توله ګذاره د ذوي العقول یعنی انسانانو سره دی، نو ځکه یې جمع د ذوي العقولو جمع کړه» ۲ پیشي دوه قسمه ده یوه اهلي پیشي بولي او بله بري یعنی صحرائي پیشي» سور (پس خورده) چې پاکه ده داهلي پیشي پاکه ده، او په حدیث شریف کې هم دغه مراد دي، ولې چې علت او ضرورت د طواف په اهلي پیشي کې سته»، د بري پیشي حکم د چنال دئ»- ۳ داچې سور د پیشي مکروه والی مذهب د امام اعظمؒ او امام محمدؒ دئ. او امام ابو یوسفؒ سور د پیشي پاك بولي او دس په روا بولي او چښنګ یه جائز ګڼړي بیله کراهت لکن صحیح مذهب د طرفینو دی»، کذا في رد المحتار»

۴ **مسئله:** سور د پیشي مکروه دی تنزیهًا ولې چې د نجاست څخه ځان نه ساتي موږان خوري، مرداري غوښې خوري او نور لکه کښنې هلك چونکه د نجاست څخه ځان نه ساتي نو کی لاس په لوښي چخ کړي، د هغو او بو استعمال مکروه تنزیهي دئ» م.

**مسئله:** که یو پیشي د چا لاس و څټي او دی سړي ته حال نه وو معلوم د پیشي د خولې نو د دغه لاسه سره چې بري لئ نه مینځئ لمونځ کول، یا په دغه لاس دو ډی خوړل مکروه تنزیهي دئ» م ط»

**مسئله:** د پیشي د خولې پس خورده و غني سړي ته خوړل مکروه ده»، او مسکین ته مکروه نه ده»

## وَالدَّجَاجَةُ الْمُخَلَّاةُ

او مکروه تنزیهي ده پس خورده د چرګ یا چرګې چې ایله ګرځي یعنی په مردار یو کښې او انبارو کښې وجه د کراهت په دا ده چې د دی د مشوکې حال نو دی معلوم» نو په سبب د شک یې سود مکروه دئ اوکه مشوکه یقینًا پاکه وي»





چې بر پاك ځای ترلی وه او مشوکه یه و خپلو غلوته هم نه رسیده. نو په دی صورت کې یه سور پاك دی» او که چیری سړي ولیده چې چرګې نجاست وخوړی او بیاد لوښي څخه او به وڅښلې هغه او به مرداري دی»، ط» - قال المصنفؒ »

## وَسِبَاعُ الطَّيْرِ كَالصَّقْرِ وَالشَّاهِينِ وَالْحِدَأَةِ

او دغه رنګه مکروه دی سور د حمله کوونکو مرغانو لکه څرخك او شیون، او تپس

سوال: د دغو مرغانو غوښې خو مرداری دی نو باید چې سور یې هم مردار وای لکه سور د سباع البهائم» **جواب:** هو قیاس خو د دغه تقاضا کوي لکن زمونږ علماوو د جهته د استحسان فرق د دی دوارو د رندګانو د سور ترمابین کړی دی»، وجه یه دا ده چې سباع الطیر خو په مشوکه خوراك کوي، او مشوکه اډوکې دی پاك دی»، او سباع البهائم خو او به په ژبه څښې او هوري ناړي په ګډیږي او ناړي یه د غوښو په سبب مرداری دي»

**پوښتنه:** باید سور د سباع الطیر مکروه هم نه وای ولې چې تاسې وویله چې مشوکه پاك اډوکې دئ» **جواب:** کراهت یه د دی سببه څخه دی چې دغه مرغان د مردارو شیانو د خوړلو سره عادت لري»، نو د دی احتمال سته چې په مشوکه دی مرداری خوړلي وی» نو په دی سبب یه سور مکروه دی حتی که یو سړی د دغو مرغانو منګی و ږي منځي او بیا هغه او بو څښلو ته پریږدی سور یه بلا کراهت پاك دی»، حاصل» م»

## وَسَوَاكِنُ الْبُيُوتِ كَالْفَارَةِ لَا الْعَقْرَبِ

او دغه مکروه دی سور د او سیدونکو د خونو او سرایو لکه موږك (یعنی چې بهیدونکی وینه لري) او د دی قسمه څخه ماږه هم دی او شرمښکې هم ده، نجاست د سور یه په علت د ګرځیدو راګرځیدو په خونو کې ساقط سو» او کراهت یه په سبب د نجاست د غوښو باقي دئ»، او لړم د غسې نه دی چې د هغه سور پاك دئ» او دغه رنګه سور د څرڅرچې پتنګان د یا د غم قسم خزدکې چې په کوټو کې د ښار د یر وي چې دوی ورته» لال بیګ وائي»

# وَالرَّابِعُ مَشْكُوكٌ فِي طَهُورِيَّتِهِ وَهُوَ سُؤْرُ الْبَغْلِ وَالْحِمَارِ

اوڅلرم قسم د لږو اوبو، پوهه سه چې د دې عبارت معنیٰ چې مصنف رحمه الله په مراقي کړې ده داسې ده مَشْكُوكٌ یعنې توقف کړې دی فقهاوو فِي طَهُورِيَّتِهِ، یعنې په حکم کولو سره په طهوریت د هغو اوبو: په معنیٰ د دې چې یقینًا مطهر نه دی چې بې اودسیا دی په لیرې کیږی، او نه حکم په نفي د طهوریت کړه کیږی. او مراد د بغل غاطر څخه هغه دی چې مور یې خره وي، او حمار اسم جنس دی: نرخره او ښځې خرې دواړو ته وائي.

**اودی مسئلي علت دادې،** چې ناړې دخره او غاطر پاکی دی پر صحیح مذهب او شک په طهوریت کښې د دې سببه دی چې په مُباح والی کښې د غوښو یا حرام والی کې دغوښو احادیث نبویّه مُتعارض دی، هغه داسې چې ابن حجرؒ روایت کوی، چې نږهون کور ته لوږه ورسیده، او مانه درلودی داسې حیوان چې په حلال کړم دکور د پاره،، مگر چاغ خره، نو دا موضوع ما و آنحضرت صلی الله علیه وسلم ته عرض کړه، هغه راته وویله، أَطْعِمْ أَهْلَكَ مِنْ سَمِينِ حُمُرِكَ، وخوره په خپل اهل د چاغو خرو غوښې،

او په بل حدیث کښې چې روایت یه امام بخاریؒ کړې دی داسې راغلی دی، انسؓ وائي چې په غزا کښې د خیبر یو سړی راغلی ورسول الله صلی الله علیه وسلم ته وویله، أُكِلَتِ الْحُمُرُ، خره وخوړل شوله، یعنې خلگو خره حلال کړه، فَسَكَتَ، آنحضرتؐ پټه خوله شو یعنې جواب یې نه ورکړی، بیا دوهمه پلا، هغه سړی راغلی او وی ویله، أُكِلَتِ الْحُمُرُ، فَسَكَتَ ثُمَّ أَتَاهُ الثَّالِثَةَ، او بیا دریمه پلا راغلی اووی ویله، أُفْنِيَتِ الْحُمُرُ، خلاص شوله خره، نو علیه السلام امر کړې یو نعره کوونکی چې نعره وکړه په خلگو کښې چې خدائ او رسول د خدائ تاسې منع کوی د خوړلو د غوښو د اهلی خرو، ط. هڅ۲۲،

**پوه سه:** چې د غه تحریم چې د بخاری د حدیثه څخه وفهمیدی څوک وائي چې دا تحریم یعنې د خوړلو د غوښو د خره لذاته دی، دا مذهب د جمهورو دی، څوک وائي په سبب د دې چې خره جلاله دی یعنې غُل خوری، او بعض وائي تحریم په دې سبب وو چې خره په غنیمت کې د خلگو په غزواتو کې بار وړونکی وه، او بعض وائي چې نهی د دې سببه وی چې دا خره د غنیمت وه او غنیمت هنوز نه وو ویشل سوی، په هر صورت شیخ الاسلام علی بزدویؒ وائي چې دا تعارض د فوق الذکر دوو حدیثو خو سبب د شک په حکم کې د سور د خره نسی گرځیدای، ولې چې قانون دا صُولو دی چې په داسې ځای کښې چې تاریخ د حدیثونو وی معلوم عمل په محرم سره لازم دی.

**حَلُّ هٰذَا الْمَقَامِ:** ابن امیر الحاجؒ وائي چې د خره د سُور د پاره د غه نوم یعنې مشکوک د سلفو څخه هیڅ نږدی راغلی، بلکه متاخرین د فقهاوو څخه بعض یه مشکوک بولی او بعض یه مشکل بولی، نو ابوطاهر الدبّاسؒ د دې تسمیه څخه دا فهم ولې ده چې دخره د سور حکم مجهول او نا معلوم دی، نو یه ځکه د دې نامه څخه اِنکار کړې دی، لکن دَ دَ عنه نامه معنا داده چې په د غه سور کښې فقهاوو توقف کړې دی چې بې اودسیا په نه ایلیږی او که نه، دوی وائي چې هم دی داغه او به مُستعملی کړی یعنې اودس دی په تازه کړی او هم دی تیمم ووهی تا چې طهارت بالیقین حاصل سی، نو دا خو معلوم حکم دی، او دا توقف دَ غایة الورع نتیجه ده،

**مسئله:** په نیز د امام ابو یوسفؒ نجاستِ حقیقی په سور د خره پاکیږی، ولې دغه او به خود نجاستِ قلع کوی جامه خو نوره پاکوه، لکه په سرکه چې نجاستِ حقیقی پاکیږی،

**یوه په زړه پوری خبره:** شیخ الاسلام خوامزاده وائي: چې سبب د اشکال په سور کې دحمار دادی چې علماء کرامؒ او فقهاء عظامؒ په دې کښې مُتردد دي چې په خرو کې خو هم ضرورت سته ولې چې په کورو کښې د خلگو سره گډون لری او خره په لوښو کې د استعمال دَ خلگو او به چښي او د خلگو په سپرتیا ودوی ته ضرورت سته: نو بِنَاءً عَلَىٰ هٰذَا نجاست د سور یه ساقط بولی، او لکه پیشی اسی حکم یه وائي کما مَرَّ، نو د دې سببه ناړې د خرو پاکی دی، لکن فقهاء وو چې مقایسه دَخرو او د پیشو سره وکړه دا ورته معلومه سوه چې ضرورت په پشو کی ډیر دی تر خرو. ولې پشی په تنګو ځایو او په خونو او ځایو د خلگو ننوزی،

پرخلاف دَخروچې داسې نه دی، نوکه چیری ضرورت وخوته اصلًا نه وای نوبه سُور د دوی لکه سور د سپو نجس وای بې کمه اشکاله، او کې ضرورت په مقدار د ضرورت د پښې وَای نو نجاستِ دسور بې بالکل ساقط سوی وای لکه دَ پښې دَسُور، نو ضرورت چونکه په خروکښې من وجه سته او من وجهٍ نسته، لهٰذا علماوو ته شک په طهوریت دسور پیدا سُو، او په پاکوالی دسور یعنې طهارت سری فتوی ورکړه، دا تو له دجهت نجز دا احتیاط فی الدین نو بناءً علیٰ هٰذا فتوی یه ورکړه په اودا سَه تازه کولو په دغو اُوبو چې خَرَه چښنګ څُندی کړی وی او تیمم هم ورجوت کړي، عملًا بالدلیلین اقول وَلِلّٰه درّه ما ادق نظرہ»

« قَالَ المُصَنِّفُ »

## فَاِنْ لَّمْ يَجِدْ غَيْرَهٗ تَوَضَّأَ بِهٖ وَتَيَمَّمَ

که چیری پیدا نه کړی بې اودسه سری ماسوا د سوره دَخره او غاطر

حاصل دا چې ماء مطلق نه وی، نو اودس دې تازه کړي په دی اوبو او تیمم دی وکړي، مصنفؒ عطف په واو وکړیُ چې دَپاره دمطلق جمع دی اشاره ودی ته یه وَکړه چې دَسرې خوښه ده که اودس د مخه کوی او که تیمم، لکن مع هذا افضل تقدیم د اوداسه دی وَلې دسور ظاهر صَوت د اوبو دی

**ثُمَّ صَلّٰى:** او وروسته دی لمونځ وَکړي تاچې لمونځ یه یقینًا صحیح سِی، وَلې چې اودس په دغه سور که روا وی او وروسته تیمم تاوان نه ورته کوی. او که نوي صحیح تیمم خو یه وکړی، « م ص۲۶

دَدرولیش وَائی: چې په شرح کې دجامع صغیر چې د امام محبوبي تصنیف د نصیر بن یحیٰؒ څخه داسې بیان نقل کړی دی چې یو سړي چې بیله سُوره دحمار نُوري پاکې اوبه نه لري، دا او دی چې په کړي چې عَادِمُ المَاءِ وګرځی. بیا دی تیمم وَوَهی. نو دا قول چې ابوالقاسم الصفارؒ ته وړاندی کړ سو هغه وویله چې دَاقول د امام ابوحنیفهؒ دیُ، وَاللّٰهُ اعلم کذا فی النهایة شرح الهدایة

**مسئله:** د دغه سَړی لمونځ پس له اود سَه په سورُ الحمار او تیمم سره افضل دیُ. او کې داسې وکړه چې یو وار یه اودَس تازه کړی په سور الحمار سره او لمونځ یه وَکړي بیا تیمم وکړي او لمونځ یه اداکړی د لمانځه غاړې خویُه خلاصی سَوي مګر داسې

کار مکروه دیُ، « ط، ص۲۶

**پوښتنه:** دغه سَړي چې فوق الذکر کار وکړی نو که سُور الحمار نجس وی نو خو لمونځ به بې اودسه وکړی نو بایدچې کافر شی لکه چې بعض فقهاءؒ وائیُ چې سجده بې اوداسه کفر دی

**جَوَاب:** کفر نه لازمیږی، ولې چې دغه سری خو یقینًا بې اودسه لمونځ نه دی کړی۔

ولې چې په سؤر الحمار کښې اختلاف دی. او دکفر مسئله چې لعض فتاواوو ذکر کړی ده هغه هلته ده چې یقینًا بې اودسه وی، مثلًا یو سَړي حنیفي مذهبه وو او درکه د لاس یه خلاص کړی او بیا بیله اودس تازه کولو لمونځ وکړي کې څه هم لمونځ خونه دی صحیح ولې چې په مذهب کښې دحنیفیا نو په رګ وَهلو اودس ماتیږي. لکن بیا هم کافر نه دی. ولې چې امام شافعیؒ او امام مالکؒ په رګ وَهلو اودس مات نه بولي.

# فَصْلٌ فِي التَّحَرِّيْ

**پوښتنه:** چې دَ تحری معنا دلته فکری کوشش کول دی تا چې پاکې او نجسې اوبه وَرته معلوم سی. امام نوویؒ په شرح کښې د مسلم داسې وَائیُ چې تحری و تأخی و توخی په یو معنیٰ دی

## لَوِاخْتَلَطَ اَوَانٍ اَكْثَرُهَا طَاهِرٌ تَحَرّٰى لِلتَّوَضُّوْءِ وَالشُّرْبِ

که چیری ګډ سو لوښې، «اوانٍ جمع د اناء ده» چې د ډیرو اوبه پاکې وی او دلږو دا نجسې وی، او اوس وَسړي ته پاک لوښی او مردار لوښی نه معلومیده، نو ډیر غور او فکر دی وکړي په دَغو لوښو کې چې اودس په تازه کړی یا غسل په وکړی او یا یه وَچښي، نو پس له تحری څخه د هر لوښی او بر چې په خیال پاکې وَرغلې په هغو اوبو دی اودس تازه کړي یا دی غسل په وکړی او یا دی وَچښي،

مسئله: که چیرې دوه لوښي وه مثلاً یو پاك بل ناپاك او د سرې نخښه ورك سوه بیا به تیمم وهي. او افضل داده چې د دواړو لوښو اوبه دې سره ګډې کړي او یا دې توی کړي تا چې مطهر او به یقیني د ما بین نخښه ولاړي سي نو بیا دې تیمم ووهي»

مسئله: که درې کسه وه مثلاً او درې لوښي وه چې دوه پاك وه او یو مردار» او د دغو دروسرو کسانو نخښه پاك لوښي او مردار لوښي ورك سوه. او بیا دروسرو تحري وکړه پر خیال یو لوښي نجس وره غلی، د بل په خیال بل لوښي نجس وره غلی او د بل په خیال بل یعنی جلاجلا لوښي» او د روسره وو په هغه لوښي او دس تازه کړي چې د ده په خیال پاك ورتی. نو لمونځونه د دروسره وو صحیح دي لکن جلا جلا بې کوي جماعت نه دی ورته روا

پوه سه: چې اختلاط دوه قسمه دي» اختلاط ممازجته» یعنی چې پاکې او به او نجسې او به سره ګډې کړې په یوه لوښي کې» او بل» اختلاط مجاورة دی. یعنی چې نجس لوښي جلا وي او پاك لوښي جلا وي» لکن د سرې نخښه ورك سي» دلته مراد اختلاط مجاورت دی»م

## وَاِنْ کَانَ اَکْثَرُهَا نَجَسًا لَایَتَحَرّٰی اِلَّا لِلشُّرْبِ

او که ډیر لوښو مردار وه نو تحري دي نه کوي مګر د څښلو د پاره» یعنی داو د اسه د پاره دې تحري نه کوي بلکه تیمم دې وکړي لکه» عادم الماء» دلیل د دې مسئلې دا دی چې دا ټول لوښي نجس دي» اعتبارًا للغالب» پس په نیز د اکثرو مشائخو اوبه دې ټولې توی کړي چې عادم الماء وګرځي بیا دې تیمم وکړي. او په نیز د امام طحاوي دا ټولې اوبه دې سره ګډې کړي کې حیوان په اوبه کاوه»   «قال المصنف»

## وَفِي الثِّيَابِ الْمُخْتَلِطَةِ يَتَحَرّٰى سَوَاءٌ كَانَ اَكْثَرُهَا طَاهِرًا اَوْ نَجَسًا

او که جامې سره ګډې وي یعنی بعض مرداري او بعض پاکې او د سرې نخښه د رك ورك سوه نو تحري به کوي خواه اکثرو د دغو جامو پاکې وي او که نجسې وي» د دو لیش وائي» چه وجه د فرق په مابین کې د اوبو او د جامو داري چې اوبه خلف او بدل لري چې تیمم دی او جامه بدل نه لري





مسئله: قال المصنف فی مراقی الفلاح» که دیو سړي دوې جامې وي یوه پاکه او بله مرداره نو دی سړي چې تحري وکړه یوه معینه جامه یې په خیال پاکه وګڼله او هغه بله مرداره نو په هغه پاکه جامه کې ده په عقیده لمونځ وکړي»

وروسته چې د بل لمانځه وخت راغلی تحري یې بدله سوه» یعنی هغه جامه چې ده د مخه پاکه ګڼلې او لمونځ یې په کښې وکړي په خیال یې مرداره وګڼله. په هغه بله جامه کې لمونځ نه دی روا بلکه په هغه اوله جامه کښې بې کوي» ولې یو اجتهاد چې په عمل سره نیك سو. په بل اجتهاد سره نه ماتیږي»

وخت نګه چې مونږ جامه پاکه وګڼله په اجتهاد سره د جهت نخښه د ضرورت» نو په بل اجتهاد سره نه مرداریږي» نو بناءً علی هٰذا هر څو لمونځونه چې په اوله جامه کی کړي وي هغه صحیح دي. او هر څو لمونځونه چې په وروستنۍ جامه کښې کړي وي هغه فاسد دي را ګرځول یې لازم دي» او د دې مبحث تفصیل په مراقی الفلاح او طحطاوي کښې مطالعه کړه ص۲۷.

# فَصْلٌ فِي مَسَائِلِ الْاٰبَارِ

فصل دی په بیان کښې د مسئلو د څاهانو»

## تُنْزَحُ الْبِئْرُ الصَّغِيْرُ

راکښل کیږي د کشتنی څاه نخښه» یعنی چې عشر فی عشر نه وي» پوه سه: چې څاه خو نه کښل کیږي بلکه اوبه راکښل کیږي نو دا مجاز دی چې ذکر سوی دی محل چې څاه دی مراد حالّ دی چې اوبه دي سبب د دې مجاز مبالغه ده د اوبو په راکښلو کښې یعنی ټوله اوبه به ځندي کاږي»ط

فائده: صاحب النهایه په شرح کی د هدایه دا سې وئیلي دي چې فقهاء» وائي چې مسائل د څاهانو بناء دی پر متابعت د احادیثو مبارکه وو. او قیاس په دې مسائلو کی کار نه لري» ولې که سړی وقیاس ته وګوري» نو یو قیاس به دا حکم وکړي چې څاه چې مردار سو

بیا ابدی پاك نه سی ، ولی هغه مرداری او بر یه په دیوالو او ختهو تنو تلی دی نو که تولی او
نا و کښل سی هغه په ختهو او دیوالو کښی هغه مرداری او به پاته دی ، لکه یو عالِم
و دغه قیاس نه تګ کړی دی »

او بل قیاس داسی هکم ښکاره کړی چی د څا او به حکم د جاری او بولی په هیڅ نجاست نه
ولی د څا څخه چی غومره او به راخیژی ، هغونه او به دلاندی دخواد چینو څخه و تړلې
نو څا لکه حوض د حمام چی دیوی خوا نه لکه ورته راښهیږی . او دبلی خوا غاسلان او به څنډ
اخلی نو هغه حوض هیڅ وخت نه مرداریږی » « قَالَ المُصَنِّفُ »

# بِوُقُوعِ نَجَاسَةٍ وَإِنْ قَلَّتْ مِنْ غَيْرِ الْأَرْوَاثِ كَقَطْرَةِ دَمٍ أَوْ خَمْ

په لویدلو د نجاست یعنی په څا کی که څه هم لږ نجاست وی غیر د خوشیو څخه لکه یو څاڅکی وینه یا شرا
په دی دلیل چی لږ او به په لږ نجاست مرداریږی »م ، دخوشیو او پوچو حکم به زر راسی ان شاء الله

# وَبِوُقُوعِ خِنْزِيرٍ وَلَوْ خَرَجَ حَيًّا وَلَمْ يُصِبْ فَمُهُ الْمَاءَ

او د غه رنګه دی تولی او به د څا څندی کاږی په لویدو د سرکوزی که څه هم ژوندی راوخیږی ، او خوله یې او بو
نه وی رسیدلی . ولی چی سرکوزی نجس العین دی » « قَالَ المُمَصَنِّفُ »

# وَبِمَوْتِ كَلْبٍ

او د غه رنګه دی او به تولی کاږی که سپی په کښی مړ شو ، وَاوره
د مرګ قید یې په سپی کښی وَوایه د دی سببه چی سپی نجس العین نه دی پر صحیح مذهب
مسئله: که سپی وَ څا ته وَلویږی او ژوندی راوخیژی او خوله یې وَ او بو ته نه وی رسیدلی
هغه څا پاك دی » م ، هدایه ، رد ،

# اَوْ شَاةٍ اَوْ اٰدَمِيٍّ فِيهَا

او یا پسه مړ سی په څا کی او یا سړی مړ سی په څا
یعنی تول او به د څاه به کاږی . پوهه سه : چی لفظ
شاة اسم جنس دی میږ او د میږی اولاد او بزه او د بزی اولاد تول تَه وَائی . لکن مراد د



څه غټو کی وی » که بیځی کچنی وو نو حکم یې حکم د پشی دی » ط »
غه شاة چی : چی د سړی په مرګ سره د څاه مردار والی په سبب دد بے دی چی یو وخت د زمزم
پوهه سه : چی د سړی په مرګ سره د څاه مردار والی په سبب دد بے دی چی یو وخت د زمزم
په څاه کی حبشی مړ سو نو عبد الله ابن عباس رض ، او عبد الله بن الزبیر رض چی حضور د صحابه
و کښی دا فتوی ورکړه چی د زمزم د څاه او به دی تولی او ایستل سی . او هیڅ صحابی انکار
پر وکړی »
د دی خبری راز دی چی غالب حال د میت دادی چی د نجاست څخه بخالی نه وی . او که چیری دا
نظیف او پاك وو یقینا یا په غلبه ظن سره نو د څا څخه هیڅ او به دِ نه راکاږی . او دا
روایت دی دابی القاسم الصفار څخه او قهستانی د محیط څخه هم نقل کړی دی »
روښ والی : په دبے مسئله کښی دیر تفصیل سته و کتابو ته د ناو او و رجوع و کړه »

# بِانْتِفَاخِ حَيَوَانٍ وَلَوْ صَغِيرًا

او دا غه رنګ دی تولی او به راوکاږی . په پړسیدو
د حیوان په څاه کی که څه هم هغه حیوان کشنی وی . یعنی لکه موږك یا غټ منګوږ و غیره »
پوهه سه : چی مراد د حیوان څخه هغه دی چی وینه لری ، او حیوان د او بو حیوان نه دی قید و
فائده به یې زر ښکاره سی » اِنْ شَاءَ اللّٰهُ تَعَالیٰ »
مسئله ، که حیوان په څاه کی وشو ړیدلی وو او یا یې و یښتان توی سوی وَه . او یا د مرغه
بڼکی ختلی وی » هم یې تولی او به راوباسی » او هغه چی بعض والئ دکچنی حیوان په
صورت کی دی لږ سولغی راکاږی قوی خبره نه دَه » ط . « قال المصنف »

# مَا تَادَلْوٍ لَوْ لَمْ يُمْكِنْ نَزْحُهَا

پوهه سوه سولغی دی را کاږی که چیری ممکنه راکښل د تولو او بو نه وَه »
مسئله : څاه هلته پاکیږی چی هغه مردار شئی د هغه څنډ ی راوکاږی . وَلی چی نجس په کښی
چی لفظ د او بو کښل فائده نه لری » مګر هغه وخت چی مردار شئی یو لرګی یا یو تو کر وی چی هغه
مراد د او بو کښونکی پلاس نه ور تلی او یا په او بو کی وَرك سو ، نو په دی صورت کښی دی

هغه مقدار پوره کړی او لرګی او تهوکر په تبع د څاه پاکیږی ط»

**فائده** حضرت الامام محمدؒ چې د بغداد څاه هان کثیر الماء وَلیدَ ل. ولې چې نږدې د ورود ته د دجلې. نو یه فتوی په ۲۰۰ دوه سوه سولغو ورکړه» مګر په هدایه وغیره کښې وائی چې استحبابًا دی ټول سولغی نوری پرې یاتی کړې چې ۳۰۰ دری سوه سې

**مسئله:** معتبره هغه سولاغه ده چې پر دغه څاه اکثره استعمالیږی

**مسئله:** که په راکښولو کی د سولغی څخه بعض او به توی سی پروا نه لری

**فائده:** په هدایه او نورو کتابو کی وائی که خلګو دهغه مردار څخه په لوی غټی سولغی سره او به راوکښلې چې دهغه څاه تر سولاغه دیره لویه وه روادی». حساب به وړو کوی مثلاً که هغی سولغی یا نیم دری سولغی د څاه ځایه ولې، نو چې سل سولغی په غټه سولاغه راوکاږی څاه پاک سُو»

**مسئله:** پر یوه ځای راکښل د ۳۰۰ دری سوه سولغو شرط نه دئ کی په نوی دری ورځو راوکاږی هم څاه پاکیږی. مر صلا۔ **تنبیهانه فائده:** څاه هغه وخت پاکیږی چې اخیره سولاغه د څاه دخولی څخه راووزی په نیز د شیخینو. او په نیز د امام محمدؒ هغه وخت پاکیږی چې اخیره سولاغه د څاه داوبو څخه جلا سی»

**مسئله:** که د څا او به تر دوه سوه سولغی کمی وی او ټوله یه راوکښی نو څا پاک سُو.

یقول الفقیرؒ چې مسئلی د څاهانو اکثره بناء پر مذهب د امام محمد دي»، ولې چې خلګو ته آسانی ده او وسوسه خلګو ته هم نه پیښیږی، او په کنز کی پر دغه مذهب یقین کړی دی، وَفی الملتقی ایضًا کذالِکَ، وفی الخلاصة وعلیه الفتوی، وهو المختار کما فی الانهر ورجحه فی النهر وتبعه الحموی»، اما په مراقی الفلاح کښی وائی چې دوه بحثه داسی کل چې د نوی او بو او د زړو په فرق پوهیږی، هغو ته دی د څاه داوبو کار وسپاری چې دوی وویله پاک دی نو پاک سُو» او نور ورته مذهبونه هم سته چې په کتابو کښی د فقه شریفی ذکر کړه سوی ده، لکن د عامی په عقیده هغه ټوله یا خولیخی تکلیف دی» او یا سبب د وسوسی ګرځی. او مذهب د امام محمد صاحب ډیر سهل دی،، والله اعلم بالصواب والیه المرجع والمآب؛



# وَلَوْمَاتَ فِيهَا دَجَاجَةٌ اَوْ هِرَّةٌ اَوْ نَحْوُهُمَا

یعنی چه که چیری مړه سوه په څاه کی چرګه یا چرګ او یا پیشی او یا په مثال د دوی یعنی په بدن کی لکه غټه مثل خرما. لکن پړسیدلی به نه وی.

# لَزِمَ نَزْحُ اَرْبَعِينَ دَلْوًا

لازم دی پرځا والا راکښنګ د څلویښتو سولغو لکن پس له راایستلو د هغو شیانو د څا څخه، **فائده:** د څلویښتو سولغو راکښل د ابوسعید الخدریؓ څخه روایت دی په چرګه کښی او استحبابًا دی لس سولغی نوری پرې یاتی کړي چې ۵۰ سی» م

# وَاِنْ مَاتَ فِيهَا فَارَةٌ اَوْ نَحْوُهَا لَزِمَ نَزْعُ عِشْرِيْنَ دَلْوًا

او که مړه سوه په څاه کښی موږک او یا مثل د هغه په صورت کی لکه چوغکه او یا پړک او یا بل مثل لازم دی کښل د شلو سولغو. یعنی پس له اخراجه د هغه مړه شی او بل دا چې پړسیدلی به نه وی دانسؓ څخه روایت دی چې که موږک په څاه کی مړ سی او سمدلاسه را وایستل سی شل سولغی به را کاږی» او مستحبه ده چې لس دی نوری پر بالا کړی چې ۳۰ سی» »قال المصنفؒ»

# وَكَانَ ذٰلِكَ طَهَارَةُ الْبِيْرِ وَالدَّلْوِ وَالرِّشَاءِ وَيَدِ الْمُسْتَقِى

او دی د غه راکښلو او به پاکوالی د څا او د سولغی او د رسی او د لاس د راکښونکی د اوبو، یعنی د غه رنګه د کالود مستقی، **فائده،** دا روایت دی د امام ابویوسفؒ او د الحسن بن زیادؒ ولې چې د دی شیانو نجاست د اوبو په نجاست سره دی» نو پاک والی یه هم په پاکوالي د اوبو دی د جهت د دفع د حرج چې په دین محمدیؐ کی نسته»، مر ط،

**مسائل شتی** مرا د امام ابویوسفؒ څخه روایت دی چې د څلورو موږکانو حکم د یوه موږک دی، او پنځه موږکان د پیشی په حکم کی دی بیا نو نهو پوری د شاة په حکم کی دی» او امام محمدؒ وائی چې پنځه موږکان لکه پیشي دی

پہ حکم کی. او شپږ لکه سپي دي په حکم او دغه هم ظاهر الروایت دی» م» او هغه حیوان چي په بدن کي په مابین د موږ ک او پشي وي حکم یې د موږک دی» او هغه حیوان چي په بدن کي په مابین کي د پشي او سپي وي حکم یې د پشي دی» او که ځاته ولویدل پشو او موږ ک د واړه نو د واړه لکه یوه پشي یعني اقل په اکثر کي داخل دی. او په فتاوی خانیه کښي وایي چي پوستکی د انسان او یا غوښي د هغه چي ځاته ولویږي نو که په قدر د نوک وي او به مرداره وي» او کم تر هغه چي وي او به نه مرداره وي» او که چیري نوک په خپله ځاته ولویدی ځاه نه دی مردار»

او بولي د پشي یا غُل د دی او بولي د موږک یا غُل د هغه نجس دی په اظهر روایاتو کي نو او به او کالي په مرداریږي» او بولي دي د چوپړک او غُول د هغه او به او کالي نه مرداره وي» په دی سبب چي احتراز ځنی سخت دی» انتهی قول الخانیه بنقل» ط.

او په شرنبلالیه کي وایي چي صحیح داده چي په بولو د موږک ځانه مرداریږي»

## وَلَاتَنْجِسُ الْبِئْرُ بِالْبَعْرِ وَالرَّوْثِ وَالْخُثْيٰ

او نه مرداریږي ځا په پچو چي د لېسو او اوښانو چکړه وایي، او نه په «روث» چي د آس او غاطر او خره چکړه وایي. او په «خُثیٰ» چي د غوایو او کامیښو چکړه وایي»

تفصیل د دی مسئلي: پوه سه: چي قیاس او عقل وایي چي دغه مذکوره شیان خو نجس دی او په لږ او بو کښي ولیده لو باید او به مرداري سي» لکن استحساناً موږ داوایو چي او به نه مرداریږي» د هدایه په ص$\frac{45}{42}$ کي وایي» اِنَّ اٰبَارَ الْفَلَوَاتِ لَيْسَتْ لَهَا رُؤُسٌ حَاجِزَةٌ ، چي ځاهان د صحرا نسته دوی لره سر پوښنه »چي مانع د وقوع څه د پچو وغیره دی وگرځي» وَالْمَوَاشِيْ تَبْعَرُ حَوْلَهَا فَتُقَلِّبُهَا الرِّيْحُ فِيْهَا فَجُعِلَ الْقَلِيْلُ عَفْوًا لِلضَّرُوْرَةِ ، او مواشي یعني پسونه او ښان وغیره پچي کوي پرشاو خوا د هغو ځاهانو او بیا دغه پوچي وځاهانو ته وراچوي نو ځکه لږ د هغو پوچو عفوه دی د ضرورت له کبله» انتهی»





دروېش وایي: چي د دی دلیل څخه داسي فهمیږي چي د ځاهانو د صحرا او د ښار و فرق سته یعني د ښار و ځاهان د باید مرداري سي»

ولي د ښار و ځاهان خو باقاعده سر پوښونه لري» او بل دا چي په ښار و کښي مواشي نسته نو د ښار و په ځاهانو کي ضرورت نسته» نو ځکه په فتح القدیر کي وایي چي د ښار و ځاهان په لږ و پوچو هم مرداریږي» لکن د مراقي الفلاح په ص۳۰ کي وایي «وَلَافَرْقَ بَيْنَ اٰبَارِ الْاَمْصَارِ وَالْفَلَوَاتِ» او فرق نسته په مابین کي د ځاهانو د ښار و او بیابانو» په صحیح روایت او د هدایه په ص۴۲ کي او د مراقي په ص۳۰ کي وایي چي وچ او لانده او روغ او مات د دغو شیانو فرق نسته په صحیح روایت کي،

او د امام سرخسيؒ وایي چي خوشایي مطلقاً او ماتي پوچي او به مرداره وي په ظاهر الروایت کي.

مسئله: که میږ په ډکي کي په وخت کي د لوشلو یوه یا دوي پوچي وکړي. پوچي د غوړ خوري او شیدي پاکي دي ودي خوري» ولې چي ضرورت دی چي د میږي او بزي دا عادت دی چي په وخت کي د لوشلو پوچي کوي» هدایه ص۴۲.

نکته: که غوا خوشایي وکړه په ډکي کي شیدي دی نه چښو چي ضرورت نسته لِعَدَمِ الْعَادَةِ» مسئله: که په لوښي کي دا و بو یوه یا دوي پوچي ولویږي هغه او به مرداري دی لعدم الضرورة» هدایه» «قال المصنفؒ»

## اِلَّا اَنْ يَّسْتَكْثِرَهُ النَّاظِرُ اَوْ اَنْ لَّا يَخْلُوْ دَلْوٌ عَنْ بَعْرَةٍ

مگر هغه وخت عفوه نه دی که د کتونکي په خیال ډیري ورتلي او یا هیڅ یوه سولاغ د پوچو څخه خالي نه وو پوه سه، چي بعض علماءؒ وایي چي دري پوچي په ډیر و کښي حساب دی» او بعض فقهاءؒ وایي چي که پوچو مخ د او بو پټ کړي وو» نو هغه ډیري دی» او د حضرت الامام الاعظمؒ څخه روایت دی چي کثیر هغه دی چي مبتلا به یې په ډیري و بولي، قال الشرنبلاليؒ وعلیه الاعتماد،

کتبه احقر العباد ... الحق بقلمه - ونشر من مکتبة القراءت والتجوید،

# وَلَا یُفْسِدُ الْمَآءُ بِخُرْءِ حَمَامٍ وَعُصْفُوْرٍ

اوبه فاسدیږی یعنی نه مرداریږی اوبه په غولو د کوترو او یا چڼوکي، او دغه رنګه دي
دریک، توتکی، تارو، کرک، سورسرې. او نور هغه مرغان چې غوښې یې خوړل
کیږي ماسوا د چرګي او ایلي، طحطاويؒ وائي چې د اول زماني څخه د اسلام او بیا
وروسته تر هغه زماني علماوو اتفاق کړي دی، پر جواز د ساتلو د کوترو په مساجدو
کښې حتی په مسجد الحرام او مسجدِ نبويؐ کې ٥ او سره د دې چې شرع شریفې امر کړي دی
په پاک ساتلو د مساجدو د مرداری څخه نو دا ظاهره ده چې خرء الحمام پاک دی؛
او په حدیث کې د ابن مسعودؓ راغلي چې کوترې پر ده غول وکړه ده په ګوته سره ایسته کړه
او ورته حدیث د عبدالله بن عمرؓ څخه هم روایت سوی دی، وَفِی الْمَرَاقِی چې مختاره په
دیرو کتابو کښې د مذهب حنفي پاک والی د خرء الحمام دی،

**مسئله:** په غولو کې د هغه مرغانو چې غوښې نه خوړل کیږي یعنی مرداري
وي لکه تپوس، کارګه، شیڅون، وغیره اختلاف دی، قَالَ فِی الْخَانِیَّةِ، چې غول د هغو
مرغانو چې غوښې نه خوړل کیږي، اوبه نه فاسده وي، فی ظاهر الروایة عند محمدؒ
ولې د هغو څخه ځان، او لوښي، اوښاهان، ساتل مشکل دی، ولې چې د غه مرغان په هوا کې
غل کوي، او بیا خانیه والا وائي، چې غول د هغو مرغانو چې د نده وي لکه بان ګرځک
وغیره که پر کالو د چا ولویږي کالی مرداریږي که دیر وه. او د لوښو او به مرداره وي. اوښا
اوبه نه پر مرداریږي، انتهی

## تنبیه ضروري

په نهایه کښې چې د هدایه شرحه ده داسې وائي: چې یو شی چې د فساد و حالت ته ورسیږي
دا نه واجبوي چې هغه شی دی مردار سي، مثلاً تو له مطعومات په سبب د دیرد رنګه
فاسدیږي. او مردار نه دی، د فساد نتیجه یې دا ده چې خوړل یې حرام دی په دغه حالت
کې ولې چې بد نته ضرري نه د نجاست د سببه؛





مثلاً غوښې چې دیري بد بویه سي خوړل یې حرام او مردار دی یعنی که د سړي سره د لاندې
په حالت کې ورسیږي لمونځ ورسره وائي - او که څاڅه ولویږي څاه نه پر مرداریږي،
په تذکره کې د حکیم داؤد داسې وائي چې فسیخ چې په مصر کښې مشهور دی چې هغه
د ماهي غوښې وچې کړي، او بیا یې خوري، یا په کټوکي او یا په غوړو کښې خوړل یې حرام دی
په سبب د دې چې د طبي لاري، د غه غوښې سُدې په معده کې پیدا کوي، او بیا د قولنج
هم د دغو غوښو څخه پیدا کیږي،
او په ګردو کې دیرې ځنډې پیدا کیږي، او ګچې بلغم ځنډې زیږي، او په پسرلي کې
وبائي تبې ځنډې پیدا کیږي، او د سل مرض هم د دغو غوښو څخه پیدا کیږي.
او د دې سره سره، مرداری نه دی ٥

**فائده:** وچې کړي غوښې که څه هم بدبویه نه وي، هغه ضرر مني د غوښو دي وبد نته
د سړي مګر هغه کسانو ته تاوان نه رسوي، چې د بیلچې، یا د یوم، یا کلنګ کار و نه
کوي یعنی خواري کښ وي، لکه باغبانان، بزګران، روزانه والا مزدوران، لکن بعض طالبان
طبعًا یې بوی ناکه غوښې خوښې وي، لکه زما یو طالب علم دی چې نوم یې ساقي محمد دی
او په قوم الکوزئ دی او د خاکریز د علاقي دی دده دا بوی ناکه غوښې تر بې بویه غوښو
خوښې دي. نوما نن ورته وویل چې دا دیري بوی ناکه غوښې مه خوره چې د دې خوړل
کتابي حرام دی، نو ده اجازه راکړه چې زما نوم شائع کړه ٥ ،، قَالَ الْمُصَنِّفُ،،

# وَلَا بِمَوْتِ مَا لَا دَمَ لَهٗ فِیْهِ کَسَمَكٍ وَضِفْدَعٍ

او نه مرداریږي اوبه بلکه پاکې چې بهیدونکې وي لکه سرکه پر اصح روایت، په مرګ سره د هغه حیوان چې ده لره
وینه نه وي یعنی بهیدونکې وینه لکه ماهي او چونګښه، د سائل قید مراقی الفلاح
د دې د پاره راوړي دی چې مطلق وینه خو هر حیوان لري، قَوْلُهٗ فِیْهِ، یعنی په اوبو کښې،
پوهه سه: چې دا قید چې په اوبو کې اتفاقي دی، ولې که د غه حیوان د باندې مړ سي
او اوبو ته واچول سي. هم اوبه نه مرداره وي، طم۳۱۔

فـائـده: چنګښـه که څه هم مصنف مطلق وَئیلی ده لکن دی پَه شرح کښی والیُ چی مراد بحری چنګښـه دَه، ولی چې بَری یعنی صحرائی چنګښـه اوبه مرداره وی کی بهیدلی وینه دَرلوده، فـرق دبری او دبَحُری چنګښی دا دیُ، چې دبری چنګښی ګوتو پـه مابین کی پرده نشته او بحری پَرده لري، «قـَالَ المصنفؒ»

## وَحَیَوَانُ الْمَآءِ

او نه مرداریږی اوبه پـه مَرګ دحیَوان المآء لکـه چنګابن، او د اوبو سـپَیُ سَرکوزی، م فـائِـده: فرق پـه مابین کښی دَبری او بحری حیوان دا دی چې بحری حیوان بیله اوبو ژوند نشی کولاَی، او بری هغه دی چې بیله صحرا یعنی پـه اوبو کښی ژوَند نشی کولادیُ» د اول مثال لکه مَاهی، داوبو سَپَیُ، وغیره او د دوهَم مثال لکه شرمُښکی وَغیره، او پَه داسی حیوان کښی چې پـه بَر او بحر دواړو کښی ژوند کولای سِی لکه بحری چنګښَه، اختلاف دی، قاضیخانؒ پـه شرح کښی دجامع صغیر وائی: چی فا سده وی، او پـه مجتبیُ کی وائیُ چی نِی فاسِدَه وی» ط، قَالَ المصنفؒ،

## وَبَقٍّ وَذُبَابٍ وَزُنبُورٍ وَعَقرَبٍ

او بـه نه مردار وی، مَرګ دغتی غوماشی، یَادمَچ، یاد غالبوزی، یا دَلړم، غالبوزه څو قسمه ده، زیړه غالبوزه، تـَـنـدره غالبُوزه، مَچـمَچیُ، او لړمان هم رَقم رقم دي. خو پـه یوه رقـم یَـه اوبـه نه مرداریږی. پوښـتـنه: چی پـه نیز دحکما ولړم تول نوع یه ړانده، او ط، وائیُ چی دَ لړم سترګی یـه دَشاه پـه مابین کښی دی» وَ اللّٰهُ اَعْلَمُ، او لړم چې سَری وَ ښوری نو وهی که بیده وی او که وِیښ.

دَلړم څخه ساتنـه: ابوهریرهؓ د نبی عَلیه الصَّلوة وَالسَّلام څخه روایت کړی دیُ، که څوک علی الصَّباح دغه کلمات وَ وَیلی لړم به تر ماښام کار نـه پـه وَلری، او که څوک دغه کلمی ماښام وَ وَیلی تر سحَاره بـه دَ لړم د شرم څخه محفوظ وی، یعنی، اَعُوذُ بِکَلِمَاتِ اللّٰهِ التَّامَّاتِ مِنْ شَرِّ مَا خَلَقَ ۳ دری واره.



او دَ مَچ پـه بَاره کی: پـه یوه اوږده حَدیث کی دا آنحضرت م څخه روَایت دی، کـه چیری ولویدی مَچ پـه اوبو کښی د یوه ستاسِی نو دا مچ دی پـه اوبو کښی غوټـه کړي او بیا دی څنډی وکاږی الحدیث رَوَاه البخاری»

وجه دَلالَت: ددی حدیث پـه پاکوالی د هَغو اوبو چی مَچ پکښی مړسی دَاده، کـه چیری اوبـه پـه مرګ دمچ مرداریدای نو آنحضرتؐ ولی امرد غوټـه کولو وَرکاوه او معلوم دی چې پـه غوټـه کولو سره خو مَچ مړکیږی، نو خو اوبه ضائع کیږی، او شارع م پـه دی سره امر نـه کوی» او پـه بل حَدیث کښی چی مَرَاقی یـه نقل کړي دی داسی راغلی دی، چې آنحضرت م و سلمان ته وویل یا سلمان هر خوراک وَښکی ته یا او بُو ته چې وَلویږی دَا تـه چې وینه لری او پـه کښی مړه سی، نو دغه طعام خوړل حلال دی، او داوبو څښل یا اودس پـه تازه کول هم روادی، پـه تعمیم کی مَچ هَم داخِل سُو، «قـَالَ المُصَنِّفُ»،

## وَلَا بِوُقُوعِ اٰدَمِیٍّ وَمَا یُؤْکَلُ لَحْمُه

او نه مرداریږی څاپـه لویدو سره دانسان که څه جنب وی او یا کافروی او یا حائضه یا نفسا څخه وی چې وِني قطع سوی وی، او نه مرداریږی څاپـه لویدو سره دهغه حیَوان چې غوښی یـه خوړل کیږی، لکـه پسـه، بزه، وَغیره

## اِذَا اُخرِجَ حَیًّا وَلَمْ یَکُنْ عَلٰی بَدَنِهٖ نَجَاسَةٌ

چې راوایستل سی دَ څاه څخه دَغه شیَان ژوندی او پر بَدن باندی نجاستِ حقیقی نه وي،

پوښتـنـه: چې مراد دادی چی یقینی نجاست نه وی پـه احتمال د نجاست یا نجاست حکمی لکه حیض او نفاس او جنابت څاه نه مرداریږی، م،

مسئـله: که دچرګی ترکونه اګی راووتل او پـه اوبو کښی وَلویدل، او یاد میږی دحمه څخه وَری راوَوتیُ او لویدل هَم وُو، سمدلاسه پـه اوبو کښی ولویدی اوبه نـه مرداریږی، تر هغو چی یقینًا دا نه وی معلومه چی د اګیُ یا دَوَری پر صُورت نجاست سته، ولی چی رطوبت د مخرج خو مردار نـه دی»

اوبعض فقهاء دمخرج رطوبت مردار بولی ـ ولی چی دمردار ځای څخه راوتلی دي،
اول قیاس دمذهب دامام اعظمؒ دی، اومغه ته قاضیخان تللی دی، اودوهم قیاس دمذهب
دیارانو دی اودوی مذهب ته صاحب خلاصه تللی دی،، ط ص۳۲ والله اعلم بالصواب
درویش وائی چی ظاهر الحال تائید دمذهب دیارانو کوي.

## وَلَا بِوُقُوعِ بَغْلٍ وَحِمَارٍ وَسِبَاعِ طَيْرٍ وَوَحْشٍ فِي الصَّحِيحِ

او نه مرداريږی څاه په لویدو د غاطر اوخره، او درنده ګانو دمرغانو او دوقوع دوحشی
شیانو په صحیح روایت کی، لکن دا مسئله هلته ده چی دغه حیوانان ژوندی څخه
راوخیژی، اوطحطاوی وائی چی او به مشکوکی هم نه ګرځی، ولی چی بدنونه دغو حیوانانو
خو پاك دی ولی چی دوی زمونږ د استعمال دپاره خدائ پیدا کړی دی، او نجاست ددوی
دمړینی په سبب دی، او مصنفؒ چی صحیح وویله احتراز یې وکړی دقول څخه دهغه چا
چی وائی چی څاه ټوله مردار سو ټوله او به به څخه دی کاږی، ولی چه ددوی رطوبت دنارو
ددی حکم لري، « قَـالَ الْمُصَنِّفُ »

## وَاِنْ وَصَلَ لُعَابُ الْوَاقِعِ اِلَى الْمَاءِ اَخَذَ حُكْمَهُ

اوکه ورسیږی ناړی دهغه حیوان چی ذکر سو یعنی چی په څاکی ولویدی واوبو ته
دڅاه، نو ټولو بوته دڅاه حکم دناړو دهغه حیوان اخلی، یعنی کی ناړی نجسی وی او به نجسی
ګرځی۔ اوکی ناړی پاکی وی اوبه پاکی دی، اوکی ناړی مکروه وی نو اوبه مکروه ګرځی، په
فصل الاسار کی ذکر تیر سو، نو په صورت د نجاست دسوُر او یا دمشکوك والی د
سوُر ټوله اوبه به وجوبًا څخه دی کاږی، که ممکن وه، او که یه امکان نه وو، نو ۲۰۰ دوه سوه
سولغی وجوبًا او ۳۰۰ دری سوه سولغی استحبابًا، او مستحبه ده چی دکراهت په صورت
کی دی یو څو سولانی تکه چی سورة یه پاك وی او بعض علماء وائی چی ۲۰ سولغی څخه دی کاږی کلم
مسئله: خوله دهر حیوان لکه ناړی دهغه حیوان دی نو او به هم هغه حکم لري، ط





## وَوُجُوْدُ حَيَوَانٍ مَيِّتٍ يُنَجِّسُهَا مِنْ يَوْمٍ وَلَيْلَةٍ

عند الامامؒ احتیاطًا،

**ترجمه:** اووجود دمړ حیوان په څاه کی مرداروی څاه دیوی ورځی او شپی د مخه.
یعنی دا حکم هغه وخت دی چی پړسیدلی یا شورېدلی نه وی۔

## وَمُنْتَفِخٍ مِنْ ثَلٰثَةِ اَيَّامٍ وَّلَيَالِيْهَا اِنْ لَّمْ يُعْلَمْ وَقْتُ وُقُوْعِهِ

اوکه پړسیدلی وو نو د ۳ دری شوارو روزو څخه څاه مردار ګڼل کیږی، ولی چه پړسیدل د
حیوان دلیل ددی خبری دی چی دوخته وړ لویدلی دی. او دادواړه حکم هلته دی چی وخت د
دوقوع یې معلوم نه وی، دا قید ددی دپاره مصنفؒ ووایه ولی کی وخت دوقوع معلوم
وو یقینًا یا په غالب ظن سره بیا خو هیڅ اشکال نسته بلکه هغه وخت ته اعتبار دی،
وَفی المراقی ص ۳۲ نو خلك به را اوګرځوی لمونځونه دهغی مُدی یعنی یو شوار وز یا دری ۳
شوار وزه، که چیری دوی اودس په تازه کړی وو په اوبو دهغه څاه، دبی اودسیا په حالت
کی یا غسل دجنابت کړی وو دهغه څاه په اوبو، او کی مرداری جامی په پریولی وی هغه به هم
بیری مینځی۔ اوکه دوی اودس درلودی۔ او یا ئی جامی پاکی وی بیا دهغه څاه په اوبو اودس
تازه کړی او یا جامی پریولی بیا اګر څول د لمونځونسته په اتفاق سره۔

**مسئله:** که دوی نجسی جامی په پریولی وی. او اودس یه نه وو په تازه کړی نو
پر دوی یوازی پریولل دجامو لازم دی. او اګر څول د لمنځونسته بانه دی۔
ولی چه د ادا سی مسئله سوه لکه یو سړي چی په جامه کی نجاست وويني او وخت دا ضابت
د نجس نه وی ور معلوم۔ دهیڅ لمانځه قضا پری نسته. عاصی وائی چه دا ټوله مذهب د
امام اعظمؒ دی۔ او په نیز دامام ابویوسفؒ او امام محمدؒ، نجاست دڅا دوخت څخه
دعلم حساب ګڼل کیږی. او اګر څول دهیڅ لمانځه وربا ندی نسته۔ او نه وربا ندی پریولل
دهغو جامو سته چی ددغه څاه په اوبو پریولی وي۔

**مسئله:** په مذهب دامام اعظمؒ کی دهغه څاه په اوبو اوره اخښلی وه. هغه اوړه

اخبلي وه. هغه او په دې سپوته واچوي. يا دې په حيوانا توو خوري. او يا دې پرشافو
مذهب خرڅ کړي. ولې هغوي په مذهب کې هغه ځاې چې دوه ځيه او به په کښې وي پروقوع
د هيڅ نجاست په مردلن نه بولي. او هغه خبره چې په پښتو کې مشهوره ده چې مسکينانو
يا طالبانو ته دي ورکې غلطه خبره ده»
ولې چې د مردار شي خوړلے وهغه مسکين ته روا دې چې په حالت کښې د مخمصه وي يعني
چې د لوږې څخه مري. او داسې ورځې په اوسني زمانه کښې ډير سا در دې.
**خبره تر خبرې**. که يو سړي پر خپل پرتاګه مني ولېدل او وخت په نه وو
حکم په دا دې چې د هغه اخيره خوب څخه چې دې بيده سوي وو، جنابت د ده حساب ول کړي
قوله فيلزم اعادة آه د دې مسئلې دليل دادې. چې مانع د لمانځه خو باليقين ثابت دې چې
بې اودسيا ده. يا نجاست د ځاې دې او شك په مزيل کښې دې چې دغه او به دې
چې حيوان مي په کښې وو. او يا پرسيدلې په کښې وو او يقين په شك نه زائليږي ط.
قال المصنف:

# فصل في الاستنجاء

فصل دې په بيان د استنجاء کښې.

**فائده:** د نور الايضاح مصنف ډير ښه ترتيب کړي دې يعني چې فصل د استنجاء يې د اودس د مخه راوړي. ولې چې په اصل کې استنجاء تر اودس د مخه ده. بخلاف صاحب القدوري ولې چې هغه اودس ذکر کړي دې. او بيا ئې نواقض الوضوء ذکر کړي دي. او بيا ئې فصل د غسل ذکر کړي او بيا په باب د اوبو چې اودس پر روا دي که نه»، او بيا په فصل د احکام ود ځا ذکر کړي دي. او بيا يې باب التيمم ذکر کړي دئ. او بيا يې د مسح د موزو ذکر کړي دي. او بيا يې باب الحيض والاستحاضة راوړي. او بيا يې فصل د مستحاضه په بيان کښې. او بيا يې فصل د نفاس د بيان د پاره، او بيا باب الانجاس دئ.





## يلزم الرجل الاستبراء حتى يزول اثر البول و

لازم دی په سړي باندې. طلب د خلاص والي د بولو څخه تر هغو چې ختم کيږي اثر د بولو چې لند والي د ذکر د سر دي.

**حسب يطمئن قلبه على عادته** اود ده زړه ته اطمنان حاصليږي چې بولې اوس نو خلاصې سوي. او دا استبراء د سړي په عادت پورې اړه لري چې

## اما بالمشي او التنحنح او الاضطجاع او غيره

يا څو گامه واخلي، او يا دې غاړې تازه کړي، او يا دې پر بغل باندې پريوزي او يا غير د دغو کارو څخه. لکه د ذکر سر دي کرار کښې کاږي.

**فوائد المتن:** (١) مصنف نر ذکر کړي ولې چې د ښځې ځاې د بولو فراخ دي. او د نر دا تنګ دي نو ښځه دې صرف يو ګړي صبر وکړي او بيا دې استنجاء وکړي.
(٢) او مصنف يلزم ووايه يجب يې نه وو وايه د دې سببه چې لزوم تر وجوب قوي دي ولې د لازم په ترک سره د کار صحت نيستي کيږي. نه په فوت کيدو سره د واجب» نو ځکه ترک د استبراء د ګناه کبائرو څخه دي. په يوه اوږده حديث کې چې روايت يې امام بخاري او نورو کړي دي» داسې راغلي دي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم د دوو قبرو په خوا کښې تير يدی» نو ملګرو صحابه وو ته يې داسې وفرمائيله. چې د دغه دوه قبرو والا په عذاب دي چې د يو د خپلو بولو څخه ځان نه ساتي او دې بل شيطانت کاوه. او دا خو معلومه خبره ده چې سړي د خپله جامه په قصد بولې نه کوي نو دا ظاهره سوه چې د غه صاحب قبر استبراء د بولو څخه نه کول» (٣) استنجاء يلخته ختمول دي د نجاست د مخ د خواڅخه يا د ښاه د خواڅخه په اوبو. او بيا په زول دي په لوټو وغيره م. د «نجو» معنى هغه شي دي چې د نسه وزي يعني يا غل يا بولې. او ازهري وائي چې «نجو» و قطع ته وائي.

(۲) په مقدمه غزنويه کښې وائي، چې استنجاء استعمال دي د دبرې يا لوټې يا اوبو" په هغه خاص ځاى کې، او "اِستِبراء" طلب د پاکۍ د بولو دا ترڅو چې په يقين يا په توخې يا په منبولو د ذکر وغيره کما مر" او "استنقاء" بنه تره پاکې ته وائي په لوټو او يا اوبو حتى چې بد بوئي هم ورک سي"

**مسئله:** که يو څوا استنجاء په اوبو ووهله او ورو سته يې کُنَه په لرو اوبو کې کښينوله اوبه نه مرداريږي. او کې استنجاء په لوټو ووهله او بيا يې کُنَه اوبو کې کښينوَل هغه اوبه مرداري دي. ولې چې د لوټو په استنجاء سره يکلخته نجاست د ما بين څخه نه ځي. ط " قوله حتى يزول اثر البول" د بولو دا اثر زائلوطريقه دا ده چې لوټه وذکرته ونسي چې نه لنديږي"

قال المصنفؒ"

# وَلَا يَجُوْزُ لَهُ الشُّرُوْعُ فِي الْوُضُوْءِ حَتّٰى يَطْمَئِنَّ بِزَوَالِ رَشْحِ الْبَوْلِ

او نه ده صحيح سړي ته شروع په اودا سه سره څو چې اطمنان او يقين ورته حاصل نه وي په زائليدو د لند والي د بولو" قال المصنفؒ

# وَالْاِسْتِنْجَاءُ سُنَّةٌ مِنْ نَجَسٍ يَخْرُجُ مِنَ السَّبِيْلَيْنِ مَالَمْ يَتَجَاوَزِ الْمَخْرَجَ

او استنجاء سنت ده" بلکه دا قوي د سننو څخه دا دا ده کافي ط " د هغه نجس څخه چې راووزي" په دې لفظ کې اشاره ده ودې ته چې که خوك پُسکې وا چوي استنجاء فسته باندي" بلکه بدعت ده" ولې چې پُسکې پاکه ده" دليل يه دا دي چې که خوك پرلا نده پرتا وي که پُسکې ولي ږي پرتوک يه نه مرداريږي کذا في العيني شرح البخاري"

ترجمه: چې را ووزي هغه نجس د يوه څخه د دوو لا رود نريا بنځې چې د شا خوا او د مخ خوا دَه" تر هغو چې دَرا وتو تر ځاى نجس تير سوى نه وي" قال في المراقي " چې استنجاء د مخ د خوا او د شا د خوا سُنت مؤکد دى د نر او د بنځې د پاره " ولې چې اکثرًا رسول





الله صلى الله عليه وسلم استنجاء وهَله " او واجب نه ده چې آنحضرت ص په بعضې او قاتو کې پرې ايښې ده" او صاحبُ السراج وائي چې استنجاء پنځه قسمه ده"

(۱) **فرض** ده دَحيض څخه (۲) د نفاس څخه (۳) د جنابت څخه (۴) او هغه وخت چې نجاست تر مخرج تير سوى وي. او دا تجاوز تر قدر د درهم بالا وي. (۵) سُنت ده که نجاست تر مخرج تير نه وو" کذا ذکره السيّدؒ.

**پوهسه:** چې دَا قيد چې د نجس د سَبيلينو څخه راووزي بنا پر غا لب دى" ولې که سَري د بل پر لندو غُولو کُنَه کښښيږدي د استنجاء حکم هغه دى تله د سَري د ځپلو غولو.

قالَ المصنفؒ

# وَاِنْ تَجَاوَزَ وَ كَانَ قَدْرُ الدِّرْهَمِ وَجَبَ اِزَالَتُهٗ بِالْمَاءِ

او که چيرې تير سوى وو هغه خارج تر مخرج" او دا تير سوى نجاست يه په قدر د درهم وو نو واجب سنت زائلول د هغه نجا

# وَاِنْ زَادَ عَلَى الدِّرْهَمِ اِفْتَرَضَ غَسْلُهٗ

په اوبو يا په بل بهيد ونکي شي لکه سرکه" او که هغه خارج زيات وو تر قدر د درهم نو بيا فرض دى پر يولِه يه په اوبو سره. **پوهسه:** چې نجس چې په قدر د درهم او يا بالاتر هغه وي ددي و زائلولو ته استنجاء نه وائي بلکه دى ته اِزَالَةُ النجاسَت وائي او دا معلومه خبره ده چې ازالة النجاست په مسح د لوټو نه کيږي بلکه پر يوله غواړي"

**اِختِلاف:** په نيزد امام اعظمؒ او امام ابو يوسفؒ اعتبار د قدر د درهم نجاست د هغه نجاست لره دى چې د کُني تر خوله تير وى" يعنى د کُني خوله نه ده په کښې حساب" او امام محمدؒ وائي چې د کُني خوله هم ورسره حساب دَه"

**اختلاف:** بعض فقهاءؒ وائي چې قدر د درهم په اعتبار د وزن دى چې هغه يو مثقال دى. او لعض عُلماء بيا وائي چې په اعتبار د مساحت دى چې اندازه يه يو ورغوى کيږي. فقيه ابو جعفر الطحاويؒ جمع د دې دوو قولو داسې کړيده. "چې که نجس جسد دار لودى" لکه غوکل نو اعتبار وزن لره دى" او که نجس مائع وو لکه

بولی نو اعتبار مساحت لره دی. او دا جمع کول مصنفؒ په مراقی الفلاح کښې هم تائید کړی ده. او په اول اختلاف کی فتوی پر قول د شیخینو ده. کما فی التبیین وصحح فی المضمرات، قال المصنفؒ

## وَيُفْتَرَضُ غَسْلُ مَا فِي الْمَخْرَجِ عِنْدَ الْاِغْتِسَالِ مِنَ الْجَنَابَةِ

او فرض دی پریوله د غولو د کښې یعنی په ماء مطلق سره، په نیز د غسل د جنابت یا حیض

## وَالْحَيْضِ وَالنِّفَاسِ وَاِنْ كَانَ مَا فِي الْمَخْرَجِ قَلِيْلًا

یا نفاس، که څه هم ما فی المخرج لږ وی، په مراقی کی وائی د دی د پاره چی ساقط سی فرضیت د غسل د هغه د ذمی څخه، د دی عبارت څخه دا معلومه سوله چی پر جنب که نروی او که ښځه. او پر حائضی ښځی چی د حیض څخه خلاصه سی او پر لنګی ښځی چی د نفاس څخه ووزی غسل فرض دئ. کی څه هم پر بدن هیڅ نجس نه وی.

**سوال:** فقهاء حضراتؒ استنجاء په سنتو کی د غسل راوړی او مصنفؒ وائی چی فرض ده **جواب:** سنت د مخه کول دا استنجا دی پر نور غسل نه نفس استنجاء[25]

قال المصنف **وَيُسَنُّ اَنْ يَّسْتَنْجِيَ بِحَجَرٍ مُنَقٍّ وَنَحْوِهٖ**

او سنت ده استنجاء په ډبره چی پاکوونکی وی او یا نحوه هغه لکه پاکه لوټه.

**پوښتنه:** چی استنجاء په خوارو هم روا ده. او په زاړه پاک ټکره هم روا ده او هم په زاړه پوستکی او کی پخپله په دیوال پوری کښېنه وموښول هم روا ده. او یا په محله پوری په کښېنه وموښل هم روا دی. او په زینه ډبره چی کښېنه خوږ وی استنجاء مکروه ده. او د غه رنګه په کاغذ باندی که څه هم شی نه وی پر نوشته استنجاء وهل مکروه ده. لکن مراد هغه کاغذ دی چی قابل د نوشتو وی، نو په هغه شی چی نن صبا خلک استنجاء په وچ (تیښو ټیپر TUSH UPEAR) په هغه مکروه نه ده، ولی چی هغه قابل د نوشتی نه دی





او هدا رنګه استنجاء مکروه ده په هغه ټکره چی قیمت لری، او د غه رنګه استنجاء مکروه ده په ښخی ښوی ډبره ولی چی پاکول د نجاست نسی کولای، قال المصنفؒ

## وَالْغَسْلُ بِالْمَاءِ اَحَبُّ

او استنجاء وهل په اوبو ډیر ښه دی. یعنی تر یوازی لوټو. ولی چی په اوبو سره طهارت بالیقین راځی او سنت پر کامله وجه ادا کیږی. او لوټه خو صرف نجاست لږوی. ترمذیؒ د بی بی عائشهؓ څخه روایت کړی دی چی هغیؓ نورو ښځو ته داسی وویله چی امر کړی خپل مړونه چی دوی دی استنجاء په اوبو وهی چی زه ځندی شرمیږم. ولی چی رسول الله صلی الله علیه وسلم استنجاء په اوبو وهله. **بدګمانی:** د بعض عوامو داخیال دی چی یوازی په اوبو استنجاء مکروه او بد کار دی. دا ګمان د دوی غلط دی.

## وَالْجَمْعُ بَيْنَ الْحَجَرِ وَالْمَاءِ اَفْضَلُ فَيَمْسَحُ ثُمَّ يَغْسِلُ

او جمع په ما بین د لوټو او د اوبو افضل کار دی نو اول د مسح د استنجاء د ځای په لوټو وکړی او بیا دی هغه ځای پری مینځی. په مراقی الفلاح کی وائی چی دا جمع په هره زمانه کښې افضل ده یعنی په زمانه کی د اصحابوؓ هم دا کار افضل دی. او په طحطاوی کی وائی چی دا جمع سنت ده زموږ په زمانه کی. او په زمانه اول کی دا جمع صرف ادب دی ولی چی د هغو زمانی خلکو لکه بوچی داسی چکر واهه»

په روایت کی د ابن عباسؓ داسی راغلی چی دا آیت مبارک «فِيْهِ رِجَالٌ يُّحِبُّوْنَ اَنْ يَّتَطَهَّرُوْا» یعنی په قبا کی داسی خلک دی چی دوی خوښ لری چی په ښه وجه پاکی وکړی. نو آنحضرتﷺ د اهل قباء څخه پوښتنه وکړه چی خدای پاک پر تاسی ثنا ویلی ده په باره کی د طهارت نو ستاسی طهارت څرنګه دئ. دوی ورته وویله، چی اول استنجاء په لوټو وهو او بیا په اوبو آنحضرتﷺ ورته وویله چی هم د غه کار سبب د صفت د پر وردګار دی»، رواه ابن ماجه

اَللّٰهُمَّ اغْفِرْ لِمُؤَلِّفِهٖ وَلِكَاتِبِهٖ وَلِوَالِدَيْهِمَا اٰمِيْن۔

## وَيَجُوزُ أَنْ يَقْتَصِرَ عَلَى الْمَاءِ أَوِ الْحَجَرِ

اوروادى يوازى اكتفاء پـه اوبوسَرہ او يـا پـه ډبرہ سَرہ. **پوهـه سـه**: چې اول افضل خو جمع داوبوا او لوټو دَه، دوهـم لمبر يوازى اوبه، دريم يوازى لوټې. خوسُنت په دروسَرہ پرځاى كيږى كه څه هم پـه فضيلت كى فرق سَره لرى. قَالَ الْمصنفُ

## وَالسُّنَّةُ اِنْقَاءُ الْمَحَلِّ وَالْعَدَدُ فِى الْاَحْجَارِ مَنْدُوبٌ وَلَا سُنَّةٌ مُؤَكَّدَةٌ

اوسنت پـه استنجاء وهلو كښى پاكول دَځاى دَاستنجاء دى او عدد په ډبرو كښى چې درى بروي مستحب دى او سنت مُؤكد نـه دى. **فـائـدَه**: اصل مقصُود د استنجاء څخه پاک كول دَځاى دى كه پـه درو ډبرو يا پـه درو واره پريولوسَره حاصل نسى نو تر درى واره دى بالا كوى پـه اتفاق سَره. اوكه پـه يوه لوټـه ځاى پاک سُو نو سَرې بالا بود پرې ونه كړې رَوا خوده لكن خلاف افضل دى». قَـالَ الْمُصَنِّـفُ.

## فَيَسْتَنْجِيْ بِثَلَاثَةِ اَحْجَارٍ نُدُبًا اِنْ حَصَلَ التَّنْظِيْفُ بِمَا دُونَهُ

نو استنجاء دى وهي په درو ډبرو از روى مستحب والى. كه چيرى حاصل سُو پاكوالى ځاى پـه كم سَره تر درو ډبرو: **پوهـ سـه**: چې مصنفؒ چې كيفيت د استنجاء بيان كړى دهغه پـه باره كښى شيخ كمال الدين ابن الهمامؒ پـه فتح القدير كښى پـه دى ځاى كى د عبارَت د هدايهُ، لِاَن المقصُود هو الانقاء آه دا سى وَائيُ: چې دا عبارت د اسى فائده كوى، چې حاجَت وهغه كيفيت ته چې پـه كتابو د فقهى شريفى ذكر سوى چې: اقبال او ادبار لكه چې وروسته دَستى بـه راسى حاجَت نسته. او پـه مجتبىٰ كى وَائيُ چې مقصُود پـه استنجاء كښى وائىٔ چې مقصُود پـه استنجاء كى خو انقاء پاک كول دى. نو هغه طريقه دى سَرې مختاره كړى چې ډير بـه كښه پـه غُولو فسى» او امام سَرخسىؒ چې هيڅ كيفيت استنجاء لرَه نسته. او قصد انقاء دَه، كما فى السراج او ابن اميا لحاجؒ چې



دغه خبره ډيره ښـه خبره ده» ط، رد»

## وَكَيْفِيَّةُ الْاِسْتِنْجَاءِ اَنْ يَّمْسَحَ بِالْحَجَرِ الْاَوَّلِ مِنْ جِهَةِ

او كيفيت د استنجاء (دنر د پاره) دادى چې مسح دى كړى كُنـه په اول ډبره دَمخ دخوا د شا و خواتـه

## الْمُقَدَّمِ اِلٰى خَلْفٍ وَبِالثَّانِى مِنْ خَلْفٍ اِلٰى قُدَّامٍ

يعنى دمخ خوا څخه دشا و خواته دى كش كړى. او پـه دوهم ډبره دى دكُنى مسح دشا دخوا دمخ و خواتـه راولى»

## وَبِالثَّالِثِ مِنْ قُدَّامٍ اِلٰى خَلْفٍ اِنْ كَانَتِ الْخُصْيَةُ مُدَلَّاةً

او د ريمه ډبره دى دمخه دخوا څخه شا تـه بوزى كه چيرى يې خوټې ځـړيـدلى وى.

## وَاِنْ كَانَتْ غَيْرَ مُدَلَّاةٍ يَبْتَدِئُ مِنْ خَلْفٍ اِلٰى قُدَّامٍ

او كه چيرى خوټې نـه ځـړيـدلى نو د شا دخوادى دَمخ وخواتـه بوزې.

## وَالْمَرْأَةُ تَبْتَدِءُ مِنْ قُدَّامٍ اِلٰى خَلْفٍ خَشْيَةَ تَلْوِيْثِ فَرْجِهَا

او ښځه دى استنجاء د ډبرو دمخ دَخوا شروع كوى دشا و خواته د دى بيرى دسَببه چې كُس يـه ككنړ نـه سى. يعنى پـه غولو» قَـالَـــ المصنفؒ.

## ثُمَّ يَغْسِلُ يَدَهٗ اَوَّلًا بِالْمَاءِ ثُمَّ يَدْلُكُ الْمَحَلَّ بِالْمَاءِ

او بيا وروستـه تر استنجاء دى د ډبرو دى سرې اول لاس پـه اوبو پرې مينځې او بيا دى

## بِبَاطِنِ اِصْبَعٍ اَوْ اِصْبَعَيْنِ اَوْ ثَلَاثٍ اِنِ احْتَاجَ

ومږى محل يعنى كونـه پـه اوبو سره پـه يوه گوته مګر پـه باطن دگوتې يا پـه دوو گوتو او يا پـه درو گوتو كه حاجت ورته وو يعنى كه يـه كنه فراخه وه لكه بعض كُنَا ښَوَر كسان».

# مَسَائِلُ الْاِسْتِنْجَاءِ

(۱) دکوم سړی چې غټ او خوټي دواړه ځندی بری کړه سوی وی»، چې مجبوب یه بولي او یا یه یواځې خوټي ځندی کښل سوی وی چې خصی یه بولی»، د هغه حکم د ښځې دی»، او نر ښځې حکم د نر لری»، ذکره ابن امیر الحاج ؒ ط۔

(۲) ابن امیر الحاج د مقدمه غزنویه څخه نقل کړي دي چې په دریمه پړوډي اطراف دِ کُنی مسح کړي»

(۳) دا ټوله کیفیت د استنجاء د شاد خواوو، او د مخ د خواد استنجاء کیفیت دارۍ چې غټ دی په چپه لاس وَنیسی او پر لوټو دی سرتیروی. زاهدی وائي چې یادی ذکر په دیوال پوری مونږی. او یادی لوټه په راسته لاس وَنسی وذکر دی په چپه لاس وَنسی او پری موږی دې»

ایت کریمه: یُرِیدُ اللّٰهُ بِکُمُ الْیُسْرَ وَلَا یُرِیدُ بِکُمُ الْعُسْرَ» نو هغه چې په مقدمه غزنویه کښی وائي چې نه دی ذکر او نه دی لوټه په راسته لاس ونسی»، بلکه لوټه دی په مابین کی د پښو کښیږدی او ذکر دی پوری موږی» هغه حرج عظیم»

په شریعت پاک کی دُونه تنګی نسته۔ (۴) مصنف ؒ یَدُهٗ» مفرد وو اویه او په عام کتابو کښی "یَدَیه» راغلی دی یعنی دواړه لاسونه دی پری مینځی» (۵) په مضمرات کی وو وائي چې ګوته چې پر کُنه تیره کړه سی بله پلا به هغه ګوته مینځی حتی چې نجاست د محله څخه ایسته کیږی. (۶) کُنه تر دی او به پر کرار کړای وَرپاشي په شرف دی نه ور پاشی» (۷) او ګوته دی په کُنه نه ننباسی چې دی ته نکاح الید وائي او مکروه کار دی۔ او بل د داسی کار څخه خونی بواسیر پیدا کیږی کما فی شرح الطحاوی ؒ (۸) په استنجاء کی داو بو عدد شرط نه دی علی ما هو الصحیح بلکه تفویض دی و سړی ته دی چې د سړي ګمان سو چې کُونه پاکه سوه.

(۹) کُنه دی په نوکانو نه ګوروئ ولې چې په نوکانو کښی مرداري بندیږي۔





او بل دی څخه مواسیر ځندی پیدا کیږی کذا فی القهستانی»

(۱۰) که په یوه ګته استنجاء وهل کیدله دوهمه او دریمه دی نه ورجوته وی۔

ولې چې مردار ول د پاک شی بی ضرورته ناجائز دی»، ط »  قَالَ الْمُصَنِّفُ ؒ۔

## وَيُصَعِّدُ الرَّجُلُ اِصْبَعَهُ الْوُسْطٰى عَلٰى غَيْرِهَا ثُمَّ يُصَعِّدُ

او پورته کوی دی نر د میانځ ګوته پر نورو ګوتو یعنی لږ څه، او بیا دی بنصر ګوته

## بُنْصَرَهٗ وَلَا يَقْتَصِرُ عَلٰى اِصْبَعٍ وَّاحِدَةٍ

ورپورته کړي۔ او اقتصار دی نه کوی په استنجاء کښی پر یوه ګوته»، امام طحاوی ؒ وائي چې دا طریقه د بعض مشائخو ده، او عام مشائخ پر دی دي چې دواړي ګوتي دی یو ځای پورته کوي»، مصنف ؒ وائي بیا بنصره ګوته ورپورته کړي بنصر هغه ګوته ده چې د خچري ګوتی سره متصله ده، چې ښتانه کچنیان یه لاکو تکړه بولی»

**سَوَال:** د مخه وویل سول چې که په یوه ګوته استنجاء کیدای سوای دوهمه او دریمه دِ نه ورجوته وی، او دلته وائي مصنف ؒ چې پر یوه ګوته دی اقتصار نه کوی۔ **جواب** دا طریقه د بعض مشائخو ده او مخنی خبره مذهب د عامو مشائخو وو» قَالَ الْمُصَنِّفُ ؒ

## وَالْمَرْأَةُ تُصَعِّدُ بُنْصَرَهَا وَاَوْسَطَ اَصَابِعِهَا مَعًا اِبْتِدَاءً

او ښځه دی پورته کوی د استنجاء په وخت بنصر ګوته او د مابین ګوته یو ځای په شروع کی د استنجاء یعنی یواځې یوه ګوته دی نه پورته کوی د بیري د دی چې داد بل شی خوند پروا نخلی۔ امام طحطاوی ؒ ویلی دی چې فرمانی ؒ په شرح کښی د مقدمه لیثیه چې هغه د امام مرغینانی ؒ څخه نقل کړی دی چې ښځه دی استنجاء په اورغوی وهی» وهو الصحیح» وفی الفتاوی هندیه هو المختار وفی السراج وهو قول عامة الفقهاء ؒ» او ابن امیر حاج ؒ وائي چې ښځه دی د ګوتو په سرو استنجاء وهی۔ ولې چې ښځه د دباندی کُس و پاکی ته ضرورت لری او هغه بی سرو د ګوتو نه ګیږی۔

**خَشْيَةَ حُصُوْلِ اللَّذَّةِ** » د بيرې د دې چې دا د بل شي خوند پر وا نخلي» او دا چې مصنفؒ وويل چې خوند پر وا نخلي هغه بوه وهمي خبره ده» ولې چې معلومه خبره ده چې ښځه چې خوند اخلي د دننه کس په داخليدو سره خوند اخلي. **فائده**: ښځه براول کُنه مينځي او که کُس ؟ امام اعظمؒ وائي چې کُنه دې دمخه مينځي ولې چې هغه مهم ده. او بل دا چې سړي چې په کُنه کښې گوتې تيروي غالبًا بولې ښک ښک راوزي. نو کس بيرته مردار ېږي. او ياران وائي چې کُس دې دمخه پريمنځي ولې چې په مخ کښې دی» والفتوىٰ على قول الامام رحمه الله

## وَيُبَالِغُ فِي التَّنْظِيْفِ حَتّٰى يَقْطَعَ الرَّائِحَةَ الْكَرِيْهَةَ

او کوشش دې کوي په پاکولو کښې د استنجاء د ځای حتیٰ چې ورک سي بد بوئي» يعنې هم دې د کوټې څخه او هم د هغې گوتې څخه چې د استنجاء په وهله» ولې چې بد بوئ اثر د نجاست دی نو پاکې سره د بقاء د نجاست نه کيږي» او صحيح مذهب دا دی چې عدد وارونه د پريولو پاره نه دی مقرر سوي» بلکه د سړي رايه ده نو هر وخت چې دده يقين سو يا غالب گمان سُو چې ځای پاک سو نو پاک دي ر

**مسئله**: که سړی وسواسي وو که هغه ته وارونه نه کړي معلوم نو هغه خود خپلو وسو په اثر ډيرې او به او وخت ضائع کړي» او اسراف خو نا روا دئ ! **جواب دا دی** چې علماء حضراتو ده دپاره د مخ د خوا په استنجاء کښې وارونه مقرر کړي دي. او د شا د خوا په استنجاء کې ۵ پنځه واره او بعض فقهاء وائي ۹ واره او بعضي وائي ۱۰ لس واره لکن کشکې مُوَسْوِس په د غه مقرر عدد قناعت کړي وای» **واقعه**: په قندهار کې زمونږ په مسجد جامع کې جاري لښتي بهيدې نو ما پر لښتي اودس تازه کاوه چې يو مُوَسوِس مُلا صاحب راغلی پر لوی استنجاء کښينستئ نو او به يې د استنجاء ځای ته څو واره ور واچولې، او بيا يې لاس بوی کړ ما اودس تازه کړي څو موسوس هغه استنجاء او د لاس بوئيدل کا روو» مونږ پر څلور رکعت لمانځه د ماز ديگر و دريدلو او څلور رکعته مو پوره کړه» چې سلام مو وگرځاوه، مُوَسوِس په هغه استنجاء ناست وو، خير چې ده نو ر اودس د خپلې وسوسې سره برابر تازه کاوه وقت مکروه





او موسوس بيا لمونځ يوازې وکړئ.

**تنبيه**: دا سې کارونه د تقوىٰ د سببه نه دی بلکه دا د اضلال څخه د شيطان دی داخل سو چې گاهې جماعت ځني فوت کړي او گاهې لمونځ پر قضاء کړي او گاهې لمونځ و وقت مکروه ته ورسوي، **نَعُوْذُ بِاللّٰهِ مِنْ وَسْوَسَةِ الشَّيْطٰنِ**» قَالَ الْمُصَنِّفُ.

## وَفِيْ اِرْخَاءِ الْمِقْعَدَةِ اِنْ لَمْ يَكُنْ صَائِمًا

او کوشش دې کوي په سسته نيولو کښې د کُنې. که يې روژه نه وه، په مراقی الفلاح کی وائي» ليزيل ما فی الشرج بقدر الامکان» معنیٰ چې زائل سي هغه نجاست چې په کوټانو کښې په قدر د امکان»

**تفريع**: په ژمي کې دې په استنجاء کې ډير کوشش کوي تر دو بې» ولې چې کُنه په ژمي کې تر دو بې گنجلک وي مگر هغه وخت مبالغه ته ضرورت نسته کې په ژمي استنجاء په گرمو او بو وهله» ولې گرمې او به کُنه سُسته وي. **مسئله**: استنجاء وهل په يخو او بو ثواب او نفع يې ډيره ده تر گرمو او بو. د ثواب وجه يې دا ده چې تکليف يه ډير دئ. او د نفع وجه يې دا ده چې خوني مواسير د بينه وړي کا فی الفتاوىٰ» ط» مصنفؒ په مراقی کښې وائي چې روژه تي دې کُنه سسته نه نسي، تا چې روژه يې فاسده نه سي» لکن په خلاصه کې وائي» چې روژه ماتوونکې خبره دا ده چې او به يې و داخل د کُنې ته ولاړې سي. او يه استنجاء کښې او به داخل ته نه ځي که څه هم کُنه سسته و نيسي»

**مسئله**: په بعض کتابو کې وائي چې روژه دي د استنجاء په وخت کښې ډيره په زوره ساه نه کيږي» ولې چې او به يې په کُنه نه ننوزي، لکن علامه نوحؒ وائي چې دا خو ډير حرج دی او په ساه کښلو سره او به د کُنې و داخل ته نه ځي **مسئله**: په مراقی کې وائي چې روژه تي که لنده گوته په کُنه چې کړه روژه يه فاسده سوه. **مسئله**: که د چا کُلمه د کُنې د استنجاء په وخت کښې د با ندې راووتله او دده روژه وه او ده راوتلې کُلمه د کُنې پر يوله نو تر هغو پورې د استنجاء څخه ونه ولاړېږي څو کُنه په يو ټکره سره وچه نه کې. او که يه ترو چيد و د ځه

ولاړسو اوهغه ګنه یه یعنی هغه دګنی کلمه پورته ولاړول ووږه یه مآسول ط ،

**مسئله**: که چیری یوسړی داسی مریض وُوچی استنجاء یه په خپله نرسوای وهلای نوکی ماینه دړلوده هغه دی استنجاء ورووهي اوبیله ماینی بل چا ترکه نروی اوکه بنځه وی کی خدم او ړیاخوړ یابله محرمه بنځه وی. ددة استنجاء ور وهل رواندی بلکه استنجاء دده څخه ساقطه ده، کذا فی الخانیة ، قال المصنف.

## فَاِذَا فَرَغَ مِنَ الْاِسْتِنْجَاءِ غَسَلَ يَدَهٗ ثَانِيًا وَنَشَفَ مَقْعَدَتَهٗ

پس څه وخت چې فارغ سی د استنجاء څخه نو بیرې دِمنځی لاس دویم وار. او وچه دی کی کنه یا په پاك ټکرې اوکه ټکرې

## قَبْلَ الْقِيَامِ اِنْ كَانَ صَائِمًا

وونوپوخوواړه دی پرکنه لاس تیرکړي دمخه تر ولاړېدو د استنجاء څخه. دا هلته که دسړي روژه وه، دا ددی د پساره که کنه وچه نه کړی. او چسف ولاړسی کنه بی اوبه پورته بوزی. دا تول د مراعات د روژی. او داسی نه ده که چسف ولاړسی کنه وچه نه کړي نو بیه خواه مخواه روژه مات سوه.

# فَصْلٌ

**پوه سه**: چې مصنفؒ به دی فصل کی هغه شیان بیانوی چی استنجاء په هغو سره وهل او هغه شیان چې استنجاء په مکروه ده، او هغه کارونه چې فعل یه مکروه وی، قال المصنفؒ

## لَا يَجُوْزُ كَشْفُ الْعَوْرَةِ لِلْاِسْتِنْجَاءِ

نه دی روا الخول دعورة دپاره داستنجاء، په مراقی کښی مصنفؒ ویلی دی چې لخول دعورت حرام دی او کاشف دعورة فاسق دی نو د پاره د اقامت دسنت چې استنجاء ده، حرام کار دی نه کوی، بلکه ترکالولاندی دی یوه لوټه دوی استعمال کړی. او کنه دی په پاکه کړی. او که دا هم ونه کړي لونځ یه صحیح دی.





او محقق طحطاویؒ د علامه څخه داسی نقل کړي دی چې استنجاء وهونکی دی عورت نه لڅوی په نیږدهیڅ چا د پاره د استنجاء او کی لڅ کی فاسق دی خواه نجس تراو تو ترځای تیروی اوکه نه، اوکه تر قدر د درهم بالاوی اوکه نه، انتهی ،

# ضروری ښوونه

د ښځاپانو قمیصان چونکه هم لنډ دی او هم تنګ دي ، نو د لوی استنجاء په وخت کښی د تنګی په لڅوی او اطراف د کونو خو هم عورت دی ، **زمونږ** په پښتونو کی په ځوانی وخت کی به قمیصان دنروا و ښځو ډیر بردار وه ، نو چی پر لویه استنجاء به سړی کښی ښتی او لمن دقمیصه پرځان راوګرځوله نو نه ئی کنه معلومیده او نه اطراف دګنی په اوسنی زمانه کی که هلکان دی اوکه ځوانان دی بلکه که سپین ږیری ، قمیصان په یوه تاه کښی کوی ، نو ګاهی چی دوی په مسجد کښی استنجاء وهی او غسل خانه هم نه وی بلکه پرنلکو ، نو که چیري د استنجاء نلکو یوې خوا او بلی خوا ته دیوال درلودی نو استنجاء وهل په کښی پرواه نه لري ، ولی چی دکونی غار خولې په هغه یک بره لمن پټه سی ، او کونا تي ئی په دیوالو پټ سی . او که د استنجاء خلی دیوالونه نه درلوده ، نو که یک بره والاهر څو کوشش وکړي نو تو له عورت به پټ نکړي ، خواه مخواه به ئی کوناتي ښکاره وي نو دا استنجاء حرامه ده او مرتکب یه فاسق دی ، درویش باګناه محمد عبیدالله ایوبی کندهاری ، قال المصنفؒ ،

## وَاِنْ تَجَاوَزَتِ النَّجَاسَةُ مَخْرَجَهَا وَزَادَ الْمُتَجَاوِزُ عَلٰى قَدْرِ الدِّرْهَمِ

که چیری تیرسوی وو نجاست که غلوی او که بولی ترځای د راوتو چی کنه ده او د چوبکی سوري دی ، او بالا وو هغه تیرسوی نجاست تر قدر د درهم یعنی د وزن په اعتبار په غولو کښی او د مساحت په اعتبار په بولو کښی ، **پوه سه** : چی د حضرت امام اعظمؒ او امام ابی یوسفؒ په نیز کنه حکم د داخل لري ، حتیٰ په کونه کښی نجاست ته اعتبار نسته اصلاً نو مراد د زیات والی څخه د نجاست پر قدر د درهم هغه ما سوا د نجاست د کنی دخولی دی ، نو که چیري یوازي

نجاست دباندی ترکونی په قدر د درهم وواوکونی د نجاست سره ترقدر د درهم بالا وونوما نو د لمانځه نوی» اونه به پریوله واجب دی». ولی چی دمخرج نجاست ساقط دی ځکه کی څوك نه پریمنځی مکروه نه دی». اود غه رنګه د شیخینو په مذهب کی دغه دګنی نجاست د بل ځای د نجاست سره نه جوتیږی». مثلاً پر یو بل ځای د سړي مرداری په قدر د درهم چی د ګنی مرداری دی ورسره یوځای کړی وای ترقدر د درهم بالا کیده» مانع د لمانځه نه دی او پر مذهب د شیخینو فتوی د ډیرو کتابو ده». او طحطاوی وائی هو المعتمد»، اود امام محمدؒ مذهب دا دی چی کُنه لګه دباندی ځای ده». نو دی مرداری د نوری مرداری سره یوځای کیږی حتیٰ که مجموع د دغه نجاست ترقدر د درهم بالاوو» مانع د لمانځه دی او پر یوله یه واجب دی».

قــالــــ المصنفؒ

# لَاتَصِحُّ مَعَهُ الصَّلٰوةُ إِذَا وَجَدَ مَا يُزِيلُهُ

نو نه دی صحیح سره د هغه زائد نجاسته لمونځ که د سړي سره وو هغه څه چی دا نجاست په زائل کړي لکه او به یا په بهید ونکی شئ. **مسئله**: صحت د لمانځه مشروط په دوه شرطه دی اول زائلوونکی د هغه نجاست چی تر قدر د درهم بالاوی. او دوهم چی سړی ته ممکنه وی ازاله د هغه نجاست بیله لغ والي د عورت په نیزد هیڅ چا»، په اول صورت کی چی مزیل د نجاست نه وی لمونځ دده صحیح دی سره د نجاست دی. او د هغه لمانځه اګرچه دده پر ذمه نسته چی او به پیدا سی»، ولی چی د لمانځه په وخت کی د قدرت پر ازاله د نجس نه در لود ی»، او په دوهم صورت کښی خو کشف العورة حرام دی نو ده لره دا عذر دی په عدم ازاله کښی د نجاست»، زهر»

قــــالَ المصنفؒ.

# وَيَحْتَالُ لِإِزَالَتِهِ مِنْ غَيْرِ كَشْفِ الْعَوْرَةِ عِنْدَمَنْ يَرَاهُ

او دا سړی دی یو حیله وکړی د پاره د ازاله د هغه نجس بیله دی چی لغ کړي عورت په نیزد هغه چاچی ده ته ګوری.

اللهم اغفر لمؤلفه ولکاتبه ولوالدیهما آمین





**پوه سه**: چی که چیری لیدونکی هغه ښځه وه چی ده ته یه جماع روا وه یا مینځه وه او یا ماینه یا مینځه وه ده. نو دي بیا استنجاء نه پریږدی که څه هم عورت یه وهغوته لغ سی» ط هز

# وَيُكْرَهُ الْاِسْتِنْجَاءُ بِعَظْمٍ وَّطَعَامٍ لِّلْاٰدَمِيِّ اَوْبَهِيْمَةٍ

او مکروه ده استنجاء په هډوکی، او د خوراك په شئ دانسان لکه ډوډی، او یا د چارپای لکه تیښتی یا واښه

# وَاٰجُرٍّ وَخَزَفٍ وَفَحْمٍ وَزُجَاجٍ وَجَصٍّ وَشَيْئٍ مُحْتَرَمٍ

او دغه رنګه مکروه ده په پخه خښته او په کودری او په سکرو یا کوئله او په ښیښه او په ګچو یا هاکو او په هغه شی

# كَخِرْقَةِ دِيْبَاجٍ وَقُطْنٍ وَبِالْيَدِ الْيُمْنٰى اِلَّامِنْ عُذْرٍ

چی محترم وی لکه و رښمینه ټکر او په پنبه وو، او په راسته لاس مګر نه دعذر د سببه چی چپه لاس یه خوږ وو» **پوه سه**: چی په هډوکی استنجاء وهل او دغه رنګه په خوشیو او څیزونو استنجاء وهل مکروه ده یو وجه یه شرعی ده هغه دا چی په حدیث نبوی کښی داسی راغلی دی چی بخاري او نورو کتابو یه هم روایت کړي » لَا تَسْتَنْجُوْا بِالرَّوْثِ وَلَا بِالْعِظَامِ فَاِنَّهُمَا زَادُ اِخْوَانِكُمْ مِنَ الْجِنِّ» تاسی استنجاء مه وهی په خوشیو او په هډوکو. ولی چی دا د واړه توښه او نفقه ستا سی د وروڼو د پیریانو ده یعنی هغه وخت چی دوی پیدا کړي خوشوی یا هډوکی. په هغه هډوکی داسی غوښه پر پیدا سی لکه چاچی هیڅ نه وی ځندی خوړلی نو پیریان یه خوری.

او خوشوی ارپشی وګرچی او یا پر وړه نو دوی دواب (چارپایان) یه وخوری» دا معجزه ده د آنحضرت صَلَّی اللهُ عَلَیهِ وَسَلَّم، مر» او بله وجه یه عقلی ده هغه دا چی په هډوکی غالباً کُنه خوږیږی یا په زخمی کیږی. او خوشوی خو مردار دی. نو په هغه به بله مرداری څرنګه پاکه سی»
**تفریع**: ددی حدیث نبوی څخه داسی معلومه سوله چی پیریان خوراك لري او هغه څوك چی ددوی ثوند په بوی سره دی هغه خبره په مقابل کی د حدیث د باور وړنه ده»

**مسئله**، په دې کښې اختلاف شته چې پيريان مکلف په امر او نهي سره دي چې د
قرآن مبارك سورة جن د دې شاهد دی. او په احاديث مباركه وو كښې هم د دوی مکلف والی
لوی اثبات سته" لکن اختلاف په دې کښې دی چې دوی لره ثواب په آخرت کښې سته
او که نه! حضرت الامام الاعظمؒ په يوه روايت کښې په دې باب کې توقف کړی دی
او په بل روايت کښې داسې وائي چې ثواب د پيريانو خلاصون دی د عذاب څخه دی،
او امام مالكؒ او ابن ابي ليلیٰؒ وائي چې دوی لره لکه عذاب چې سته ثواب هم سته،
تفصيل د دې مسئلې په لويو کتابو کښې فقهي شريفي او غټو کتابو کې د علم تفسير مذکور
دی" او په طعام د انسان يا د چارپای چې استنجاء مکروه ده اول خو په طعام کې د انسان اما
دی. او بل په دواړو کښې اسراف دی ولې د غه په غولو لړلی طعام نه انسان خوري او نه چار
پای" او په بخرخښته چې استنجاء مکروه ده سبب يې دا دی چې کُنه پوره نه په
پاکيږي او کې پاکوي کُنه د سرې خوږوي، او د خزف ترجمه خولك په کوډي کوي کوي نو
هغه خو کُنه خوږوي" او مراقي يې ترجمه په کشنکو شکو سره کړې. نو هغو په استنجاء سره
خو کُنه نه پاکيږي هنوز لې لاس هم مردار سي" او په سکرو چې استنجاء مکروه ده" د دې
سببه چې کُنه يې ور توره وي" او ښيښه يا گچ يا اهاك کُنه ته تاوان رسوي او بل ښيني
سبوي ده کُنه نه په پاکيږي" او د قيمتي ټکره په استنجاء کې اتلاف د مال محترم دی.

**مسئله**: په مذکوره شيانو سره استنجاء سره د دې چې مکروه ده لکن که چا په مذکوره
شيانو سره استنجاء وکړه هله روا دی" قال العينيؒ في شرح الهداية" قال المصنفؒ.

## وَيَدْخُلُ الْخَلَاءَ بِرِجْلِهِ الْيُسْرٰى وَيَسْتَعِيْذُ بِاللهِ مِنَ الشَّيْطٰنِ الرَّجِيْمِ قَبْلَ دُخُوْلِهِ

او داخلوی دی په بيت الخلاء يعنی داخل ... مات خونه" چې په افغانستان کې "مکان"
او په اردو يې تټي بولي، او عصري خلك يې د کموډ خونه بولي" چپه پښه" او طلب د
پناه د وکړي د خدائ څخه په باره کې د شيطان تړه تيلی ده د باره څخه د خدای پاك" د غه





بيت الخلاء ته" **پوه سه**: چې بعض محشيانو د لته داسې وئيلي دي چې
تر ننوتلو و بيت الخلاء ته د مخه تر دخول" اَعُوْذُ بِاللهِ" وويل هلته غواړي چې هغه ځای جوړ سوی دا ودس مات د پاره
وی" او په صحراء کې چې چکروهی نو اَعُوْذُ بِاللهِ دې هلته وائي چې دې کالی را پورته کوي"
او عورت يې نوی ښکاره سوی انتهی"
عامی وائي چې د دغه محشي و دغه قيد ته ضرورت نسته ولې چې دخول په" مکان، يا تټي"
کښې مستعمليږي، قال في المراقي" وائي چې مراد د خلاء څخه د غولو خونه ده" ص ٤٢

**مسئله**: د مخه تر اَعُوْذُ بِاللهِ دې د غه توری هم ووائي بِسْمِ اللهِ" چې په حديث صحيح
نبويؐ کښې داسې راغلی دی" سَتْرُ مَا بَيْنَ اَعْيُنِ الْجِنِّ وَعَوْرَاتِ بَنِي اٰدَمَ اِذَا دَخَلَ اَحَدُكُمُ
الْخَلَاءَ اَنْ يَّقُوْلَ بِاسْمِ اللهِ" ترجمه: پرده په ما بين کې د سترګو د پيريانو او د عورتو د بني آدمو
چې ننوزي يو ستاسي څخه بيت الخلاء ته دا دی چې وه وائي" بِسْمِ اللهِ"

**سوال**، اَعُوْذُ بِاللهِ ويل په د غه وخت کې د دخول د بيت الخلاء ولې مستحب ده"

**جواب**، عيني په شرح کې د بخاري شريف وائي چې چونکه انسان چې پر چکر کښيني نو ذکر
د خدائ نسي کولای نو شيطانان و د غه ځای ته انتظار کوي چې سرې و بيره وي يا غلط
فکرونه يې په زړه کښې وروا چوي" نو څه وخت چې ده د مخه تر دخول د بيت الخلاء" اَعُوْذُ بِاللهِ
وويل د شيطانانو څخه خلاص سو" او حديث نبويؐ په روايت د ترمذي داسې راغلی دی" اِنَّ
الْحُشُوْشَ مُحْتَضَرَةٌ فَاِذَا اَتٰى فَلْيَقُلْ اَعُوْذُ بِاللهِ مِنَ الْخُبُثِ وَالْخَبَائِثِ" ترجمه په تحقيق
سره د غولو خونې ځای د حاضريدو د شيطانانو دی نو چې څوك هلته ورځي داسې دی و وائي چې
پناه په خدائ غواړم د نرانو د پيريانو او د ښځو د وې" قال المصنفؒ"

## وَيَجْلِسُ مُعْتَمِدًا عَلٰى يَسَارِهِ وَلَا يَتَكَلَّمُ اِلَّا لِضَرُوْرَةٍ

او کښيني دې تکيه کوونکی پر چپه پښه او خبرې دې نه کوي مګر د ضرورت د سبب څخه"
مراقي وائي چې پر چپه پښه تکيه کول د آسانی د سبب د وتو د چکر" **مسئله** د چکر
په وخت کښې دې پښې آزادی سره ايږدي" م ط" او د چکرو هلو په وخت کې بې ضرورته

خبري کول سبب د ناراضۍ د خدای دی» مر قَالَ المُصنف،

## وَيُكرَهُ تَحرِيمًا اِستِقبَالُ القِبلَةِ وَاِستِدبَارُهَا وَلَوفِي البُنيَانِ

او مکروه دی تحریمًا مخامخ وجهت ته د قبلې او شا گرځول وهغه ته یعني طرف د قبلې ته یعني په وخت کی د بولو او د غولو د پاره د تعظیم د جهت د قبلې، که څه او د س مات په یو خونه کښی وی. په صحیح حدیث کښی راغلی دی چې آنحضرت صلی الله علیه وسلم وائی: إذا أتیتم الغائط فلا تستقبلوا القبلة ولا تستدبروها، چې تاسی ورسی چرو هلو ته نو مخ مه گرځوی وقبلې ته او مه شا ور گرځوئ» د دې حدیث د حکم مطلق دی صحرا او خونې دواړو ته شامل دی. مصنف وویله: وَلَو فِي البُنيَانِ» غرض په رد پر هغه مذهب چې وائي چې دا کراهت په صحرا کښی دی په اباتۍ کی خو د خونې دیوالونه پرده ده» لکن دا مذهب لکه چې د اطلاق څخه د حدیث مخالف دی نو دغه رنگه عقل یه هم نه قبلوی» ولی چې کراهت د استقبال د قبله او استدبار د هغی خو د جهته څخه د تعظیم د جهته د قبلې دی ځکه چې خطاب نو عام نو په خونه کښی:

چې دیوالونه حائل او پرده دی په صحرا کښی خو هم لوی لوی غرونه د لیری وطنو او تلال تر ما بین موجود دی. نو هغه ولی پرده او حائل نه گڼل کیږی» نو چونکه تعظیم د جهت منظور دی نو د جهت په خونه او صحرا کښی څه فرق لري» **مسئله**: د نور او د اسه په وخت کی استقبال د قبلې روا دی او که نه ! امام تمرتاشی وائی مکروه نه دی» لکن امام طحطاوی وائی چې مقصود د تمرتاشی نفی د کراهت تحریمی دی» ورنه خلاف اولی د لکه سری چې پښې د قبلې وخواته وغځوی: کذا قال الحلبی» **فائده**: د حضرت امامنا الاعظم څخه دوه روایت راغلی دی اول چې ظاهر المذهب دی د هغه دی چې په کتاب کی ذکر سو یعنی چې استقبال او استدبار دواړه مکروه دی. کذا في فتح القدیر او بل روایت دا دی چې مطلقًا مباح او روا دی» او بل روایت دا دی چې بوا چې استقبال مکروه

**مسئله**: که سری مجبور سو چې یا به مخامخ قبلې ته کښینی یا به شا ورگرځوی نو که خوابه بنه ده ! امام قسطلانی په شرح د بخاری او ملا علی قاری په شرح کښی د مشکوة وائی چې شادی وقبلې ته کړی. ولې استقبال ډیر بد دی. نو په استدبار کی نسبةً تعظیم د قبلې موجود دی

**مسئله**: په حال د جماع او د ما بینی سر استقبال د قبلې روا دی او که څه رنگه

**جواب**: ابن امیر الحاج د امام نووی څخه په شرح کښی د مسلم د اسی نقل کړی دی چې هغه استقبال د قبلې وجهت ته په صحراء او بنیان کښی مکروه نه دی. نووی په اخیر کښی بیانه کړی ده،» وهذا مذهبنا ومذهب ابی حنیفة ومذهب احمد وداود قال المصنف

## وَيُكرَهُ اِستِقبَالُ عَينِ الشَّمسِ وَالقَمَرِ وَمَهَبِّ الرِّيحِ

او مکروه دی مخامخ کښیناستل په وخت کی د چکر وهلو و تیکی ته د لمر او د سپوږمۍ او و هغه طرفته چې د هغی خوا باد چلیږی»

**لوسه**: چې مصنف استقبال ذکر کړی اشاره یې وکړه چې شا گرځول و عین الشمس مکروه نه دی» او عین الشمس والقمر یې وویه اشاره یې وکړه ورته چې که چیری یو محفوظ ځای وو چې د لمر او سپوږمۍ تیکی نه لیدل کیږي» بیا استقبال مکروه نه دی» بخلاف القبلة فان المکروه استقبال جهتها» او مهب الریح ته استقبال مکروه دی سبب یه دا دی چې باد نجاست بیرته پرده ور پاشی» **مسئله**: که غول سری کول او پری بیریدی چې لمن به ی په غولو کک نو سی یا نو استدبار هم مکروه دی» ط **فائده**: طبرانی روایت کړی دی چې رسول کریم صلی الله علیه وسلم فرمائیلی دی چې که څوک په هیڅ قبله ته مخامخ یا گرځونکی پر چکر کښینیستی او بیا ور، بیا د نو ځان په بیرته د قبلې څخه چپ کړی د جهته د تعظیم د قبلې دا سری به چکر نوی ولاړ سوی چې خدای به یه گناه ور و بخښی» لکن نهر الفائق والا یه انحراف واجب بولی» او نهایه والا وائی کی انحراف ونه کړی پروا نه لري. ولی سهوه معفوده» او زیلعی شارح الکنز وائی چې لږ انحراف هم کافی دی. **فائده**: ښځی ته مکروه ده چې خپل کشنی پر پښو یا پر کموځ مخامخ وقبلې ته پر بولو یا غولو یا ندی کښینوی او گناه یه ده دی په غاړه ده» او نه دی پلار او نه دی مور په اولاد حرام کالی اغوندی او نه دی حرام

خوارہ پہ خوری » ط « او سبب دکراهت داستقبال الشمس وَالقمردادی چی دادوه نورانی
اجسام دلویوانیا تو او عَلاماتو څخه دَقدرت دخدائ دی ـ م » قال المصنفؒ.

## وَيُكرَهُ اَنْ يَّبُوْلَ اَوْ يَتَغَوَّطَ فِي الْمَآءِ وَالظِّلِّ وَالْجُحْرِ

اومکروه ده چی سړی بولی کوی یا غل کوی په اوبو کښی » یعنی که څه هم جاری اوبه وی،

## وَالطَّرِيْقِ وَتَحْتَ شَجَرَةٍ مُّثْمِرَةٍ

او په سایه کښی د دیوال یا درختی چی خلک ضرورت ورته لري ، او په غارکی یعنی چی موږک یا لړم یا بله خزنده پرا ووزي » او په لار کښی چیرته هل مکروه دی ، اود غه رنګه مکروه دی لاندی ترمیوه داري درختی.

**پوه سه** : چی مراد د سایه څخه هغه سایه ده چی خلک ورته کښینی » قال رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّم: څان ساتی دد دوه کاروڅخه چی سبب د لعنت دخلکو ګرځی خلکو ووَیل چی هغه کم دوه کار دي » آنحضرتؐ ورته ووَیل چی : هغه او دس ماتول او چکړه دی په لارکی دخلکو او په سایه کی دخلکو » رواه البخاری »

**فَوَائِد** دغه رنګه مکروه دی چکړه هل نږدی وڅاته . اویا ولی ته » اویا وحوض ته او عیدګاه د لمانځه په ځای کی . اود قافله په مابین کښی ، او په خیمه کی ، او یا غوبو یا پسو په مابین کی » کذا فی درالمختار وغیره » ولی چی دا ټوله سبب د لعنت دی ، اود غه رنګه مکروه دی په هغه ځای کی چی دجنازی لمونځونه پکښی اداکیږی » او مکروه دی چکړه هل په مابین کښی د قبرو **پوه سه** : چی لکه په سایه کښی چکړه هل مکروه دی دغه رنګه مکروه دی په هغه ځای کښی چی خلک په ځای کښی په ژمی ولمر ته کښینی » لکن دا ټوله هلته چی دغه ځکه مباح وی . او که چیری دغه ځکه مملوک دچاوه نو هلته بیله اجازی دمالک حرام دی » ط » کذا فی شرح المشکوٰة » **فَائِدَه** : که ناسی مباح وه چی د چا ضرورت ورته نه وو هلته چکړه هل روادی . ابوداوٗد او نسائی په روایت کوی : چی رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّم ووَیله : لَا يَبُوْلَنَّ اَحَدُكُمْ فِي جُحْرٍ »





## وَيُكرَهُ الْبَوْلُ قَائِمًا اِلَّا مِنْ عُذْرٍ

اومکروه دي بولی په ولاړی مګر نه د عذر د سببه » سبب دادی چی په ولاړی بولو کولو سره بی غالبًا کالی یا بدن مردار سی » په شرح کښی د مشکوٰة وائی چی نهی تنزیهی دي او بعض وائی چه تحریمی دی » او په بنا یه کښی وائی چی امام طحاویؒ وائی » لَابَاْسَ بِالْبَوْلِ قَائِمًا **عُذرونه** یا د کښینستو ځای نجس وی په صحیح حدیث شریف کی راغلی دی چی آنحضرتؐ اَتٰى سُبَاطَةَ قَوْمٍ فَبَالَ قَائِمًا ، د دی سبب بعض علماء نجاست د مکان بیانوی . او بعض علماء وائی چی د رسول کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّم ملا درد وو ، او بعض علماء وائی چی په زنګانه د آنحضرتؐ ټپ وو چی د هغه په سبب نه سو کښینستای **تَنْبِيْه** : د عربو عقیده ده چی د ملا د درد د پاره واحد علاج بول کول دی په ولاړي » قاله الشافعیؒ » او امام ابوحامد محمد الغزالیؒ په احیاء العلوم کی وائی چی زین العربؒ وائی چی خلو ټینو طبیبانو پر دی اتفاق کړی دی چی بولې په حمام کښی په ولاړی : د وا ده د اوبیا وو مرضو » **پوه سه** چی مصنفؒ په مراقی الفلاح کی بعض مکروهات ذکر کړی دي . ۱ بیت الخلاء ته دی په هغه کالو کی نه ورځی چی په هغو کښی لمونځ کوی . او که هغه د لمانځه کالی وه نو دیر احتیاط دی کوی چی څنډی نجس نه سی » لکن په باب الانجاس کی د نهایه داسی وائی چی ښه کار نه دی چی سړی به د بیت الخلاء د پاره جلا کالی استعمالوی » درویش وائی چی د مراقی په حکم کښی لوی حرج دی » او د حضرت الامام زین العابدین څخه روایت دی چی ده دیر تکلیف کاوه چی د بیت الخلاء د پاره بی جلا کالی اغوستل » وروسته یه دا کار پریښودو او وی ویل چی دا کار نه دی کړي هغه چا چی تر ما خیر وو یعنی رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّم:

۲ او دغه رنګه مکروه دی داخلیده بیت الخلاء ته چی د ده سره یو کاغذ وغیره وی چی په هغه کښی نوشته وی نوم د خدائ او یا بعض لیاتونه د قرآن » امام طحطاویؒ وائی چی په حدیث شریف کښی چی روایت یه ابوداوٗد او ترمذیؒ کړی دی د حضرت انسؓ څخه چی رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّم چی بیت الخلاء ته تلی نو ګوتمی بی وکښته »

یعنی د دی سببه چی د هغی گټی نقش محمد رسول الله وو. قال الطیبیؒ په دی حدیث کی دلیل دی په واجب والی د گوتمه کیدو د استنجاء وهونکی. نوم د خدایٔ او نوم د رسولؐ او قرآن د ځان څخه، او ابن حجرؒ وائی چی د دی حدیث څخه دا استفاده کیږی چی مندوب ده هغه جاته چی اراده د اودس مات لری چی د ځان څخه به گوتمه کوی هر هغه شی چی محترم وی که نوم د خدایٔ وی او که نوم د رسولؐ او یا د ملکی کی چیری مخالفت وکړی مکروه ده. لِتَرْكِ التَّعْظِيمِ وَهُوَ الْمُوَافِقُ لِمَذْهَبِنَا، کما فی شرح المشکوة.

ونقل الطحطاویؒ عن بعض الحذاقؒ: چی کراهت په هغه ځای کی دی چی دغه محترم شیٔ مستور او پټ نه وی نو کی په جیب کښی وو بیا پروا نشته، ونقل عن التهتاریه عن المنیة: چی افضل دا ده چی بیت الخلاء ته دی ته ورځی چی په لوستونړی کښی قرآن شریف وی، مگر نه که مجبوره وو او ده زیاته کړی ده چی امید سته چی بیله مجبوری به هم گناه گار نه وی، یعنی په سبب د دی چی قرآن شریف په لستونړی کښی پټ دی، او امام حمویؒ هم دغه خبره منلی وه، ط ص۲۳ **تبصره**: د دغه فوق الذکر علماوو د اقوالو څخه حال د هغو بعضو تعویذو معلوم سو چی په دړو یا پنځو پوښو کی پټ کړی بیا یه په جیب کی کوی، او یا یه ترموټه او یا یه په غاړه کوی، چی مکروه دی یا نه

## وَيَخْرُجُ مِنَ الْخَلَاءِ بِرِجْلِهِ الْيُمْنٰى ثُمَّ يَقُوْلُ اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ

او را ووځی باسی د مکانه څخه راسته پښه او ووایی چی الحمد لله چی ما څخه لیری کړی

## الَّذِيْ اَذْهَبَ عَنِّيَ الْاَذٰى وَعَافَانِيْ

هغه فضله شیان یعنی غول او بولی. او ماته یی عافیت راکړی د هغو څخه. ځکه چی غذا او به که ټوله فضله یه بنده پاته سی. نو نا جوړی خوبه خواه مخواه پیدا سی. او بعض وخت سبب د هلاک به وگرځی. او که ټوله بیله هضمه کولو خارج کیږی، نو د مرینی سبب خو به سی مگر بعض وخت به علت د هلاک او مرگ سی نو ځکه حمد ویل مستحب دی.



# فَصْلٌ فِيْ اَحْكَامِ الْوُضُوْءِ

فصل دی په بیان د احکامو د اودسه کی. **پوه سه**: چی اودس به تر غسل د مخه کړی. له دی سببه چی په قرآن کښی اودس تر غسل د مخه دی. او بل دا چی اودس د غسل جزء دی، او بل دا چی احتیاج وا اودسه ته ډیر دی تر غسل، م، ط.

**فائده**: علامه نوویؒ وائی چی اودس کول د دی امت مرحومه خاصه نه ده بلکه په ټولو امتو کی اودس کول وو، لکن په حدیث شریف کښی چی راغلی دی چی زما امت به په ورځ د قیامت غرا او محجلین به وی، دا د اودسه له سببه، یعنی سپین مخان به وی، او سپین لاسونه او پښی به وی هغه خاصه د امت مرحومه ده، ط. **فائده**: اودس په مکه شریفه کښی فرض سوی. او آیة الوضوء په مدینه منوره کښی نازل سوی دی، ط

## اَرْكَانُ الْوُضُوْءِ اَرْبَعَةٌ وَهِيَ فَرَائِضُهٗ

رکنونه د اودسه څلور دی. او هغه یه فرض کارونه دی، یعنی رکن او فرض په یوه معنا دی، په عرف کی د فقه شریفی، دروښ با گناه وائی چی امام طحطاویؒ په شرح کښی د مراقی الفلاح یو ډیر په زړه پوری تحقیق راوړی هغه دا دی: فرض دوه قسمه دی. ۱ **فرض قطعی**: چه نه کوونکی یه مستحق د اور د دوزخ دی، او منکر یه کافر دی. لکه لمونځ، روژه، اودس وغیره. دلیل قطعی هغه دی چی ثبوت یه هم په یقینی توگه وی یعنی په شریعت کی لکه آیات قرآنیه او متواتر حدیثونه. او دلالت به پر هغه حکم هم په یقینی ډول وی. یعنی ډیر احتمالونه نه وی په کښی.
۲ **فرض ظنی**: چی تارک یه گناه گار او مستحق د نار دی لکن منکر یه کافر نه دی. هغه هغه فرض دی چی یا په آیاتو قرآنیه سره ثابت وی. چی هغه یقینی الثبوت دی. لکن احتمال د ډیرو معناوو لری. او یا خو یه دلالت یقینی وی یعنی ډ احتمالونه نه وی.

پکښې لکن په ثبوت کی د شارع څخه شبهه وی لکه چی ورته په اصطلاح کی د احادیثو اخبار الاحاد وائی. یعنی چی نقل کوونکی یو یا دوه یا دری کسه وی مطلب د تواتر ومرتبې ته نه وی رسیدلی. دمثال په توګه نفس پریولو دمخ او د لاسو او پښو او مسح د سر، فرض قطعی دی چی په قرآن شریف کی په صریح عبارتونو سره ثابت دی» او دمخ پریولو ترکمه ځایه پښې ترکمه ځایه مسح د سر څونه قدر فرض ظنی دی چی په احادیثو ثابت دی» وَعَلیٰ هٰذا القیاس نفس زکوٰة فرض قطعی دی او مقدار د نصاب یه فرض ظنی دی

**پوه سه**: چی بعض احادیث مُبارکه ظنی الثبوت وی. ولی چی تواتر ته نه وی رسیدلی مګر صحیح وی او دلالت یه پرحکم باندی یقینی وی. یعنی صراحت پرحکم دلالت کوی دبر احتمالات نه وی پکښې په دغه شان احادیثو سره وجوب او کراهت تحریمی ثابتیږی چی منکر یه کافر نه دی. مګر پریښوونکی دواجب او فاعل دمکروه تحریمی مستحق دعذاب دی» او یو قسم احادیث داسی دی چی ثبوت یه دآنحضرت ﷺ څخه ظنی وی، او دلالت پرحکم مخصوص یه هم ظنی وی. یعنی په یوخاص حکم کښې صریح نه وی بلکه احتمال د ډیرو معناوو لری» په دی قسم حدیثو سره سنتیت، استحباب، کراهت تنزیهی ثابتیږی، چی دددی په پریښولو کی استحقاق دعذاب النار خو نشته» لکن په ورځ د قیامت ملامتیا پرویل کیږی، او منکر یه کافر نه دی:

**فائده**: فرض پر دوه قسمه دی یو فرض عین بولي او بل فرض کفایي دی. **فرض عین** هغه بولي چی پر هر فرد او د بعض کسانو په اداء کولو سره د نورو غاړی نه خلاصیږی» لکه او دس، او غسل، او لمونځونه او روژه وغیره» **فرض کفائی**: هغه فرضونه وائی چی پر مجموع انسانانو او مسلمانانو خو فرض وی لکن په اداء کولو د بعض کسانو د نورو غاړی خلاصیږی او کی هیڅ یو دا ادا نه کړی د ټولو غاړی بندی دی او ګناه کار دی» لکه حفظ دقرآن کریم او ردسلام، دجنازی لمونځ امر بالمعروف او نهی عن المنکر وغیرها، مما ذکر فی کتب الفقه مفصلاً

اَللّٰهم اغفر لمولفه ولمترجمه ولکاتبه وقد کتبه بیده احقر فضل الحق حقانی غفرله





قال المصنف **اَلاَوَّلُ غسلُ الوَجهِ** اول فرض دا او داسه پریوله دمخ دی لقوله تعالیٰ: فَاغسِلُوا وُجُوهَکُم» **مسئله**: غسل یعنی پریوله هغه ته وائی چی اوبه دا اندامه څخه بهیږی او کم از کم دوه یا دری څاڅکی کښته توی شی. او بیول داوبو بیله تقاطره کافی نه دی «مط» قال المصنف»

## وَحَدُّهُ طُولاً مِن مَبدَءِ سَطحِ الجَبهَةِ اِلیٰ اَسفَلِ الذَّقَنِ

او اندازه دمخ په اوږدواله د ابتداء څخه د سطحی د تندی دی بیا تر لاندی د زنی پوری

**پوه سه**: چی دا تعریف دمخ د طول، نه دی تر هغه تعریف چی په هدایه کی کړی دی، چی طول دمخ دپایه څخه دوویښتانو د سر دی تر اسفل الذقن پوری» ولی چی تندی په عرف کښې هرسړی پیژنی» او چی په وېښتانو د سر سره یه تعریف وکړی - نو أَصلَع چی د زلي ویښتان یه توی سوی وی لکه اکثره سپین ږیری. باید د سرو مابین څخه ده مخ وی او پریوله دمخ د هغه خوا شروع کوی. او أَغَمّ چی تیم تندی پوری مثلا ویښتان شنه وی باید د نیمائي څخه د تندی دمخ شروع او د هغه ځایه څخه مخ منځی دی د دوو سوالو جواب کړ څخه هم شارح د هدایه ورکړی دی چی داتعریف په اعتبار داغلب الناس دی» او اصلع او اغم نادردي» لکن بیا هم پر عبارت د مصنفؒ دا سوال نه واردیږی. نو له دی سببه مصنفؒ په مراقی الفلاح کښې وائی، سَوَاءٌ کَانَ فِیهِ شعرٌ اَولَا»

**فائده**: ذقن په لغت کی هغه ځای ته وائی چی لاندی دوه کرغښې سره یوځای کیږی، او پرد غو دوو کرغښیو ږیره نسرپی راشنه کیږی» کذا فی مراقی الفلاح

**مسئله**: چونکه ږیره د دغو دوو او دکو څخه شروع کیږی. نو تر دغو دوو اړ کولاندی که دچا ویښتان وی هغه په ږیره کښې داخل نه دی پرینکول یه روا دی» قال المصنف

## وَحَدُّهُ عَرضًا مَا بَینَ شَحمَتَیِ الاُذُنَینِ

او اندازه دمخ په پسور کی په مابین کی د دوو نرمیو د غوږو دی.

**پوهـسـه** : چې شحمة په لغت کې هغه غوښه ده دَ غوږ وچې بنځی غوږ
په هَغو غوښو پورې ځړوي. **مسئله** : هغه خالی ځای چې په مابین کی دغوږ
او شحمة دی د هغه ځای پریوله هم فرض دی په صحیح روایت کښې - او امام
ابو یوسفؒ د هغه ځای پریوله ساقط بولې» مراقی الفلاح» قـال المصنفؒ

# وَالثَّانِیْ غُسْلُ یَدَیْهِ مَعَ مِرْفَقَیْهِ

اودوهم رکن د اودا سه پریوله دی د لاسو سره دَ څنګلو. **پوهـسـه** چې مصنف
په لفظ کی د» مَعَ» اشاره وکړه چې په ایت شریف کښې چی عبارت دَ» اِلَی الْمَرْفَقَیْنِ» راغلی
دی موږ ی غایت په حکم کښې د مغیا داخله ده یعنی پریوله دِ مِرفقینو فرض دَی» او امام زفر
په دی کښې مخالف دی،» چې هغه پریوله د مرفقینو فرض نه بولې. دلائل دَ دواړو مذهبو په
رد محتار کښې ملاحظه کړه اه» او پرې باندی قیاس کړه ایت مُبارك چې دَ پښو په باره
کښې راغلی دی یعنی» اِلَی الْکَعْبَیْن» فـقـال المصنفؒ»

# وَالثَّالِثُ غُسْلُ رِجْلَیْهِ مَعَ کَعْبَیْهِ

اودریم رکن داودا سه پریو له دَ پښو دی سره د بجلکو: لِقَولِهٖ تَعَالٰی: وَاَرْجُلَکُمْ اِلَی الْکَعْبَیْنِ» په نصب
یعنی په زور د» اَرْجُلَکُمْ» چې عطف پر مغسول سی. **سـوال** لفظ د» اَرْجُلِکُمْ»
په یوه قرائت کښې په جَر یعنی زیر دَلام هم راغلی دی چې د هغه قرائت څخه داسی معلومیږی
چې اَرْجُلِکُمْ پر رُؤُسِکُم عطف دی. او وظیفه دَپښو مسح کول دی لکه شیعګان چې
وائې. اودوی پر پښو مسحه روابولی او بَده مَرغه پر موږ و مسح روا نه بولې نو دوی
دومره فراخه موزه جوړ وی چې لاس ور ننوزی تا چه پر پښو مَسح وکړي.
**جَواب** : مَراقی الفلاح وائی چې داجر او زیر دَ سبب د جوار او همسایه والی دَ مجرور
دی چې» رُؤُسِکُمْ» او جر جوار په عربی ژبه کښې شائع دی» یقولون» جُحْرُ ضَبٍّ خَرِبٍ
سره ددی چې» خَرِبٌ د جُحْرُ» خبر دی او خبر خو مرفوع وي.



یعنی دا د ضَبٍّ سوړه خرابه ده
لکن چونکه په جوار کښې د ضَبٍّ چې مضاف الیه دجُحْرُ دی واقع سو نو خَرِبٍ په زیر وویل
سو» ابن مالكؒ په شرح کښې د عمدة وائی چې فقط واو عاطفه دپاره دجر جوار راتلای
سی. حاصل دا چې وظیفه دَ پښو پریوله دی او مسح یه نه ده روا. مګر هغه وخت چې
دَ سړي موزی په پښو وی» او نور الانوار کښې چې قرائت د نصب محمول دی پر حال دَلخو
پښو. او قرائت د جر محمول دی پر حال ددې چې موزی په پښو وی عملاً بالقرائتین»
**سَوال** : چې» اَرْجُلکُمْ» تر وَامْسَحُوا بِرُؤُسِکُمْ د څه راوړه سوی وای نو به په
متعینه توګه معلومه سوی وای چې وظیفه د پښو پریوله دی نو څه حکمت الٰهی دی چې دَ څه
په نه کړی. **جـواب** : خدائ اشاره وکړه و ترتیب ته دا ودا سه داره کسانو» او علامه
زمخشري المعتزلي په تفسیر کشاف کی وائی چې موږ منو چې اَرْجُلِکُمْ پر قرائت دَجر
عطف دی پر بِرُؤُسِکُمْ» لکن نه ددې وَجهی چې وظیفه دَ پښو مسحَ ده» لکه شیعګان
چې وائی. بلکه ددی دپاره چې اسراف دی په پریولو کښې دَ پښو نـه کوی:
**سَوَال** اسراف خو په ټولو اندامو په پریولو کښې ناروا دی نو دَ پښو تخصیص یه
ولی وکړی. **جـواب** پر نورو اندامو خو او به نه تویَول کیږي نو داسراف ګمان نه کیږي
او پر پښو خو او بَه د کوزي یا ګړوي را تویَول کیږی. نو ځای د ګمان د اسراف دی.
عَلامهٔ زیاته کړیده چې توهم ددی چې وظیفه د پښو مَسح کول دی یَه عین ایت
کښې دفع سوی دی. ولی چې خدائ غایت د اِلَی الْکَعْبَیْن راوړی دَه» او پَه شرعه
شریف کښې د مسح دَپاره غایت هیڅ ځای نه ده راوړه سوی،» عاصی وائی چې زمونږ
د مذهب دَلیل یعنی چې وظیفه دَ پښو پریوله ده هغه حَدیث صحیح دی چې» رسول الله
صَلَّی اللهُ عَلَیْهِ وَسَلَّم یو وخت اودس تازه کړی او پښې یې پریولی او بیا یـه دا سې
وفرمائیله» هذا وضوء لا یقبل اللهُ الصلوٰةَ اِلّا بـه» یعنی دا هغه اودس دی چې نـه
قبلوی خدائ لمونځ مګر په دغه اودا سَه»
او بل دلیل هغه حَدیث دی چې بخاری یـه روایت کړی دی داسی راغلی دی، چې په بعض
سفر کښې د ماز دیګر په وخت کی بعض صحابهؓ او دَس پَه تلوار تازه کاوه چې دَ پښو

دبریولو په وخت کښې پندي وَچې پاتې سوې وې نو آنحضرت ﷺ په لوړ آواز وویل ،،وَیْلٌ لِلْاَعْقَابِ مِنَ النَّارِ،، او سره ددې چې مقدار د مسحې چې دړې گټې دي د غو صحابهؓ وو پریولی وو،،

قَـــالَ الْمصنفؒ

## وَالرَّابِعُ مَسْحُ رُبُعِ الرَّأْسِ

اوڅلورم مسحه کول دي د څلرمې حصې د سر،،

**پـوهـسـه**: چې سر څلور حصې دي ۱ ناصیه چې نزله ته وائي ۲ قفا چې د څټ د خوا حصې ته وائي ۳ ۴ قرنان،، چې راسته او چپه نهیك ته وائي. نو پرهر څلورمه چې مسح وکړي د فرضو غاړې خلاصیږي مګر سُنت طریقه مسح کول د ناصیه دي.

**فَـائِدَه**: مَسح په لغت کې تیرول د لاس دي پر شی باندې. او په شریعت کې تیرول د لاندې شي دي پر اندام **مسئله** که چیرې یو سړی لوند تو کړ پر سر واچاوه. او یا یه پر لغر سر باران یا واوری اوریدل او څلرم قدر د سر په لنده سوه هغه کافي ده که لاس پر تیر کړي او که نه،، ط،، **مسئله** که سړې لاسونه پریوله او پر لاسو په لند والي وُو د سر مسح په یه وکړه،، مَراقي والایه کافي بولي،، لکن حاکم شهید یه کافي نه بولي بلکه ماء جدید غواړي او ایضاح والاهم دغه صحیح بولي،، او امام کرخیؒ په جامع کبیر کې د شیخینؒ څخه داسې روایت کړی دی،، إِذَا مَسَحَ بِفَضْلِ غَسْلِ ذِرَاعَيْهِ لَمْ يَجُزْ اِلَّا بِمَاءٍ جَدِيْدٍ، او دغه روایت په نهر او مجتبی کښې هم صحیح ګڼل سوی دی. نو فتویٰ هم پر دغه روایت ده

**بنُووَنَه**: مصنفؒ په فوق الذکر عبارت کې فرض قطعي او فرض ظني سره یو ځای کړي دي ولې چې مطلق مسح د سر فرض قطعي ده لِقَوْلِهِ تَعَالَىٰ: وَامْسَحُوْا بِرُءُوْسِكُمْ، او ربع د سر فرض ظني دي،، ولې چې امام مالكؒ مسحه د ټوله سر فرض بولي. او امام شافعيؒ مسحه د درو ویښتانو کافي بولي،،

قَـــالَ الْمُصَنِّفُؒ:

## وَسَبَبُهٗ اِسْتِبَاحَةُ مَا لَا يَحِلُّ اِلَّا بِهٖ

سبب د اودا سه طلب او اراده د مباح والي د یو کار چې روا نه وي هغه کار. مګر په اودا سه سره. لکه مَسح د مصحف شریف، لمونځ، طواف د کعبې شریفې

## وَهُوَ حُكْمُهُ الدُّنْيَوِيُّ وَحُكْمُهُ الْاُخْرَوِيُّ الثَّوَابُ فِي الْاٰخِرَةِ

او دس لوړول تر دغه کار حکم د اودس دی په دنیا کې. او اخروي حکم د اودا سه ثواب دی په ورځ د آخرت کښې یعنې د ثواب او دس وکړي **مسئله** که چا بار د څنګولو اندامو او دس تازه لکن چې په نیت د ثواب او دس وکړي لکن ثواب یه نسته،، لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلٰوةُ وَالسَّلَامُ،، اِنَّمَا کړي لمونځ خو په روا دی لکن ثواب په نسته،، اِنَّمَا الْاَعْمَالُ بِالنِّيَّاتِ،، الحدیث رواه البخاري: یعنی شراح د حدیثو وائي چې ثواب د عملو په نیت پورې اړه لري،، قَـــاله العینيؒ،،

قَـــالَ الْمصنفؒ.

**پـوهـسـه** چې

## وَشُرُوْطُ وُجُوْبِهٖ

او شرطونه د واجب والي د اودا سه د وجوب څخه مراد مکلف والي او فرضیت دی. یو عقل دی ولې چې فرض والی بیله عقل په شرع کې نسته

## اَلْعَقْلُ وَالْاِسْلَامُ

او بل شرط اسلام دی. ولې چې کفار په فروع د شریعت لکه لمونځ او روژه وغیره مکلف نه دي.

**فَـائِـدَه**: دا مذهب یو د درو مذهبو څخه دی چې ډیرو فقهاوؤ او متکلمینو مختار کړی دی،، او بل مذهب دا دی چې کفار مکلف دي په اعتقاد د فرائضو فرعیه وو او په اداء یه هم مکلف دي. بعض فقهاوو دا مذهب صحیح ګڼلی دی،، او بعض فقهاءؒ وائي چې دوی مکلف په اعتقاد د فروعاتو او په اداء یه مکلف نه دي. **تفریع**: پر اول مذهب کفارو ته صرف د کفر عذاب ورکول کیږي. د لمونځو روژو، وغیره نه کولو پر عدم اعتقاد او نه کولو پر عدم فعل عذاب نسته،، او پر دوهم مذهب دوی ته دری عذابه ورکول کیږي،، پر کفر عذاب،، پر نه اعتقاد د فروعاتو عذاب،، او پر نه کولو د فروعاتو عذاب،، او پر دریم مذهب دوی ته دوه عذاب ورکول کیږي. د کفر عذاب. او د نه اعتقاد د فروعاتو عذاب فقط،،

قَالَ الْاِمَامُ الطَّحْطَاوِيُّ: وَاَعْدَلُهَا اَوْسَطُهَا، یعنی دوهم مذهب ډیرا عدل دی.

زړه ورلیش وائي چې ددې مسئلې لوی تحقیق په تلویح کې د علامه تفتازانيؒ سته،، او په مسلم الثبوت کې د محب الله بهاري موجود دی. او په لویو فتاوو کښې د فقهې شریفې هم دا مسئله په تفصیل څیړل سوې ده.

قال المصنفؒ

## وَقُدْرَةٌ عَلَى اِسْتِعْمَالِ الْمَاءِ الْكَافِيْ

اوبل قدرت دی د مکلف پر استعمال د اوبو. دو نه اوبه چې بسینږی د پریولو د ټولو اندامو اوداسه **فائده** مراد د اوبو نه طهور اوبه دی» نه نجسی او نه مستعملی اوبه. ولې په هغوسره اودس نه دی روا **فائده**: مصنفؒ لفظ د قدرت ووایه پر استعمال داوبو. ولی که اوبه موجودی هم وي لکن مکلف یه پراستعمال قدرت نه لري په سبب د مریضی یا د دښمن د هغه سري نه هم تکلیف د اوداسه ساقط دی بلکه تیمم دی وکړي.

## وَوُجُوْدُ الْحَدَثِ

: او پنځم سبب په موجود والی د بې اوداسیادی. یعنی که سړي اودس د رلودی نو بیا نوی اودس پر فرض نه دی

## وَعَدَمُ الْحَيْضِ وَالنِّفَاسِ وَضِيْقِ الْوَقْتِ

اوبل نه وی موجود حیض او نفاس. او بل شرط د اوداسه واجبوالی تنګ والی د وقت د لمانځه دی ولې چې پر حائضه ښځې یا نفساء باندی لمونځ نه دی فرض نو اودس هم پرې نشته **پوهه**: چې اودس کول په نفس دخول د وخت د لمانځه واجب موسع دی لکن په وخت کښې د وخت د تنګی واجب دی خواه چې دی ته واجب مضیق وایي.

## وَشَرْطُ صِحَّتِهِ ثَلَاثَةٌ عُمُوْمُ الْبَشَرَةِ بِالْمَاءِ الطَّهُوْرِ

اوشرطونه د صحت د اوداسه دري دي کښیښتل دی د ټوله پوست د هغه اندام چې په اوداسه کښې یه پریول فرض وي لکه مخ لاسونه پښې، حتیٰ که یو ځای د ستنی ابنو لو په قدر وچ پاته سی اودس به نه دی صحیح » مر» په اوبو پاکوسره»  قَالَ الْمُصَنِّفُؒ

## وَاِنْقِطَاعُ مَا يُنَافِيْهِ مِنْ حَيْضٍ وَنِفَاسٍ وَحَدَثٍ

او قطع به وی هغه شی چې مانع د اوداسه وی. چې حیض او نفاس او حدث دی.



**تفریع** که ښځه په وخت کی د جریان د حیض یا نفاس اودس تازه کړي هغه هیڅ اعتبار نه لري. او یا نر یا ښځه د اودس تازه کولو په وخت کی پښکی یا ګوز واچوی وغیره هغه تیریدوي اودس یه اعتبار نه لري»  قَالَ الْمُصَنِّفُؒ.

## وَزَوَالُ مَا يَمْنَعُ وُصُوْلَ الْمَاءِ اِلَى الْجَسَدِ كَشَمْعٍ وَشَحْمٍ

او بل شرط د صحت د اوداسه لیری کول دی د هغه شئ چې مانع وي در سیدو نه د اوبو و بدن ته لکه موم یا وازګه چې پر ځای نګولی وي. **ښځا نه فائده**: پوهه چې رنګ د نکریزو یا اسمه یا غوړوالی د واسلینو یا وازګی مانع د صحت د اوداسه نه دی بلکه مانع د صحت جرم دی د موم یا وازګی وغیره » و د غه رنګه کی پر اندام د اوداسه خطی وي او یا لانده اوړه وه » او داغه رنګه که د چا په نوک کښی وچ خیزان وه کلک هغه به لیری کوی ورنه غسل یه نه دی صحیح »

**په ښځو کی آفت**: چې نی اودس صحیح کیږی او نی غسل» هغه داسې چې د ډیرو ښځو په ګوتو داسی ګتمی وي چې په زوره په ګوته کړي وي» حتیٰ چې هیڅ نه ښورَوی او نی هم دوی په وخت کی د اوداسه یا غسل ښورَوی چې او به یه ترګتمی لاندی ځای نه ورسیږی» نو داسې ښځو غسل او دس نه دی صحیح. او پر دی قیاس ښکرې د لاسو. غوږ والی د غوږو په غسل کی» او بل آفت دادی چې بعض پیشین والا ښځی نوکان د ګوتو په

**د ښځو د نوکانو رنګول** یو رنګ سره وهی. چې هغه جرم لري یعنی جسم لري) او پر نوک باندی خیز غوړی. د داسی ښځو هم غسل اودس نه دی صحیح.

**مسئله** که د چا ښنی چاودلی وي او هغه یه د کوندرو نه ډک کړي وي چې په ایستکولو کښی د هغه کوندرو حرج او زحمت وو نو اودس یه روا دی

**مسئله**: که د چا پر کم اندام درد وو. او پلستر یه پر اچولی وُو نو که یه په ایستنه کولو کښی د هغه پلستر حرج او تکلیف نه وو نو اودس یا غسل نه دی ورسره روا»

**مسئله** که دچا لاس مات وو او شکسته بند ورتړلی وُو، هغه سرې دی مسح کوي په اودس او جنابت دواړو کښې پر هغه تړلی ځای:

**مسئله** که سرې وغاښ ته د سرو زرو پوښ ورکړی وو لکه بعض مغرورو زنانه یا بنځې دغه کار کوي نو د هغو غسل نه دی صحیح کی خرهم او دس صحیح دی. ولې چې پر یوله ازاله خولې په غسل کښې فرض دی او په او داسه کی سُنت. **مسئله**: د بعض خلګو غاښ دَ ننه چنجو خوړلی وی یا درد کوی او غاښ یـه د کښو دپـاره زره کیږی. نو د اکړنګ ورسی هغه یه وړه ډک کړي یعنی په مابین کی غار وکړی او بیا په هغه غارکی یوشان وړواچوی چې د پاکی په وخت کی دا کاروسی دآینده د پاره یه هم اودس صحیح دی او هم غسل ولې چې د داخل د غاښ پر یوله فرض نه دی» قال المصنف

# فصل

**پوه سه** چې مصنف هم په دی فصل کی بقیه واجبات او احکام داوداسه بیان کړیدی

## یجب غسل ظاهر اللحیة الکثة فی اصح ما یفتی به

واجبه ده یعنی پر او دس کوونکی پریوله د ظاهر د هغه ږیرې چې ګنه وي یعنی چې ویښتانه یه ډیروي چې پوست هیڅ نه ترلا ندی معلومیږی په ډیر صحیح روایت کی چې فتوی په ورکول کیږی د دی مسئلی دلیل دادی چې ګڼه ږیره په ځای کښی د ما تحت پوست ولاړه ده او سر د دغسی ږیری پر یوله د پوست او او به رسول وهغه ته حرج کلی دی » مصنف دا مع په لفظ اشاره وکړه و مذهب ته د بعض فقهاوو چې وائی چې پریوله د ثلث د ږیری او بعض وائی د خلرمی ږیری او بعض وائی سطح د ټولی ږیری کافی ده چې دا روایات صحیح نه دی.

## ویجب ایصال الماء الی بشرة اللحیة الخفیفة

او واجب دی یعنی فرض دی رسول د ابو وپوست ته د سپکی ږیرې.





یعنی د مخ پوست ترلا ندی معلومیږی چې هغه سرې ته په اصطلاح د پښتنو» خوکړه» وائی.

## ولایجب ایصال الماء الی المسترسل من الشعر من دائرة الوجه

او واجب نه دی رسول داوبو هغه ویښتا نو ته چې کښته ځړیږی تر حدود د مخ، ولې چې هغه ویښتان نه مخ دی او نه د مخ بدل دی.

**پوه سه**: چې د څوړه ندو ریښتا نو د ږری په اتفاق فرض یا واجب خو نه دی. او پر صحیح روایت مسح یه هم نه ده فرض او نه هم واجب او نه سُنت: لکن ابن امیر الحاج وائی چې پر یوله یه سُنت دی » او په منیة المصلی کی وائی چې مسح یه سنت ده والله اعلم»

## ولا الی ما انکتم من الشفتین عند الانضمام

او د غرزنګه واجب نه دی رسول داوبو شونډانو هغه ځای ته چې هغه پو تیږی چې سرې خوله په عادتی ډول پټه کړي او شونډان سره تول کړي. **پوه سه**: چې سرې چې شونډان تول کړي هغه حصه چې پټه سوه هغه تابع د خولې ده. او چې ښکاره وه هغه تابع د مخ ده»

**مسئله**: دستر ګو داخل ته اوبه رسول نه دی واجب که څه هم په غسل کښی وی ولې چې په دی کښی یو خو حرج دی بل د ستر ګو ضرر دی» قال المصنف

## ولوانضمت الاصابع اوطال الظفر فغطی الانملة

که دچا ګوتی سره جفتی وی په اصل خلقت کښی چې و مابین تی او به نه رسیدلی» او یا دچا نوکان دونه اوږده سوی وه چې د ګوتی سر یـه پټ کړی وُو» علامی وائی چې د بعض پلیشینی او عصری ښځو د غسی نوکان عادت دی» دوی دا زینت بولی» قال المصنف

## اوکان فیه ما یمنع الماء کعجین وجب غسل ما تحته

او یا وو په هغه ځای کښی چې پر یوله یه فرض وی یو داسی شی چې منع کاوه یه رسیده داوبو و داخل پوست ته لکه لانده اوړه. واجب او فرض دی پریوله د هغه لا ندی پوست ته

یعنی منعه مانع چې نوکان دی یا اوږه هغه به لرې کوي. قـال المصنفؒ

## وَلَا يَمْنَعُ الدَّرَنُ وَخُرْءُ الْبَرَاغِيثِ وَنَحْوُهَا

اونه منع کوی صحت داودا سراود غسل خیره چې د نوك او وودیو ترمـا بین وي

**پوه سه**: چې بعض فقهاء داسې وائی چې دا حکم د صحرائي خلګو دپاره دی چې دغا ورو اوختمو سره بی سري کاروي. او د بازاری سړي دپاره مانع د صحت دئ. لکن صحیح داده چې دا حکم عام دی. او د غرزنګه یه نه منعه کوی د کیکوغول چې پر اندام وي. او یا مثلاً د کیکو لکه دیچاز غل

## وَيَجِبُ تَحْرِيكُ الْخَاتَمِ الضَّيِّقِ

او واجب دی ښورول د تنګی ګتمې چې اوبه پوست ته ورسیږی. قـالَ المصنفؒ

## وَلَوْضَرَّهُ غَسْلُ شُقُوقِ رِجْلِيهِ جَازَ اِمْرَارُ الْمَاءِ

که چیري تاوان ورته کاوه پريولو دچاودو دپښو یعنی پس له دی چې سړی کنډري یا بله

## عَلَى الدَّوَاءِ الَّذِى وَضَعَهُ فِيهَا

پښې اچولې وه. نو روا دی تیریدل داوبو په وخت کښې د پريولو دپښو پر هغه دواء چې ده ایښی ده په هغه چاودو کښې،

## وَلَا يُعَادُ الْمَسْحُ وَالْغَسْلُ عَلٰى مَوْضِعِ الشَّعْرِ بَعْدَ حَلْقِهٖ

اونه دی راګرځوی مسح د سر او پريولو پرځای د وېښتانو. اونه دی راګرځوی پريولو پس له پرې کولو د

## وَلَا الْغَسْلُ بِقَصِّ ظُفْرِهٖ وَشَارِبِهٖ

نوکانو او یا پرې کولو دبریتو د وېښتانو، حاصل دادی که یو سړی اودس تازه کړي چه هم بې اودسه وي او پر سر یه مسح وکړو او بیا یه سر وخرایه د مسح د سر راګرځول نه غواړي-



او یا یو سړی غسل وکړی که څه د جنابت وی او وروسته یه سر وخرایه. او یا یه نوکان پرې کړه. او یا یه بریتونه ووهله نو د سر پريوله یا د ګوتو پريوله یا د بریتو وېښتانو لاندی ځای پريوله نه غواړي، د دی ټولو مسئلو دلیل دادی چې پريوله وېښتانو سا قطرسوه" وَ السَّاقِطُ لَا يَعُوْدُ"، **مسئله** پس له غسله با مسح په وېښتانو کی سر وخرایه راګرځول دغسل یعنی پريولو مستحب دی" کـنز الدقائق

# فَصْلٌ
# فِى سُنَنِ الْوُضُوْءِ

**درویش** وائی دسنت په باره کښی په زړه پورې تحقیق، **پوه سه** چې سنت په لغت کی هغه قول یا عمل دی که ښه وی او که بد! چې په حدیث کښی چې طبرانی یه روایت کړي دی:

انحضرت صلی الله علیه وسلم فرمائی: مَنْ سَنَّ سُنَّةً حَسَنَةً" که چا پر انسټل یو ملاره چې ښه وه، لکه چې فقراؤ ته چې ډوډی ورکوی، یا یه پُل جوړ کړی یا یه دینی مدرسه جوړه کړه وغیرها" فَلَهٗ اَجْرُهَا مَا عُمِلَ بِهَا فِىْ حَيَاتِهٖ وَ بَعْدَ مَمَاتِهٖ حَتّٰى تُتْرَكَ"، او کی کښېښول یو طریقه بده نو پر ده یه ګناه ده ترهغو چې هغه طریقه پاتې ږی. مثلاً یو سړی په بازار کی د شرابو چښلو ځای جوړ کړي، یا د چرس څکولو ساقی خانه جوړه کړي" یا د وی، سی، آر، تجارت کاوه او نور د دغه قسمه عملونه چې تفصیلاً یه بیان ګران دئ.

او سُنت په اصطلاح کی د شرع شریفې، "طَرِيْقَةٌ مَسْلُوْكَةٌ فِى الدِّيْنِ بِقَوْلٍ اوفِعْلٍ"، هغه لاره چې تلك پر کیږی په دین کی که په قول سره وی او که په فعل سره وی، مِنْ غَيْرِ لُزُوْمٍ" چې لازمه یعنی خواه مخواه غوښتونکی نه وي" په دی قید سره فرضی کار" خارج سوولی چې هغه لازم دي. وَلَا اِنْكَارَ عَلٰى تَارِكِهَا"

اونه په شرع شریفه کښې انکار کیږی پرېږی بنوونکی یه « په دی قیدسره واجب ووتلو ولی چې پر تارك الواجب باندی انکار رسته په شرع کښی» وَلَيْسَتْ خُصُوصِيَّةٌ» او نه وی په چا پوری خاص وی، په دی قیدسره خواص د نبی عَلیه السلام ووتلی» لکه صوم الوصال یعنی دوړځی اود شپې روژه»

**فَـائِدَه**، سنت دوه قسمه دی. یو سنت مؤکده دی. چې سنت الهدیٰ هم ورته وَائی. او سُنت راتبه یه هم بولی. سنت مؤکد هغه کاردی چې رَسُول کریم صَلی الله عَلیه وسلم په اکثروا وقاتو کښی کړې وی او بیځی لږ یه په بعضی وقتوکی پری ایښی وی. چې دغرته د فقهی شریفی په کتابو کښی مجازًا مواظبت وائی. لکه اذان، اقامت اوجماعت، اود پنځو سره لموځو راتب سُنت، او مضمضه او استنشاق وامثالها»

**دسُنت موکده حکم**: علامه قهستانیؒ وائی چې دی په حکم کښی دَواجب دی. چې دنیا کښی طلب څنګه کیږي. فرق یه دادی چې تارك ته دواجب عقاب داور دی که چیری بخښنه ونه شي. او تارك ته دسُنت مؤکده عتاب اوسرزنش سته په ورځ د قیامت» او په جوهره کښی چې د قنیه نه نقل کړې دی وائی چې تارك دسُنت مؤکده فاسق دی او منکر یه مبتدع دی. او په تلویح کښی وائی چې ترك دسُنت مؤکده نږدی دی په وحرام ته. او دغه سړی مستحق دی حرمان د شفاعت نبویؐ قَالَ عَلَيْهِ السَّلَام: مَنْ تَرَكَ سُنَّتِي لَمْ يَنَلْ شَفَاعَتِي»

**پوښتنه**: په حدیث صحیح کښی راغلی دی چې رَسُول الله صَلی اللهُ علیه وسلم فرمائیلی دی» شَفَاعَتِي لِأَهْلِ الْكَبَائِرِ مِنْ أُمَّتِي» نوځرنګه ترك دسنت مؤکده سبب دحرمان د شفاعت نبویؐ دی سره ددی چې ترك دسنت مؤکده ګناه کبیره نده

**جواب** شفاعت نبویؐ دوه قسمه دی. یو پاره د بخښنی دګناه دی هغه شفاعت خوعام دی. هیڅ څوك څنګه محروم نه دی. او بل شفاعت دپاره د رفع ددرجو په جنت کی تارك دسُنت مؤکده ددی شفاعت نه محروم دی. کذا قال شراح الحدیث

**تنبیه**: پاره ترقدره پوری دقبضی سنت مؤکد دی. لکن بعض مسلمانان یه په



متابعت دکفارو خرئ یا یه منډی کوی» او یا یه د ماینی د خوشحالی دپاره»

اوبل قسم سُنت زائده دی. چې ورته قسم اهل اصول الفقه مستحب او مندوب او آداب وائی که څه هم بعض فقهاء لکه صاحب محیط فرق ددی دری سره وو وائی» لکن امام طحطاویؒ وائی» وَالأَوْلَى مَا عَلَيْهِ الأُصُولِيُّونَ» ددی مثال لکه مسح دَرقبه په اود اسرکی یا نفلی لمونځ یا نفلی روژه، یا نفلی صَدقه» حاصل دا چې سنت زائده هغه کار دی چې علیه السلام هم کړی هم پری ایښی وی او فعل یه ترترك غالب نه وي» قَالَ الْمُصَنِّفُ

## وَيُسَنُّ فِي الْوُضُوءِ ثَمَانِيَةَ عَشَرَ شَيْئًا

اوسنت دی په حال کښی داودا سه اتلس ۱۸ شیان.

**پوښتنه**: چې مصنفؒ تصریح په ۱۸ اتلس شیانو سره د پاره د آسانی دپیاد ولو پرطالب وکړه. ورنه سُنت داودا سه حصر په ۱۸ اتلس کی نه دی» مر» قَالَ

## غَسْلُ الْيَدَيْنِ إِلَى الرُّسْغَيْنِ

پریوله دی دلاسو یعنی په ابتداء کی داودا سه تر بندو پوری» **پوښتنه**: چې پریولو دلاسو خو سُنت دی که د خوبه را ویښ سی او که دسره ویښ وي» لکن دخوبه چې راویښ سی نو پریوله یه دیر آکد سنت دی لکه چې په حدیث کی د بخاری داسی راغلی» إِذَا اسْتَيْقَظَ أَحَدُكُمْ مِنْ مَنَامِهِ فَلَا يَغْمِسَنَّ يَدَهُ فِي الْإِنَاءِ حَتَّى يَغْسِلَهُ ثَلَاثًا» الی اخر الحدیث»

**دفقهاوو اختلاف**:

صاحبُ المحیط وائی چې دواړه لاسونه په جمعه کولو سره دری واره پریولو سنت نه دی. او ابن امیر الحاج وائی دغسی کول سُنت دی په بحرالرائق کی وائی چې یو پیلا دواړه لاسونه دری واره پریوله او یا جلا جلا پریوله دواړه روادی. کی جلا پریوله نو دی په چپه لاس لوښی ونسی او پر راسته لاس دی را توی کړي چې هغه یه پریوله بیا دی چپه لاس جلا پریمنځی یادی راسته لاس سره جوت

کړي دواړه دی پریمنځئ. **فائده**: دَلاسو پریوله هَلته سنت دی چې نجاست ظاهره نه وی پر باندی او که نجس وه نو بیا یه پریوله فرض دی.

**نادره مسئله**: امام طحطاویؒ په ص۵ کی والیٔ که دسړي لاسونه په ظاهري نجاست مردار وه او لوښی داوبو ونه غټ وو چې راکږو وَاٸی ممکن نه وه. نو که ده کولای سوای چې په دسمال یا دلنگوټي په شمله یا په خوله اوبه دلوښی څخه راواخلی او لاس په پریمنځی خو دی ښه» او که دا کړده کاروونه نه کیدل نو تیمم دی وکړي او لمونځ دی ادا کړي او راګرځول دِ لما غخریه هم پری نسته» کذا قال القهستانیؒ

**فائده**: دا اول پریوله د لاسو سنت دی لکن په ځای کی دفرضو دریږی» کافی او فتح القدیر والیٔ چې پریوله یه فرض دي» د مخنه کول یه سُنت دي، ط قَالَ

## وَالتَّسْمِيَةُ اِبْتِدَاءً

او بل بِسْمِ الله ویل وارده واره یعنی په ابتداء کی داوداسه **مسئله** کی استنجاء وَهَله نو تر کشف یعنی لڅوالی دعورت دی دمخه دی بِسْمِ الله وَوَائی» او بیا دی په نیز دبعض فقهاوو دَنور او دیا سره دي هم وَوَائی» او که استنجاء یه نه وهل نود نور اوداسه په ابتداء کښی دی ووائی. او لفظ دَ» بِسْمِ الله داوداسرچې دسلفوؒ څخه منقول دی داسی دی. بِاسْمِ اللهِ الْعَظِيمِ وَالْحَمْدُ لِلّٰهِ عَلٰى دِيْنِ الْاِسْلَام» او بعض علماءؒ وائی چې افضله بِسْمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْم» دَیٔ. ولی چې اودس امرذی بال دی. او دامرذی بال په ابتداء کښی بِسْمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ لوستل سوي دَه»

لکن داسی سوال واردیږی چې دامرذی په ابتداء کی خو حمد ویل هم ارشادِ نبویؐ دی نو ځکه بنایه دَمجتبیٰ څخه داسی نقل کړي دی» که څوک په ابتداء کی داوداسه داسی وَوائی» بِسْمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ بِاسْمِ اللهِ الْعَظِيْمِ وَالْحَمْدُ لِلّٰهِ عَلٰى دِيْنِ الْاِسْلَامِ دتولو احادیثو امتثال به وکړه سي»

اللهم اغفر لمولفه و لکاتبه ولوالدیهما کتبه احقر فضل الحق حقانی غفرله





# دفقهاوو اختلاف

**پوښتنه**: چې بِسْمِ الله په ابتداء کی داوداسه په نیز د مصنف حسن بن عمار بن علی الشرنبلالیؒ: سنت مؤکد دی» او مبسوط والا یه هم سنت مؤکد بولي. او په محیط او تحفه کښې هم سنت مؤکد گڼلی سوی دی» واختاره القدوري والطحاوي وصاحب الکافیؒ.»

او علامه مرغینانیؒ هم دا رایه صحیح بولي. لقوله علیه الصلوٰة والسلام» لَاصَلٰوةَ اِلَّا لِمَنْ لَاوُضُوْءَ لَهُ وَلَاوُضُوْءَ لِمَنْ لَمْ يَذْكُرِاسْمَ اللهِ عَلَيْهِ» رواه ابوداؤد والترمذی والحاکم فی المستدرک او صاحب هدایه وَائی: چې اصح یه داده» بِسْمِ الله ویل مستحب دی. او شارحانو یه وجه ضعف دحدیث مذکور بیان کړي دی» لکن امام طحطاویؒ وائی چې ددی حدیث طرق دروایت ډیردی» نو دوجه ته دحسن حدیث رسیږی، او په حدیث حسن سنیت ثابتیږی، حتی چې کمال الدین ابن الهمامؒ په دغه حدیث سره وجوب بِسْمِ الله ثابت کړي دی: وَاللّٰهُ اَعْلَمُ

**مسئله**: که دسړي څخه په ابتداء کی داوداسه بِسْمِ الله ویل هیر سوه بیا یه په مابین کښی داوداسه ووَیله آیا سُنت یه پرځای کیږی که نه! **جواب** مراقی والیٔ چې سُنت یه نه پرځای کیږی او په سراج او جوهره کښی وَائی چې بِسْمِ الله دی په مابین کی داوداسه وَوائی. ولی چې سُنت که فوت سوا دی دَه اوداسه پرځای سی» ط، م

## وَالسِّوَاكُ فِى اِبْتِدَائِهٖ وَلَوْ بِالْاُصْبُعِ عِنْدَ فَقْدِهٖ

او بل سنت داوداسه» مسواک وَهَل دی په ابتداء کښی داوداسه که څه هم په گوته سره وی په وخت کښی د دي چې مسواک نه وی» **پوښتنه**: چې لفظ د» سواک په زیر د سین څخه لرگی ته هم وَائی او فعل ته دَوَهلو څخه پرغاښونو باندی هم وائي دلته دغه معنا مراد دَه»

# فضائل دمسواك

په حديث صحيح كې په روايت د بخاري رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمائي: لَوْلَا اَنْ اَشُقَّ عَلٰى اُمَّتِي لَاَمَرْتُهُمْ بِالسِّوَاكِ عِنْدَ كُلِّ صَلٰوةٍ، يعنې په نيزد اوداسه دم لمانځه لكه چې په بل روايت كښې داسې راغلى دى عند كل وضوء، او په بل روايت كښې داسې راغلي دي "اَنَّ كُلَّ صَلٰوةٍ بِهٖ" هرلمونځ دمسواك وهلو وى، تَفْضُلُ سَبْعِيْنَ صَلٰوةً بِدُوْنِهٖ بالا دى تر اويا لمونځو چې بې مسواك وهلو وي"

**فائده:** مسواك به د نرم پاستنه لرګى نه وي. پنډوالى بې په قدر دګوتې وي او اوږ دوالى به ئې په ابتداء كښې يوه لوېشت وي. او زخې به ډېرې نه لري. او كوږ به نه وي، اكثر فقهاء پر دى دي چې مسواك دى په وخت كښې دمضمضه وي" او بعض وائې چې تر ټوله اوداسه دى د مخه وهي" او د احنافو مذهب دا دى چې مسواك وهل د سُنتو نه د اوداسه دي" او اهل ظاهر وائي چې د سُنتو نه د لمانځه دى"

**مسئله:** مسواك وهل بې اوداسه مستحب دى كې دخولې بد بوى تلى" او بل چې د خوب نه او پس سى او يا كوږته وږئې يا اجتماع ته د خلګو ورځي. او په وخت د قراءت د قرآن يا علم حديث" د حضرت الامام الاعظم نه روايت د ى چې مسواك وهل د سننو نه د دين دى. نو هر وخت به وهل ښه كار دى. قَالَ عَلَيْهِ الصَّلٰوةُ وَالسَّلَامُ: اَلسِّوَاكُ مُطَهِّرَةٌ لِلْفَمِ مَرْضَاةٌ لِلرَّبِّ: مسواك وهل پاكوونكى دخولې دى او سبب د رضاء الهى دى. امام زيلعيؒ په شرح كښې دكنز وائي چې صحيح دا ده چې مسواك وهل مستحب دى" دارولش وائي كه مونږ احاديث صحيحه چې ټولو صحاح كتابونو روايت كړي او په ډېر كثرت سره احاديث په باره كښې د مسواك راغلي دى مطالعه كړو. نو بايد چې قول د زيلعيؒ تائيد نه كړو او سره د دى چې متنونه يه سُنت بولي" او بعض علماء په دى قول د صاحب هدايهؒ خطا وتلى دى چې وائي اَلْاَصَحُّ اَنَّهٗ مُسْتَحَبٌّ، مګر د دې عبارت مراد امام طحطاويؒ داسې بيان كړى دى" يعنې في الوضوء ومطلقًا"





# مسائل دمسواك

**مسئله:** مسواك دى د مخه تر استعمالولو لوند كړي **مسئله:** او پس لمسواك ... **مسئله:** مسواك دى ... مينځي ورنه شيطان يه په خوله وهي **مسئله:** مسواك به اول وا ... پرې مينځي ورنه ... ... پرى ... بالا نوى اونه كم. وروسته په كرار كرار كه كشنى سى پروانه لري ... لوېشت بالا نوى او نه كم. وروسته په كرار كرار كه كشتى سي پروانه لري.

**مسئله:** د مسواك لرګى دى تريخ وي. ولې چې داسې لرګى بلغم قطع كوي. او د ... سينه پاكوي. **مسئله:** كه د سرې وږى ضعيف وى او د هر اوداسه د مسواك ... ... ورى د نقصان بيه وه نو پرداسې سړې هميشه والى لازم نه دى بلكه ګاهې ګاهې ... وهلو نه پر ورى ... ... وهي" ط، ص۵ **مسئله:** كه غاښونه يه كښلې وى يا ختلى وه هغه دى مسواك ... په ځاى كې زيږ تكريا بته ګوته يا وروسته ګوته په ورى پورې ومونږ ى د مسواك ... ثواب خداى وركوي" **مسئله:** د ښځې وږى چونكه ډيرى ضعيف دى نو ښځه دې ... مسواك په ځاى كښې ژاولې ژولې: **مسئله:** كه ښځه په عادتې توګه ژاولې ژوي ... او د مسواك د ثواب د پاره يه نه ژولې هغې ته خداى ج ثواب نه وركوي" لانه قد وَرَدَ "اِنَّمَا الْاَعْمَالُ بِالنِّيَّاتِ" رواه البخارى"

## دمسواك نيولو طريقه:

**مسئله:** كيفيت د مسواك د نيولو طريقه دا راسته لاس كښتنى ګوته دى تر مسواك لاندى ونسى. او بته ګوته د مسواك تر سر لاندى ونسى، او هغې دوى ګوتې دى پر مسواك سر باندې ونيسى، **مسئله:** مسواك دى د وهلو په وخت كښې په موټه كښې نه نسى، چې سړي ته مواسير پيدا كيږي. **مسئله:** په پروتې دى هم مسواك نه وهي چې بيا يه تورى غتيږي **مسئله:** مسواك دى پر عرض د غاښونو وهي نه پر طول د هغو ولې چه ورى شاوانې كيږي: **مسئله:** مسواك دى د غاښونو پر د باندې او پر د ننه دواړو وهي" او د خولې په كنجانو كښې او په لوړتالو او كښته تالو دواړو كښې وهي. **مسئله:** مسواك دى زبيښنې نه. ولې نه بايده په ستركو ورنه سي، **مسئله:** هغه نارې چې په خوله كښې د سړي وى پس له مسواك وهلو نه او ويته

په ګډه نه وي هغه دې تېرې کړي چې دَ غه ناړې و» اتشلك» او» پِس» ته ګنه
سوي او د هر مرض دوا ده ما سوا د مرګه» ط» **پوهـــه**: چې شيخ احمد الزاهد
فضائلو کښې د مسواك يو کتاب تصنيف کړي دی نوم يې» تحفة السّلاك فی فضائل ال
په هغه کتاب کښې وائي: مِن فضائله ما روی الائمة الاربعة عن علیؓ وابن عباسؓ
عطاءؒ» عَلَيْكُمْ بِالسِّوَاكِ ١ تاسي لازم وګرځوئ پر ځان د مسواك وهل»
فَلَا تَغْفُلُوا عَنْهُ» غفلت مه ځندي کوی» وَأَدِيمُوهُ» او همیشه توب پر و کړئ» و ٢
فِيهِ رِضَى الرَّحْمٰن» چې په مسواك وهلو کښې رضا د رب جل شانه» ٣ او دوچنده
هغه لمونځ چې مسواك په وهلي وي تر ٩٩ مثله پورې بلکه تر ٤٠٠ مثله پورې» ٤ او
توب پر مسواك وهلو باندی فراخي د رزق او د غنی. او اساني د رزق په پیدا کولو کښې
فائده ده» ٦ او خوله په خوشبويه کېږی ٧ او وريږې ټینګیږی ٨ او د سر د ردیا
٩ او د سر رګونه به لیځ پر خپل حال وی یعنی یو رګ چې ساکن دی حرکت به هغه نه کوي» او چې
متحرك وي هغه به ساکنیږی نه» ١٠ او بلغم په لیرې کوی. ١١ او غاښونه ټینګوي
١٢ او د سترګو دید زیاتوی (تیزه وی) ١٣ او معده په بنه قوت سره پالنه د بدن کوی
١٤ او وسړي ته فصاحت د ژبې ١٥ او قوت د حفظ او عقل ورکوی» ١٦ او زړه د شیط
وسوسو څخه خلاصوی» ١٧ او نیك عملونه په زیاتیږی ١٨ وَيَفْرَحُ الْمَلَائِكَة ١٩
او ستړي مَسي ورسره کوي په سبب دَ نور دَمخ په» ٢٠ او ملائکه ورسري ملګري
وی تر لمانځه پورې ٢١ او طلب د بخښنې کوی ورته ملائکه د عرش» او ٢٢ مسواك
وهل هضم کوونکی د طعام دی» او د ٢٣ اولاد د ډیروالي سبب دی ٢٤ او طلب د بخښنې
په کوي انبياء او رسولان علیهم السّلام» ٢٥ او مسواك وهل په غضب کی اچوونکی د
شیطان دی ٢٦ او شړونکی د شیطان دی ٢٧ او ذهن صافوونکی دی ٢٨ او بدن ته
قوت ورکوی پر عبادت د خدایؒ ٢٩ او حرارت مضره د بدن څخه لیرې کوی. ٣٠ او پر پل
صراط به لکه برق داسي تیریږی ٣١ او و لیندر به په ژر نه سپینیږی. ٣٢ او عمل نامه
په ورځ د قیامت په راستلاس ور کول کیږی ٣٣ او ملائسته قوت ورکوی ٣٤ او کلمه شهادت



په وخت د نزع ور پیادیږی ٣٦ او زکندن بی په آسانی سره وی» ٣٧ او غاښونه به پ
بی په ... ین وی ٣٨ او دَ خولې بی بنه بوی ځی» ٣٩ او ژبه بی په خبرو کښې تیزه وی. ٤٠ او
حرکت بی ډیر وی ٤١ او رطوبات بی فاسده کموی، ٤٢ او د سترګو نظر بی تیز وي
٤٣ او ثوابونه د بنو عملو بی مضاعف وی ٤٤ او مال او اولاد بی مخ پر ډیریدو وی ٤٥
او مسواك وهل کمك دی پر پوره کیدو د حاجتو ده ٤٦ او په قبر کی به ور ته فراخی وی
٤٧ او په لحد کښې به انیس ور سره وی ٤٨ او ده ته به لیکیږی ثوابونه د هغو کسانو چې
مسواك یه نه وی وهلی په دغه ورځ ٤٩ او خلاص به وی ده ته دروازی د جنتو
٥٠ وَتَقُولُ الْمَلَائِكَة او وائی به ملائکه په حق کی د دغه سړي چې مسواك په خپل عادت
ګرځولی وی» چې ده سړي اقتداء په انبیاء علیهم السّلام پسی کړیده. ٥١ او تړلي
به وی ده ته دروازی د دوزخ ٥٢ او نه به وزی د دنیا څخه مګر طاهر او پاك ٥٣ او ده
ته نه راځي ملك المَوت مګر په هغه صورت کی چې د خدایؒ دوستانو ته ورځي.
٥٤ او د دنیا څخه به وزی تر څو چې ده ته یو غړپ اوبه د حوض کوثر د نبی علیه السلام ور
نه کړي: ٥٥ او مسواك وهل صفا کوونکی دی د خولې» ٥٦ او راضی کوونکی د رب جل جلاله
انتهى ما في الكتاب المذكور بنقل الامام الطحطاويؒ ص٥٣/٥٤ وقال في ص٥٥ چې دا فضائل
تول روایت سوی دی». دا انحضرتؐ څخه بعض په مرفوع حدیث او بعض په موقوف
حدیث که څه د بعض دَ دغو حدیثو په اسنادو کښې څه خبرې محدثینو کړي دی» لکن
د عمل دپاره کافی دی. ولې چې په حدیثو شریفه وو کی راغلی دی چې چاته ورسیږی خبر د عمل
د ثواب نو سړي هغه کار دپاره دَ طلب د رضا د خدایؒ وکړي خدایؒ ثواب ورکوی» که څه هغه خبر
درست او صحیح نه وی»
زرولیس وائي چې غرض د مصنف د تحفة السّلام» په بیان کښې دَ دغو فوائد دَ مسواك
وهلو چې وه ص٥٥ تر رسیږی» صرف باعث کول دی د مسلمانانو و مسواك وهلو ته، ولې چې
ډیر عوام بلکه بعض طلباء او علماء کلك عزم د مسواك وهلو سره په هر اودا سه کی نه لري»، نو دا
سوال نه پیدا کیږی چې په دَ غو خواصو کی بعض دَ بعضو په مآل کی یو شی دی.

یایوه خامه بلی خاصی ته مستلزمه ده نودونه دیروالی ته ضرورت شوو، داووبل
مفصل په باره کښی دمسواك وهلو. قال المصنف

## وَالْمَضْمَضَةُ ثَلَاثًا وَلَوْبِغُرْفَةٍ

په خوله اوبه لغړول دی که څه هم دیوی لپی څخه وي. په حدیث مبارك کښی راغلی دی «تَوَضَّأَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثَلَاثًا وَاسْتَنْشَقَ ثَلَاثًا يَأْخُذُ لِكُلِّ وَاحِدَةٍ مَاءً جَدِيدًا»، یعنی آنحضرت اودس تازه کاوه نو یه په خوله اوبه ولغړولی دری واره او په پزه یه اوبه ولغړولی دری واره. او هر واره یه نوی اوبه اخستلی.

**سوال**: مصنف ووییل که څه هم دیوی لپی څخه وی یعنی دیوی لپی څخه دری واره اوبه ولغړولی او په حدیث کښی چی تیر سو آنحضرت دهری پلا دپاره نوی اوبه اخستلی.

**جواب** په مضمضه کښی اصل په خوله لغړول یو سنت دی او تکرار داوبو بل سنت نو د مصنف مراد دادی چی دیوی غرفی څخه اصل سنت پرځای کیږی که څه هم سنت د تکرار پاته سو. قال المصنف

## وَالْاِسْتِنْشَاقُ بِثَلَاثِ غُرُفَاتٍ

**پوه سه**: چی استنشاق په لغت کښی اوبه دی پرینځی په دړو لپو سره، کشول داوبو دی په هواء د پزی وپزی ته، او په اصطلاح کښی د شرع شریف رسول داوبو دی پزی ترنرمه کانو پوری، یعنی کشول داوبو په هوا د پزی په شرع کښی شرط دسنت نه دی کذافی النهر. **پوه سه** هم سبب دی چی مضمضه دری واره په یو لپه رواده او د استنشاق دپاره خواه مخواه دری لپی غواړی **جواب** فرق یه دادی چه شوندان دخولی پر بعضو اوبو اخستلو د لپی څخه سره تولیږی نو باتداوبه په لپه کښی نه مستعملیږی، او پزه دغسی نه ده پاته او به مستعملی گرځی، کذافی الجوهرة والشرنبلالیة.





**سوال**: په حدیث صحیح کی د بخاری وغیره داسی راغلی چی آنحضرت صلی الله علیه وسلم یوه لپه اوبه واخستلی څه یه په خوله کښی واچولی او نوری په پزه کی یعنی په یوه لپه مضمضه او استنشاق وکړی او دوه واره یه نوره داغسی وکړه **جواب** عینی شرح د بخاری کی وائی چی دا فعل د علیه السلام دپاره دبیان د جواز دی یعنی چی داسی هم رواده او اصل سنت خو هغه وو چی بیان سو:

**پوبسننه**: که سړی دیوی لپی څخه اول په پزه څخه اوبه ولغړوی او نوری په خوله داسی رواده او که څرنګه **جواب** نه ده روا یعنی استنشاق په اوبه صحیح دی مضمضه یه نه ده صحیح، ولی چی موږ وویله چی دپزی څخه پاته اوبه مستعملی گرځی. او په مستعملو اوبو نه سنت پرځای کیږی او نه فرض کما مر فی صدر الکتاب»

**فرع**: که سړي دجنابت په وخت کښی دغسی وکړه نودمضمضه دفرض والی غاړه نه خلاصی. قال المصنف

## وَالْمُبَالَغَةُ فِي الْمَضْمَضَةِ وَالْاِسْتِنْشَاقِ لِغَيْرِ الصَّائِمِ

او مبالغه دی کوی په مضمضه کښی او په استنشاق کښی، لکن غیر د روژی والا څخه یعنی هغه دی مبالغه په یو کښی نه کوی کی څه هم روژه نفلی وي. ولی نه بایده وبه په دخولی یا دپزی دخوا څخه حلق ته ولاړی فسی» او روژه ماته نه سي»

**پوه سه**: چی مبالغه په مضمضه کښی دادی چی اوبه په خوله کښی وګرځوی او غرغره یه کړي، او مبالغه په استنشاق دادی چی اوبه دپزی په هوا پورته کش کی تر نرمکانو یا لوړ ورسیږی» **مسئله** مبالغه کول په مضمضه او استنشاق کی په ارداسه او غسل دواړو کی سنت ده»، وَهُوَ الصَّحِيحُ او بعض فقهاء وائی چی په غسل کی واجب ده»

اللهم اغفر لکاتبه ولمؤلفه آمین.

امام طحطاویؒ وائی چې مضمضه او استنشاق سره د سُنت والی پر اوه سنتونو
مشتمل دی ۱ ترتیب یعنی خوله د مخه پریوله او پزه وروسته، ۲ هر یو دری
واره پریوله ۳ نوی اوبه د هری یله د پاره اخستل، ۴ او د وارهډې پر راس
لاس کوی ۵ مبالغه په دوارو کې ۶ دخولې اوبه بیرته تو کل، ۷ پزه پلاس
چپه لاس سونډ کول. **فائده**: چونکه دخولې منافع ډیر وه تر پزې
نو دی سببه مضمضه تر استنشاق د مخ سوله" قالَ المُصنفؒ

## وَتخليلُ اللحيةِ الكثّةِ بكفٍّ مِّن مّآءٍ مِنْ اَسْفَلِهَا

او بل سُنت دا دی داسه گوتی داخلول دی په هغه ږیره کښې چې گنړه وي یعنی پس له
دری وارو پریولو څخه په یوه لپه داوبو دا لاندی دخوا څخه د ږیرې. یعنی یوه
لپه اوبه دی واخلی او لاندی تر ږیری دی گوتې په ږیره کې داخلې کړي
**پُوه سه** چې مروائی چې قول دامام ابی یوسفؒ دی. او صحیح روایت دامام
محمدؒ څخه هم دی. ولې چې په حدیث کې د انسؓ چې ابوداؤدؒ په روایت کړی دی
داسی راغلی دی" کانَ رسُولُ اللهِ صَلَّی اللهُ عَلَیهِ وَسَلَّمَ: یُخَلِّلُ لِحیَتَهُ" او دا
معلومه خبره ده چې ترمذی په شمائلو کې د رسول الله صلی الله علیه وسلم وائی
چې ږیره مبارکه د علیه السلام گنړه وه او ډیره ښیبستان یه وه" او حضرت الامام
الاعظمؒ تخلیل د ږیری فضیلت بولی" قالَ المصنفؒ.

## وَتَخْلِيلُ الاصَابِعِ

او بل سُنت دا دا سه خلالول دی د لاسو
گوتو د لاسو یعنی د لاسو و پښو" لِقَولِهِ عَلَیهِ السَّلامُ: مَن لَمْ یُخَلِّل اَصابِعَهُ
بِالمآءِ خَلَّلَهَا بِالنَّار"

## کیفیت د تخلیل"

د لاسو گوتې دی بعض په بعضو کښی داخلی کړي، او د پښو د گوتو خلالول دا دی



یوه گُته د لاس دی په مابین د گوتو د پښو و وهی: **مسئله** که پښی په جاری
اوبو کښی داخلی کړي بیا تخلیل نه غواړي" مراقی" ط". **مسئله** که څه هم فتاوی
... تخلیل د گوتو د پښو یو خاص کیفیت بیان کړی دی او امام نوویؒ و هغه کیفیت
ته ترجیح هم ورکړې ده. لکن کمال الدین ابن الهمامؒ او ابن امیر الحاجؒ پر هغه
کیفیت رد کړی دی او مطلق خلالول یه خوښ کړی دی. قالَ المُصنفؒ

## وَتَثْلِيثُ الْغَسْلِ

او درې ځله غسل (او غمن) نگه سُنت دی دری واره والی د پریولو یعنی
مخ او د لاسو او د پښو **پـوه سـه** چې په بحر الرائق او نورو کتابو کښی دفقه
دری واره پریوله مستوعب یعنی د ټوله اندام سُنت دی" غیر گو
یعنی وائی چې حتی که یو او دس کوونکی په یوه غبرگه بعض مخ یا لاس یا پښه
یوه یوه پریولی اعتبار نسته" او په بله غبرگه بل حصه
پریوله" او په بله غبرگه یه بل بعض د هغه اندام پریولی. او په بله غبرگه بل حصه
اندام په پریوله" دا دری سره غبرگی دیوه وار پریولو حکم لري" یعنی سُنت نه پر ځای
کیږی" اکثر عوام بلکه بعض بی تقوی ملایان هم دغسی کوی"
**فائده**، اول وار پریوله فرض دی او دوه وار نور سنت مؤکد دی پر
صحیح مذهب" کذا فی السراج واختاره فی المبسوط وایده فی النهر، هکذا قال الطحطاویؒ
**پوهنه**: په حدیث مبارک کی داسی راغلی دي" فَمَنْ زَادَ اَوْ نَقَصَ فَقَدْ
تَعَدّٰی وَظَلَمَ" ترجمه: که چا زیا توب وکړي تر دری وار هغه تر حد مسنون تجاوز
وکړي یعنی گناه کار دی. او که کم والی وکړي تر دری ۳ واره هغه ظلم وکړی پر ځان
... سبب د ډیری پښو ولو د سُنت: په مراقی الفلاح کی وائی اِلَّا لِضَرُورَةٍ"
... د ضرورت څخه دادی چې باکول یه د زړه د اطمنان د پاره وي.
**... فائده** په بعض کتابو کښی د فقه شریفی وائی: که بالاکول د پریولو که
په نیت د" وضوء علی الوضوء" وه نو پروا نه لري. ولې چې
په حدیث شریف کی راغلی دی چې" وضوء علی الوضوء" نور دی. لکن په بحر الرائق کی

وائی چې وضوء علی الوضوء په یوه مجلس کی هلته نو رد ی چې په اول اودس یو عبادت وکړی لکه، لمونځ، سجده تلاوت، مس د مصحف شریف، یا تسبیح، او تهلیل یا نور، ورنه بیله دی. تکرار الوضوء مکروه دی لانه اسراف محض، کذا ذکره الحلبي

قال المصنف وَاِسۡتِیۡعَابُ الرَّاۡسِ بِالۡمَسۡحِ مَرَّةً

اوبل سُنت دا دی کښی ایستل دی د ټوله سر په مسح سره یو وار، یعنی ربع او څلورم د سر څومسح کول یه فرض وه او د ټوله سر مسح کول سُنت دی:

**فائده:** کیفیت د مسح د ټوله سر لکه چې په عنایه کښی د مستصفی څخه په نقل کړی ی دادی، چې د دواړو لاسو دری د پای ګوتی دی پراول حصه د سر کښیږدی او بټه ګوته او په پسی ګوته او ورغوی دی د سره لیری کړی بیادی کش کړی دواړه لاسونه ترڅټه پوری. او بیا دی ورغوی دد واړو لاسو پرتیکو کښیږدی مګر بټه ګوته او ور پسی ګوته هغه سی د سر سرګوښه وی، نو ورغوی دی راکش کړی تر اولی حصی د سر پوری او په دوو بټو ګوتو چې تر اوسه لندې دی ظاهر دغوږو مسح کړی او په دوو نورو ګوتو چې هغه هم لندی دی د ننه غوږونه مسح وکړی

**پوښتنه:** چې دغه کیفیت هلته امکان پذیر دی، چې سر ی تر مسح د مخه لنګوټه یا رنجینه د سره ایسته کړی، او که لنګوټه پورته کړی نو غالبًا یه دګوتو بلل (لندبل) ختم کیږی که څه هم د ورغوو لندوالی به باقی دی. نو مسحه د سر څو پوره سوه. لکن احتیاطًا دی د مسحی **دغوږو دپاره** نوی اوبه واخلی، کذا قال بعض الفقهاء، لکن زیلعیؒ په شرح کی د کنز وائی چې اظهر دا ده چې ورغوی او ګوتی ټولی دې په مقدم د سر کښیږدی او کش دی کړی ترڅټه پوری چې ټوله سر په مسح کښی راسی. او بیادی په هغو ګوتو ظاهر او باطن د غوږو مسح کړی، او قاضیخانؒ هم دغه کیفیت خوښ کړی دی، او زاهدیؒ وائی چې د دغه کیفیت روایت د امام اعظمؒ او د امام محمدؒ څخه سوی دی. او په فتاوای خانیه کښی وائی چې اوبه ورغیو او ګوتو مستعملی نه





تری کی ولی چې سُنت په اداسو. او هغه د مخه کیفیت چې موږ بیان کړی خانیه والا وائی چې هغه تکلیف دی. بلکه کمالؒ وائی: لَا اَصۡلَ لَهٗ فِی السنة، لکن عند الفقیر صاحب فتح القدیر الاول هو الاولیٰ وان کان فیه کلفة، براحتی نرسید آنکه زحمتی نه کشید

**فائده:** مصنفؒ لفظ د، رَاۡس، وویه اشاره ده ودې مسئلی ته چې مسحه پر لنګوټه یا پر خولی کافی نه ده، او د فرضو څخه نه په خلاصیږی،

**سؤال:** په حدیث صحیح کښی راغلی دی چې رسول الله صلی الله علیه وسلم مسحه وکړه پر لنګوټه باندې **جواب** آنحضرتؐ څو مسح پر سر وکړه لکن پر له مستحب لنګوټه باندی لاس تیر کړی د پاره د سمیدو راوی د حدیث چې د لیری څخه یه لاس تیرید نه پر لنګوټه ولیدل ګمان یه داسو چې دا مسحه فرضی وه، کذا قالوا،

دلیل د دی دادی چې مشهوره او متعدد حدیثونه وائی چې آنحضرت صلی الله علیه وسلم: استیعاب ده سرکاوه په مسحه سره، مصنفؒ مرّةً وویله چې تکرار د مسحه د سره سُنت نه دی لکه تکرار دغسل چې سُنت دی. ولی چې لفظ د مسحه اګاهی د تخفیف کوی، تخفیف په یوه وار کښی دی، لکه مسحه د جبیره او یا تیمم، کذا فی فتح القدیر و الخانیه:

نو که یو څوک مسحه د سر دری واره وکړی، په نوی نوی اوبو دا فعل نه سُنت دی او ادب دی په نیز زموږ، کذا فی الطحطاوی، په بحر رائق کښی وائی چې دا خبره اولی ده تر هغه چې په بدائع کښی وائی او په محیط کښی هم چې دا سی فعل مکروه دی. او یا خلاصه والا وائی چې دا سی کوی بدعت دی، په هدایه کښی وائی چې هغه چې په بعض روایا تو کښی راغلی دی چې رسول الله صلی الله علیه وسلم دری واره مسحه وکړه هغه محمول پر دې دی چې په یوه وار او بو سره یه دری واره مسحه وکړه. او دا سی تثلیث شروع دی، کما روی الحسنؒ عن ابی حنیفةؒ کذا فی الطحطاویؒ، قال المصنفؒ

وَمَسۡحُ الۡاُذُنَیۡنِ وَلَوۡ بِمَآءِ الرَّاۡسِ

اوبل سُنت مسحه د غوږو ده که څه هم

په اوبود سروي. ولې چې په حديث شريف کښې راغلي دي چې آنحضرت واخستل يو غرفه اوبه اومسحه دسر اود غوږونو يـې په وکړه:

**پوهـَسـَه**: چې په لفظ کښې د «وَلَوْبِمَاءِ الرَّأْسِ» اشاره ودې خبرې ته دَه که متوضي د مسحې دغوږونو د پاره نوي اوبه وانه خستلې سره ددې چې پرلاس ويـه لندوالي وُو. دا احسن اوبنه کار دی، کذا في المراقي. طحطاوئ وائي که چيرې لندوالي نيستي سوي وُو ددې سببه چې لنګوټه يـې په پورته کړې وَه، نوسنت نه پرځاى کيږي مګر په نوي اوبوسره» وهذا يُؤيد مَاقلنا ان الاول آه. قـَـالَ الْمُصَنِّفُ

# وَالدَّلْكُ وَالْوِلَاءُ

اوبل سُنت منبوول دى دا اندام د پريولو په وخت کښې په لاس سره يعنې چې يوځاى يـه وچ پاته نسي اوبل سُنت داوداسه سره پيوسته اومتصل کول دى د غسل اومسحې په اوداسه کښې. په حديث شريف کې راغلي دي چې آنحضرت صلى الله عليه وسلم مواظبت کړي دئ. پر وَلَاءِ يعنې پيوسته کيدو باندې» مړ د وَلَاءِ معنى داده چې دوهم اندام چې منځ اول اندام بـه نـه وي وچ سوى» **پـوهـَسـَه**: چې دا تعريف هلته اعتبار لري چې هواء معتدله وي اوځاى داوداسه هم معتدل وي او بدن د متوضي هم معتدل وي» که چيرې هواء اووخت دوبئ اوګرمي وي اواندام ژر وچيدى نو د مخه تر وچوالي دا ول اندام د دوهم اندام پريوله خلاف السُنة نه دئ. اويا متوضي پـه يوه ګرمه اطاق کښې اودس تازه کاوه چې پريولى اندام به ژر وچيدى پروا نه لري. اويا د متوضي بدن ډير ګرم وو چې اندام به يـه ژر وچيدى پروا نه لري.

اوکه په يوه ساړه يخ ځاى کى يا د ژمي پـه وخت کى چې پريولى اندام ژر نه وچيدى. اومتوضي پـه پريولو کى د اندامو فصل ډير وکړى مګر سبا هم د مخ پريولى اندام نه وو وچ سوى» دا د سُنت خلاف دى ولې چې وَلَاءِ فوت سوه»

**مسئله**: بعض خلک د مخه تر پښو پريولو مخ اولاسونه وچې وى حکم يـې څه دئ! **جواب** دا کار خلاف د سُنت دى. کذا في المعراج عن الحلواني ط





قال المصنف **وَالنِّيَّةُ** اوبل سُنت داوداسه نيت کول دي. اوقدوري وائي چې نيت مستحب دئ. **پـوهـَسـَه**: چې نيت کول په خوله نه د رسول کريم صلى الله عليه وسلم اونه د صحابه رض اونه د تابعينو څخه اونه د امامانو دين څخه منقول دئ: ولې چې نيت قصد ته ذړه وائي لکن بعض مشائخ وائي چې په خوله دى هم نيت وکړي تا چې خوله او زړه يـه سره برابر سي.

**کيفيت د نيَّت**: داوداسه دا دئ چې قصد مي د زړه څخه د رفع د حدث د ځان څخه. يـا د پاره د لمانځه کولو. اويـا نيت مي داوداسه» **فائـِده** د نيت فائده پـه اوداسه کى ثواب دى. اوکه د څنګولو دا ندامو د پاره سړي اودس وکړي لمونځ به روا دى. لکن دا وداسه ثواب يـه نسته. اوبـايد سړي تر استنجاء د مخه نيت وکړي تاچې ټوله افعال داوداسه يـه د نيت سره سي»

اِلى الحَدِيث» **اوو هابيه**: نيت شرط داوداسه بولي. د ليل يـه هغه حديث بولي چې بخاري يـه پـه اول کښې د خپل کتاب روايت کړي دئ» اِنَّمَا الْاَعْمَالُ بِالنِّيَّاتِ» الحديث» نودوى وائي چې اودس هم يو عمل دئ. **جواب** ددى حديث معنا داده اِنَّمَا ثَوَابُ الْاَعْمَالِ بِـالنِّيَّاتِ، ولې دا ظاهره خبره ده چې وجود د عملو پـه نيت پورې اړه نه لري: قـَـالَ الْمُصَنِّفُ:

# وَالتَّرْتِيبُ كَمَا نَصَّ اللّٰهُ تَعَالىٰ فِي كِتَابِهِ

اوبل سنت داوداسه په ترتيب سره کول دى د افعالو د اوداسو» څرنګه چې تصريح پـه هغه ترتيب کړې ده خداى جل جلاله پـه خپل کتاب يعنې قرآن شريف کښې يعنې قوله تعالىٰ: يَا اَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا اِذَا قُمْتُمْ اِلَى الصَّلٰوةِ، تر اخيره پورې» وقدم من قبل مفصلا

**پـوهـَسـَه**: چې ترتيب سُنت مؤکد دى. پـه صحيح روايت کى د ائمه وو څخه د مذهب اوفرض نه دى ولې چې کلمه د واو عاطفه د پاره د مطلق جمع ده» ترتيب پـه هلته واي چې عطف پـه کلمه د» فـا» واي **سـَوال**: پـه فاغسلوا کښې خو لفظ

دفای عاطفی راغلی دی **جواب** هغه خوفرضیت دمجموع اعضاوو داودا سَره دی په آیت "اِذَا قُمْتُمْ اِلَی الصَّلٰوۃِ" فائده کوی. اوهغه خوپه اتفاق فرض دی نه په مابین کښی دا عضاوو دا اوداسه"

ولې چې ملته خو کلمه د واو عاطفه دَه. امام طحطاویؒ پر مصنفؒ دا سی سَوال کړی دی چې آیت مبارک خو نص او تصریح په ترتیب کی نه دی تکه چې تیره سَوه" بلکه تنصیص پر ترتیب خود فعله ځنه د آنحضرت صَلَّی اللّٰهُ عَلَیه وسلم معلومیږی چې هغه ؐ افعال د اوداسه پر ترتیب مذکور په آیت کښی کړی دی. **جواب** دادی چې کلمه د کاف په دې قول کښی د مصنفؒ "کَمَا نَصَّ" دپاره دَتشبیه ده پس معنا داده چې ترتیب سنت دی تکه تصریح یې په ایت کی کړه سَویدَه" اگرچه د ترتیب سنت والی دَفعل ځنه د رسول کریم صلی اللّٰهُ عَلَیه وَسَلم ثابت دَی. فتامَّل"

**سَوال**: آنحضرت صَلی اللّٰه عَلیه وَسَلم خومَواظبت کړی دی پر ترتیب نو باید چې ترتیب واجب وای. **جواب**: چې بخاری او ابوداؤد روایت کړی دی چې آنحضرتؐ یو وخت تیمم داسی وکړي چې لاسونه یه ترمخ د مخه مسح کړه اوشک نسته چې تیمم او وضوء (اودس) په اتفاق سره په ترتیب کښی یو دي نو چې په تیمم کی ترتیب آنحضرتؐ ونه کړی گویا په اوداسه کښی ترتیب ونه کړی نو مواظبت په وُضوء کښی نسته: کذا قَالُوا: قَالَ المُصَنِّفُ

**وَالْبُدَائَةُ بِالْمَيَامِنِ** اوبل سُنت شروع کول دی په راسته اندام **پُوهسَه**: چې میامن جمع دمَیمنه ده راسته یا رسته پښی ته وَائی. تکه مَیاسَر چې جمع دمَیسرۃ ده چپه اندام ته وَائی قال عَلیه السلام: اِذَا تَوَضَّئُتُمْ فَابْدَؤُا بِمَیَامِنِکُمْ" او دا امر نبوی په اجماع سره دوجوب ځنه مصروف دی. **واوره**: چې تیامن په دوه اندامه کښی راځی تکه دوه لاسونه او دوی پښي. دیوه اندام تکه مخ راسته طرفته اعتبار نسته" او غوږونه که څه هم دوه دي. تکن مسح کول په یوه پلا د علیه السلام ځنه نقل سَوی دَی.





**وَرُؤُسُ الْاَصَابِعِ وَمُقَدَّمِ الرَّأْسِ** اود غه رنگه سُنت دی شروع کول د گوتو د سرونو ځنه یعنی په لاسواو پښو کی، "هکذا ثبت الروایة عن النبی علیه الصلوۃ والسلام" اودا غه رنگه سُنت دی شروع کول د سَر په مسح کی د مخ د خوا ځنه، قَالَ المُصَنِّفُ.

**وَمَسْحُ الرَّقَبَةِ لَا الْحُلْقُوْمِ** او دا غه رنگه سُنت ده مسحه د مغزی د دوو طرفو. ولې چې آنحضرتؐ دا مسحه کړیده ډیر وارونه. او نه ده سُنت مسح دَغاړی بلکه مَراقی وائی چې بدعت دَی

**وَقِيْلَ الْاَرْبَعَةُ الْاَخِيْرَةُ مُسْتَحَبَّةٌ** او بعض فقهاءِ وائی چې څلور اخیر مستحب دی یعنی سنت نه دي. د ډرولش وائی چې اکثره فقهاءُ پیر د ي خَبره دی چې اول دری سُنت دی. او اختلاف یوائی په مسح کی د مرقبه دی.

وَاللّٰهُ اَعلمُ بالصواب والیه المرجع والمآب

**مِنْ اٰدَابِ الْوُضُوْءِ اَرْبَعَةَ عَشَرَ شَيْئًا** دا دابو ځنه د اوداسه څوارلس ۱۴ شَئی دي، **پُوهسَه**: چې ادب او مستحب په معنیٰ کی سره نژدی دي. بعض علماءُ وائی چې دَادب معنیٰ وَرَع او پرهیز گاری دَه. او بعض وَائی چې اَدَب خَصلۃ حمیده ته وائی. او په شرح کښی دهدایه وائی چې ادب هغه فعل دی چې آنحضرت صلی اللّٰه علیه وَسلم لږ وارونه کړي وی او مواظبت یې نه وی کړی: **دادب حکم دادی چې** کوونکی ته یې خدائ ثواب ور کوی او پر تارک باندی عقاب او نه عتاب او نه لوم سته او سنت هغه فعل دی چې رسول کریم صَلی اللّٰهُ عَلیه وَسَلم ډیر ډیر وارونه کړی وی اما بلا عذره یې یو وار یا دوه وَاره پری ایښی وي. د سُنت حکم دادی چې فاعل تی خدای جَلَّ جَلالهٗ ثواب ورکوی او تارک تی که څه هم عقاب داور نسته لکن په وَرَځ د قیامت عتاب او سرزنش ورته سته.

امام طحطاویؒ په شرح کښې د مَراقی وائې. چې ادب ته نفل هم وائی. ولې چې ترفرضو
زياتى شى دى اود نفل د لفظ معنٰى زياتوب دى. او مستحب يه هم بُولى. ولې چې
شارع ؑ خوښ کړې دى. او تطوع يه هم بُولې ولى کوونکى دا کار په خپله خوښه
کوى» ونسب هذا التفصيل الى السيد قدس سرهٗ» قَـالَ المُصنفُ رح

## اَلجُلوسُ فِی مَکَانٍ مُّرتَفِعٍ اولړ ناسته ده په وخت کښې

داوداسه پر يو لوړ ځاى. دد يے حکمت دا دى چې هغه مُستعملې اوبه کړغم مردارې
نه دې. دده پړيدن يا کالو ونه لويږى.

## وَاسْتِقْبَالُ الْقِبْلَةِ

. اووهم ادب داوداسه مَخامخ کښينستل مخ پر
قبله شريفه لکن په غيرکې دحال داستنجاء» ولى په اوداسه کښې لبعض اذکارو او
دعاگانى ويل کيږى او استقبال دَقبلى د هغو په قبليدو کښې ښه تاثيرلري «م،ط»

## وَعَدَمُ الْاِسْتِعَانَةِ بِغَيْرِهٖ

اوديم ادب کهمک نه غوښتل دې اد بَل چا نه په داود اسه په وخت کښې
لکن دا هلته چې متوضی لره عذر دَسپين بزرتوب يا عذرد ناجوړى نه وى» د دې حکمت
دا دى چې اودس عبادت دى عبادت چې سړى په خپله بې کهمکه د چا وکړې ښه دَى

## پُوښتنه

: چې امام طحطاویؒ د کرمانى شارح البخاریؒ نه نقل کړي» لَاکَرَاهَةَ
فِی صَبِّ المَآءِ» هيڅ کراهت نسته په توييَولو کښې د اوبو ومتوضی ته او نه
دا صحيح ده چې دا کار خلاف الاولٰى دی؛ ښيا کرمانیؒ ډيرحديثونه صحيح راوړي
دې چې نبى عَليه السّلام ته د اوداسه په وخت کښې ډيرو صحابهؓ اوبه وَرتوى کړې
دي» او کرمانیؒ هغه احاديث چې پرنَهى دلالت کوى ضعيف گنړلى دیٔ» او کرمانیؒ
وائى چې د هغو کسانو نه چې کُهمک بې په اوداسه کښې د بَل نه غوښتی عثمانؓ
وو او ډير لوړ لوړتا بعينوؒ هم دا غسى کړى دیٔ. وهکذا فى العينى على البخاري.
عاصى وائى کچيرې متوضى دتکبر او تجردلارې د کُهمک غوښتونکى وو لکه بعض پيران





ددى زمانى هغه بلا شکه مکروه او خلاف الاولٰى» قَـالَ المصنفُ

## وَعَدَمُ التَّکَلُّمِ بِکَلَامِ النَّاسِ

اوداود اسه په وخت کښې دخلکو خبرې دى نه کوى لکه
بعض جاهلان چې اوداسه په وخت کښې پرځاى دا ذکارو باندارسرم کوى.

## وَالْجَمْعُ بَيْنَ نِيَّةِ الْقَلْبِ وَفِعْلِ اللِّسَانِ

او بل ادب دا وداسه جمع کول دى په مابين کې دَ نيت (وقصد دَزړه) او په مابين کې
دفعل د ژبې. لکه چې و وائى: نيت مې دى داوداسه د پاره د لمانځه مثلًا، په مراقى کې
وائى چې داسى کول عزيمت دیٔ. قَــالَ المُصنفُ

## وَالدُّعَآءُ بِالْمَاثُوْرِ

او هغه دعاوى دى کوى چې منقول وى يعنى دَنبى
عليه السّلام او صحابهؓ وو او وتا بعينوؒ نه

## پُوښتنه

: چې ابن اميرالحاجؒ وائى چې
کوم دعاگانې چې فقيه ابى الليث السمرقندیؒ په خپله مقدمه کښې نقل کړې دي د
عليه السلام نه د پريوَلو. سره د اعضاوو يا دسر د مسحى سره هغه صحيح دى او که نه. دا
پوښتنه زمونږ د استاذ الشيخ الحافظ شهاب الدين ابن حجر العسقلانیؒ نه يوچا
وکړه. نو حافظ ابن حجرؒ جواب وَرکړې چې هغه ټوله ضعيفه دى. او علماء حضرات
په فضائلو کښې د اعمالو ضعيفه حديثونه هم راوړى. ابن حجرؒ وويله چې په
دى باره کښې نه قول او نه دَفعله نه د آنحضرتؐ کوم دعا ثابته سوى ده» امام طحطاویؒ
وائى چې تر نسبت د دغو دعاگانو وَ آنحضرتؐ نسبت د هغو و سَلفو صالحينوؒ ته
ډير ښه دیٔ. ولى چې د خطر نه دَ» مَنْ کَذَبَ عَلَيَّ مُتَعَمِّدًا فَلْيَتَبَوَّأْ مَقْعَدَهٗ
مِنَ النَّارِ» به خَلاص وى» او په فتاوٰى هنديه کښې وَائى چې نه دى پر صحيح
ثبوت رسيدلى شئ د دعاگانو نه مگر شهادتين پس له فراغ نه د اوداسه
کذا نقل السّيد عن النهر

درویش وائی: چې د دې مطلب دا دی چې په اودا سه کښې دې دعاوې نه کوې بلکه مقصد دا دی چې معین شئ ثابت نشته. لهذا نو متوضی لره اختیار دی» هره دعا او ذکر به هر ژبه چې وي» په اودا سه کښې دې کوي. تا چې عبادت فعلي دعبادت قولي سره ملگرې سي» و بهذا آخذ و افتی» فـقـال المصنف

## وَالتَّسْمِيَةُ عِنْدَ كُلِّ عُضْوٍ

اووېل ادب بِسْمِ الله وېل دي په وخت کښې دپریولو یا د مسحې د هر اندام» فقیر وائي چې د جامع دعا گانو څخه او په اختصار عين کې دا دعا ده: اَللّٰهُمَّ اَعِنِّيْ عَلٰى ذِكْرِكَ وَشُكْرِكَ وَحُسْنِ عِبَادَتِكَ» فـقـال المصنف

## وَاِدْخَالُ خُنْصَرِهٖ فِيْ صِمَاخِ اُذُنَيْهِ

اووېل ادب داودا سه داخلول دي د ځچېرو گوتو په شپیلی کښې د غوږو کې. د پاره د مبالغې په مسح کښې د غوږو.

**ښـهـانه فائده:** مصنف په مراقی کښې او امام طحطاوي په شرح دهغه دعا گانو ذکر کړی دي. د خولې پریولو په وخت کې بِسْمِ اللهِ اَللّٰهُمَّ اَعِنِّيْ عَلٰى تِلَاوَةِ الْقُرْاٰنِ وَذِكْرِكَ وَشُكْرِكَ وَحُسْنِ عِبَادَتِكَ» د پزې پریولو په وخت کې بِاسْمِ اللهِ اَللّٰهُمَّ اَرِحْنِيْ رَائِحَةَ الْجَنَّةِ وَلَا تُرِحْنِيْ رَائِحَةَ النَّارِ»

د مخ د پریولو په وخت کې: بِاسْمِ اللهِ اَللّٰهُمَّ بَيِّضْ وَجْهِيْ يَوْمَ تَبْيَضُّ وُجُوْهٌ وَّتَسْوَدُّ وُجُوْهٌ» د راسته لاس د پرې ولو په وخت کې» بِاسْمِ اللهِ اَللّٰهُمَّ اَعْطِنِيْ كِتَابِيْ بِيَمِيْنِيْ وَحَاسِبْنِيْ حِسَابًا يَّسِيْرًا» د چپه لاس د پریولو په وخت کې» بِاسْمِ اللهِ اَللّٰهُمَّ لَا تُعْطِنِيْ كِتَابِيْ بِشِمَالِيْ- وَلَا مِنْ وَّرَآءِ ظَهْرِيْ. د سر د مسحې په وخت کې» بِسْمِ اللهِ اَللّٰهُمَّ اَظِلَّنِيْ تَحْتَ ظِلِّ عَرْشِكَ يَوْمَ لَا ظِلَّ اِلَّا ظِلُّ عَرْشِكَ.

د غوږو د مسحې په وخت کې بِاسْمِ اللهِ اَللّٰهُمَّ اجْعَلْنِيْ مِنَ الَّذِيْنَ يَسْتَمِعُوْنَ الْقَوْلَ فَيَتَّبِعُوْنَ اَحْسَنَهٗ» د مسحې د رقبې په وخت کې: بِاسْمِ اللهِ اَللّٰهُمَّ اَعْتِقْ رَقَبَتِيْ مِنَ النَّارِ» د راسته پښې د پریولو په وخت کې: بِاسْمِ اللهِ اَللّٰهُمَّ ثَبِّتْ قَدَمِيْ





عَلَى الصِّرَاطِ يَوْمَ تَزِلُّ الْاَقْدَامُ» د چپه پښې پریولو په وخت کې: بِاسْمِ اللهِ اَللّٰهُمَّ اجْعَلْ ذَنْبِيْ مَغْفُوْرًا وَّسَعْيِيْ مَشْكُوْرًا وَّتِجَارَتِيْ لَنْ تَبُوْرَ» او چې او دس خلاص سي دا سې به و وائي: اَشْهَدُ اَنْ لَّا اِلٰهَ اِلَّا اللهُ وَاَشْهَدُ اَنَّ مُحَمَّدًا عَبْدُهٗ وَرَسُوْلُهٗ اَللّٰهُمَّ اجْعَلْنِيْ مِنَ الْمُتَطَهِّرِيْنَ» فـقـال المصنف

## وَتَحْرِيْكُ خَاتَمِهِ الْوَاسِعِ

اووېل ادب دا ودا سه ښورول دي په گوته کښې دهغې گوتمې چه فراخه وي **پـوه سـه**: چې مصنف خاتم الواسع و وېل د دې جهته چې ترفراخه خاتم لاندې او به ننوزي نو فرض د پریولو یه فرځای کیږي. اما بیا هم ښورول په احتیاطًا مستحب دی او که گوتمې تنگه وه نو که او به لاندې نه وه رتلې ښورول یه فرض دی، تا چې لاندې تر گوتمې پریوله سي. او که او به سره د تنگوالی ورتلې بیا یه ښورول تینگ مستحب دی.

**شِکایَت** اکثره ښځې دونه تنگی گوتمې په گوته کوي چې په صابونه ځای ته ورولې هیڅ په گوته کښې نه ښوري. بیله ډیر مشقته او ښځې هغه هم نه کوي. نو د غسې ښځو نه او دس روا دي او نه ئې غسل روا دی، چې او دس او غسل نې صحیح نو لمونځونه یه هم نه دی صحیح په اتفاق د ټولو مذهبو»

**تردې عجب کار:** لعض پلیشینی نران هم د سرو زرو گوتمې په گوته کوي او دوی تنگه وي چې په غوښه کی د گوتې الغه د گوتمې ننوتلی وي. د دغو نرانو هم نه او دس او نه غسل صحیح دی بلکه نرته د سرو زرو گوتمې نا روا ده» البته د سپینو زرو گوتمې تر یوه مثقال کمه په وخت کښې د ضرورت ورته روا ده چې آنحضرت صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د سپینو زرو گوتمې د پاره د مهر کولو د خطو چې خارجي پادشاهانو ته بې استول په گوته کړیده او نقش یه دا سې وو»

لویه خدایه شفاعت ستا د حبیب
سخته ورځ کې د محشر کړې را نصیب

حقر حقاني غزنوی

الله
رسول
محمد

## وَالْمَضْمَضَةُ وَالْاِسْتِنْشَاقُ بِالْيَدِ الْيُمْنٰى

اووغم زنګه مستحب دی په خوله اوبه لغړول. او په پزه په راسته لاس سره دجهت دشرافت دمضمضه او استنشاق.

## وَالْاِمْتِخَاطُ بِالْيُسْرٰى وَالتَّوَضُّوءُ قَبْلَ الْوَقْتِ لِغَيْرِ الْمَعْذُوْرِ

اوپزه سنړګول دی په چپه لاس مستحب دی. ولې چې داهانت کار دی نو چپه لاس ورسره مناسب دی. اوبل ادب داودا چه اودس تازه کول دی د مخه تر وخت د لمانځه د دخول، لکن غیرله معذور سړي څخه.

**پوهسه:** چې معذور سړي هغه بولي چې هیڅ وخت د لمانځه بیله بې اودسیانه پرتیږي. اقسام د عذر ډیر دي. یا ښځه مستحاضه وي یعنی بیله حیضه وینې څندی بهیږي. یا سړي پریوځای تبې لري چې وینه پوره وخته لمانځه نه دریږي. یا په دنس څخه بادونه همیشه وزي. او یا یه بولې ایله وي اونه دریږي» وغیره

**دمعذور حکم دادی:** چې هر لمانځه ته به نوی اودس تازه کوي. لکن اختلاف په دی کښې دی چې دده زوړ اودس څه وخت ماتیږي. دامام اعظمؒ اوامام محمدؒ په نیز په وتلو دوخت دده مخه لمانځه. او په نیز دامام زفرؒ په دخول دوخت د لمانځه. او په نیز دامام ابی یوسفؒ په وتلو دوخت او په دخول دوخت په دواړو سره دمعذور اودس ماتیږي،» **ددی اختلاف فائده**،» که معذوره سړي که د مخه تر زوال لمانځه دیاره اودس تازه کړي چې دماپښین وخت داخل سو» دده زوړ اودس نه دی مات په نیزد طرفینؒ ولې چې خروج د فرضی لمانځه دوخت نه دی راغلی چې د لمانځه څخه تر زوال پورې داوخت مهمل دی بلکه پرده دخول د فرضی لمانځه دوخت راغلی او په دخول دوخت اودس دده نه ماتیږي عِنْدَهُمَا. او په نیز دابی یوسفؒ او زفرؒ اودس ددی سړي مات سو. ولې چې دخول دوخت پر راغلی»

نو نه وب په نیزدي دغه معذور احتیاطًا اودس نوي تازه کړي چې دا اختلاف څخه ووزي،» نو نتیجه داسوه چې معذور سړي لره په قبل الوقت اودا سه کښې فائده نشته





اوکه وخت مهمل نه وی لکه ماز دیګر د لمانځه دپاره چې دماپښین په وخت کی اودس تازه کړي نو دغه اودس دده په دخول دوخت د ماز دیګر په اتفاق سره مات سو چې هم خروج دوخت او هم دخول دوخت پر راغلی» قَالَ الْمُصَنِّفُ

## وَالْاِتْيَانُ بِالشَّهَادَتَيْنِ بَعْدَهٗ

اوبل ادب دا اودا سه راتګ دی یعنی ویل دی ددوو کلمه شهادتینو وروسته تراوداسه. لکن په مراقی کښې وائي چې شهادتین دی په ولاړي مخامخ وقبلی ته ووائي. په صحیح حدیث کښې راغلی دی چې آنحضرت صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ویلی دي، مَا مِنْكُمْ مِنْ اَحَدٍ يَتَوَضَّأُ فَيُسْبِغُ الْوُضُوْءَ ثُمَّ يَقُوْلُ اَشْهَدُ اَنْ لَّا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ وَاَنَّ مُحَمَّدًا عَبْدُهٗ وَرَسُوْلُهٗ» وَفِي رِوَايَةٍ» اَشْهَدُ اَنْ لَّا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ وَحْدَهٗ لَا شَرِيْكَ لَهٗ اٰه اِلَّا فُتِحَتْ لَهٗ اَبْوَابُ الْجَنَّةِ الثَّمَانِيَةِ يَدْخُلُهَا مِنْ اَيِّ بَابٍ شَاءَ» **ترجمه** قَوْلُهٗ فَيُسْبِغُ آه اي يكمله باداء الفرائض وَالسُّنَنِ وَالْاٰدَابِ» قوله فُتِحَتْ آه كنايةٌ عن حسن القبول عنده» وانه ان مات دَخَلَ الْجَنَّةَ» وَلِنِعْمَ مَا قِيْلَ» به بهانه می بخشد» وبه بهانه می بخشد» قَالَ الْمُصَنِّفُ

## اَنْ يَّقُوْلَ اَللّٰهُمَّ اجْعَلْنِيْ مِنَ التَّوَّابِيْنَ وَاجْعَلْنِيْ مِنَ الْمُتَطَهِّرِيْنَ

اوداسی دِ ووائی خدایه ما وګرځوی د توبه کوونکو څخه یعنی د ګنهو څخه،» تَوَّابٌ» صیغه د مبالغی ده. او وګرځوی د هغه کسانو څخه چې د ګنهو څخه پاک کړه سوی دی.

**پوهسه:** چې د توبې معنیٰ ده رجوع په لغت کې. نو که صفت د بنده وی معنا یه رجوع ده د ګناه څخه. او چې صفت د خدای تعالیٰ واقع سي معنا یه رجوع ده د عذابه څخه وانعام ته،» لِاَنَّ التَّائِبَ مِنَ الذَّنْبِ كَمَنْ لَّا ذَنْبَ لَهٗ» كما جاء في الحديث النبوي

## وَاَنْ يَّشْرَبَ مِنْ فَضْلِ الْوُضُوْءِ قَائِمًا

اوبل ادب دادی چې پس له اوداسه دی وچښی بالا بوده داوداسه په ولاړي، ولې په صحیح حدیث کښې راغلی دی

چې رسُول الله صَلی الله عَلیه وَسَلم وَچینلی فاضِله اوبه د اوداسه په وَلاړې.
اودغه رنګه د زمزم اوبه په هم ولاړې چَښلی دي. د دې دوو ځایو نه ماسوا
داوبو چښل په وَلاړې مکروه تنزیهي دي. لقوله عَلیه السلام: وَلَا یَشرِبَنَّ
اَحَدُکُمْ قَائِمًا فَمَنْ نَسِیَ فَلْیَسْتَقِئْ» ترجمه: هرګز دې نه چَښي یو تا سې او بهر په
ولاړې او که د چا هیر وي (او به یې په ولاړې وَچښلی نو هغه دې قئ کړي.
**پوهـه**: چې مقصود مبالغه ده په نهي کښې د چښلو داوبو په وَلاړې وَرنه
قئ کول لازم نه دي.

## بقیّةُ الآداب

۱ اودَس دِ تازه کوي په هغو اوبو چې په لمر تودې سوي وي. په حدیث شریف کې
راغلي دي چې یو وخت بي بي عائشه رض اوبه په لمر تودې کړې وې، نو آنحضرتؐ
ورته وو یل: لَا تَفْعَلِيْ یَا حُمَیْرَا فَاِنَّهٗ یُوْرِثُ الْبَرَصَ» یعني داسې مه کوي.
ولې چې د دې د استعمال نه پیس پیدا کیږي. ۲ د ځان داوداسه د پاره دې یو خصوصي
لوښی نه تعیین کوي چې بل چا ته د هغه د استعمال اجازه نه وي. ولې چې د علیه
السّلام د دین بناء پر سهُولت ده» ۳ په زوره دې اوبه پر مخ نه پاشي ۴ مخ او لاس
دِ په دسمال وَغیره نه اوچوي. اوکې اوچول نو ډیره مبالغه دِ نه پکښې کوي.
**فـائـده**: مصنفؒ ترك التجفیف ادب وبولی» او په بعض کتابو کښې د فقهې
وائي چې تجفیف مکروه دی. دا قول د احادیثو او د مذهب نه بیخي خِلاف دی» إذ
قَدْ رُوِیَ عَنْ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلی اللّٰهُ عَلیهِ وَسَلم اِنَّهٗ فَعَلَ ذالِكَ ای التجفیف»
وَقال الامام محـمّدٌ وبهٖ نأخذ وَلا نری بذالِك بأسًا. وَفی الخانیة لَا بأس للمتوضی
والمغتسل ان یتمَسح بالِمندیل»
لکن مفتیٰ به مذهب دا دی چې استعمال د دسمال خو روا ده نه لري مګر دې په مبالغه
په وُچولو کې دا عضاوو دي نه کوي بلکه پرا نداموِ دی څه لندوالی داوداسه پرېږدي.
**مسـئـله**: دا بیان په ثبوت کښې دی اوَد مرې وچول په دسماله یا په کَمَرتوکړه.





په نیز رمونږ مستحب دی سبب یه دادی چې کفنونه یه لاندې نه سي چې دا د مړي
کنزا فی الطحطاوی شرح المراقی ص۱۳
په باره کښې مثلث دی» کنزا فی الطحطاوی شرح المراقی ص۱۳
په باره کښې مثلث دی. چې په حَدیث صحیح کښې رَاغلی دی چې ملکی
۵ داوداسه لوښی دې د خاورې وي. ۶ لاستئ د هغې کوزې دې
زیارَت د هغه کور کوي چې لوښي یه د خاورې وي ۷ او لوښی دې پر چپه طرف کښېږدي. ۸ او لاس چَل
درې وَاره پر یولي» ۹ دستر ګوپر کنجانو
دې پر لاستې د کوزې کښیږدې پرخوله دې نه وراندې. ۹ دستر ګوپر کنجانو
دې په فکر کوي چې وچ پاته نه سي. او د ګتمی لاندې ځای ته دې هم متوجه
وسې په پر یولوکې. ۱۰ او لاسونه او پښې او مَخ دِ تر فرضي قدر بالا مینځي یعنې
لاسونه دې تر څنګلو بنه لوړ پورې مینځي او پښې دې تر بجلکو لوړې او د مخ تر
اندازې بالا پورې مینځي. ولې چې په یوه طویل حَدیث کښې په روایت دَ
بخاري رسول کریم صلی الله علیه وَسلم فرمائې: چې زما د اُمت علامه په وَرځ د
قیامت داده چې مخان به ئې سپین وي لاسونه او پښې بې سپینې وي» د سببه
څخه د اوداسه» نو اودس کوونکي دې نه سپین والی دا نداموخپل زیات کړي.
۱۱ پس له اوداسه دې سُورَة القدر یو وار یا دوه وَاره یا درې واره تلاوت کړي.

## فَصْلٌ

دا فصل په بیان کې د مکروهاتو داوداسه دی.

## قَالَ المُصنفؒ وَیُکْرَهُ لِلْمُتَوَضِّیٔ سِتَّةَ اَشْیَآءٍ

او مکروه دي واودس تازه کوونکي ته شپږ شیان. په مَراقي الفلاح کښې
وَائې چې مکروه ضِد د» مَحْبُوبٌ» دی. او امام طحطاويؒ وائې چې مکروه په
نیز د فقهاوو دوه قسمه دی. مکروه تحریمي: چې حرام ته نزدې وي او پرېښول

دمکروه تحریمي واجب دی. او پر ترک یې ثواب دواجب ور کول کیږي، کذا في فتح القدیر
او په فقه شریفه کښې چې مکروه مطلق ذکر شي هم دغه مکروه تحریمي څنګه
مراد وي"
او مکروه تنزیهي هغه کار ته وایي چې پر ېښنول یې ترکولو ښه وي او ثواب لري، بحر
الرائق وایي چې مکروه تنزیهي تر حرام وحلال ته نزدې دي، کذا في البرهان، قال

**اَلْاِسْرَافُ فِي الْمَاءِ** يو مکروه د اوداسه تر حد تجاوز کول دي. په تویولو کښې د اوبو: په حدیث صحیح کښې راغلی دي
چې رسول الله صلی الله علیه وسلم هلته تیریدی. چې سعدؓ اودس تازه کاوه نو
علیه السلام ورته وویل "ماهذا السرف یا سعد"، دا څه اسراف کول دی ای سعد"
سعدؓ وویله آیا په اوداسه کښې هم اسراف شته"! آنحضرتؐ ورته وویل
هو شته. که څه هم د جاري ولې پر غاړه اودس تازه کوې"

**درویش وائي:** چې د دې حدیث څخه دا معلومه شوه چې دغه څا شعر غلط دی چې
وائي ـ ورتوا ـ خواجه برلب جوئی: نیست اسراف هرچه می شوئی: وفي فتاوى الحجة"
یکره صب الماء في الوضوء زیادة علی العدد المسنون، والقدر المعهود" یعنی مکروه
دی تویول د اوبو په اوداسه کې بالاتر قدر مسنون چې درې واره دی او تر هغه قدر"
چې په شرع کې معلوم دی" په صحیح حدیث کې راغلی دي "شرار أمتي الذين
يسرفون في صب الماء" یعنی بد د امتیانو زما هغه کسان دي چې اسراف کوي په تویولو
کښې د اوبو: نو ځکه په درمختار کښې وائي چې اسراف مکروه تحریمي دی که څه هم پر
نهر جاري اودس تازه کوي:

**مسئله:** اسراف چې مکروه دی، په جاري اوبو کښې دی او پاد سرې خپلې مملوکې
اوبه وي او که چیرې وقفي اوبه وي پر طهارت لکه دا اکثرو مسجدو د پاکستان پس په
هغو کښې اسراف کول حرام دی" ح ج.

الناشر والطابع من مكتبة القراءت والتجويد بشارع كانسي كوئته





او هم دارنګه مکروه
**وَالتَّقْتِيرُ فِيهِ وَضَرْبُ الْوَجْهِ بِهِ** دی کمي کول په
اوبو کښې د اوداسه یعنې چې پر یولو مسح ته نزدې وي، وجه د کراهت یې فوت والی د سنت دی" او بل مکروه وهل دی
مخ په اوبو سره یعنې په سختۍ سره" وجه د کراهت په شراوت د مخ دی نو په
رفق (نرمۍ) سره یې په پریولو کښې ښه کار دی. **پوه سه:** چې دا فعل مکروه
تنزیهي دی" کما في الدر المختار، او بله وجه د کراهت یه داده چې په شرف سره اوبه
پاشل پر هر اندام چې وي د مستعملو اوبو نشر دی پر کالو وغیره. او شك نسته چې
د مستعملو اوبو څخه ځان ساتنه ښه کار دی"، د دې دلیله څخه دا معلومیږي چې
تخصیص د مخ په متن کښې په اعتبار د عادت د بعض عوامو دی. ورنه حکم عام دی:

**مسئله:** په اوداسه کې دې سرې سترګې نه پټوي په داسې ډول چې اطراف
په سره ورسي"، او نه دې خوله ډیره ټینګه ښي چې هغه سره حصه یه پټه سي"
ولې چې کنجانو ته د سترګو یا سري حصې ته د شونډانو اوبه رسول فرض دی او
پریولو یه واجب دي حتی که یو ځای د دغو څخه هم پاتې سي اودس یه نه دی صحیح
حلبي، طحطاوي"، قال المصنف

او هم دارنګه خبرې کول په خبرو د خلګو
**وَالتَّكَلُّمُ بِكَلَامِ النَّاسِ** ابن امیر الحاج وائي چې د خبرو په سبب
د دعا ګانو څخه مشغول کیږي. **فائده:** مکروه والی د خبرو هلته دی
چې ضرورت د خبرو نه وي، او که ضرورت وي بیا مکروه نه دي" قال المصنف

او د غه رنګه مکروه
**وَالْاِسْتِعَانَةُ بِغَيْرِهِ مِنْ غَيْرِ عُذْرٍ** دی کمك د
بل څخه غوښتل په اوداسه کې. لکن چې بیله عذره وي" قالوا ... إن الضرورة
تبيح المحظورات" لکه چې سړی ناجوړ وي یا د پرسپین بزیري وي"، او امام
ویري وائي: چې استعانة بالغیر پرواه نه لري" ولې یو خادم د آنحضرت صلی الله

عليه وسلم ته اوبه ورتويولي: وَقدمر تفصيل هٰذه المسئلة قُبيل هٰذا.

## وَتَثْلِيْثُ الْمَسْحِ بِمَاءٍ جَدِيْدٍ

اودغه رنګه مکروه دی درې واره سرمسح کول په نوو اوبو...

# فَصْلٌ

## اَلْوُضُوْءُ عَلٰى ثَلٰثَةِ اَقْسَامٍ

اودس پر درې قسمه دی.

**پوهه سه**: چې اسم عدد پر حصر دلالت نه کوي. نو دا سوال نه وارديږي چې اودس ګاهې مکروه وي لکه اودس پر اودس چې داول اودس مجلس په بدل کړي اويا يې په اول اوداسه کوم عبادت نه وي کړی. او ګاهې اودس حرام وي لکه د بل چا په ملکي محروز اوبو بيله اجازې د مالك

## اَلْاَوَّلُ فَرْضٌ عَلَى الْمُحْدِثِ لِلصَّلٰوةِ وَلَوْ كَانَتْ نَفْلًا وَ

اول قسم د اوداسه فرض دی پر بې اودس سړي د پاره د لمانځه لعني چې د لمانځه کولو اراده وکړي که

## لِصَلٰوةِ الْجَنَازَةِ وَلِسَجْدَةِ التِّلَاوَةِ وَلِمَسِّ الْقُرْاٰنِ وَلَوْ اٰيَةً

څه هم هغه لمونځ نفلي وي. اودغه رنګه فرض دی د پاره د جنازې د لمانځه او د پاره د سجدهٔ تلاوت او د پاره د مسه کولو د قران شريف که څه هم يو ايت وي، او که څه هم دا ايت پر ديوالي نوشته وي

**پوهه سه**: چې مراد د فرضه څخه هغه دی چې په دليل قطعي ثابت وي، وهو قوله تعالى: يَا اَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا اِذَا قُمْتُمْ اِلَى الصَّلٰوةِ» **پوهه سه**: چې مراد د قيام څخه اراده د شروع په لمانځه ده. نه ضد د ناستې چې ولاړه يې په بولي. په قرينه د دې چې لمونځ پر ناستې هم روا دی نفلي خو مطلقًا او فرضي په وخت د عذر کښې.



**فائده**: صلوة جنازه يه عليحده ذکر کړې. که څه هم د لمانځه اطلاق پر کيږي د دې سببه چې کامل لمونځ نه دی ولې رکوع وسجده په کښې: او سجدهٔ تلاوت که څه هم په عرف کې لمونځ نه بولي. لکن په اتفاق د مذاهبو» يشترط لهاما يشترط للصّلوة» قال المصنف

## وَوَاجِبٌ لِلطَّوَافِ بِالْكَعْبَةِ

او بل واجب اودس دی چې د پاره د طواف پر کعبه شريفه دی» په صحيح حديث کښې راغلی دی» اَلطَّوَافُ حَوْلَ الْبَيْتِ اى الكعبة مثل الصلوة اِلَّا انكم تتكلمون فيه الحديث: ترجمه: طواف پر شا وخوا د کعبې په مثل د لمانځه دی، مګر دا قدر فرق دی چې په طواف کې خبرې روا دي تر پايه د حديث او لمانځه کښې خبرې نه دي روا» قال الفقهاء» اِذَا طَافَ که طواف وکړي يو سړي طوافِ فرضي يعني طواف د زيارت په بې اودسۍ يا سر پرهنه باندې. پس يا بونه وغيره د دی جنايت په سبب سر لازم دی. او که طوافِ فرضي په جنابت سره وکړي پرهنه اوښ حلالول لازم دی. د دې جنابت د کبله. او که طواف واجب لکه طواف وداع او يا نفلي طواف يې په بې اودسيا وکړي. نو کم از کم نيمه کاسه غنم يا يوه کاسه خرما د خيرات کړي او که دغه دوه طواف په جنابت وکړي بيا دم پر لازم دی ط.

## وَالثَّالِثُ مَنْدُوْبٌ لِلنَّوْمِ عَلَى الطَّهَارَةِ وَاِذَا اسْتَيْقَظَ

او دريم اودس د پاره د خوب مستحب پر پاکوالي باندې. او هغه وخت چې ويښ سي هم اودس مندوب

## مِنْهُ وَلِلْمُدَاوَمَةِ عَلَيْهِ وَلِلْوُضُوْءِ عَلَى الْوُضُوْءِ

دی د پاره د هميشه توب پر اوداسه او د پاره د اوداسه پر اوداسه - **پوهه سه**: چې اودس پر اوداسه هله مندوب دی چې په اول اوداسه يې يو عبادت مقصوده کړي وي،» وَاِلَّا فَهُوَ اِسْرَافٌ» ط.

**مَسْئَلَه** اودس پر اودس کول خو ثواب کار دی. اما غسل پر غسل يا تيمم پر تيمم کول

عبث کار دی کذا فی مراقی الفلاح» **فَائِدَه**: اودس مستحب دی دَپاره دمسح کولو
دکتب شرعیه وو لکه فقه احادیث او عقائد۔ دپاره د تعظیم دَدغو علومو: امام سرخسی
یوه شپه د فقهی شریفی دکتاب مطالعه کوله چې ناڅاپه دَنس درد ورته پیښ شو
چې اودس ماتولو ته مجبور کړی نو یه اودس مات کړی او بیا یه اودس بتازه کړی
درد باقی وو حتیٰ چې اولس واره یه اودس تازه کړی۔
او امام حلوانیؒ به خالی کاغذ هم بې طهارته نه اخستی، دَرُوِلش وَائی فهذا هو الادب الکامل
**مسئله**: په دُرر کښې وائی چې دَپاره دمسحی دکتابو د تفاسیرو اودس واجب دی
کی تفسیر تر قران څه هم دیر وی لکه روح البیان، بیضاوی، وغیره۔
**نکته**: بعض مطالعه کوونکی دکتابو د تفاسیرو په وخت کښې د مطالعې پښکې
واچوی او مطالعې ته ادامه ورکړي **مسئله**: د تفاسیرو دکتابو
د قرانٔ دتورو د مسح دَپاره اودس او طهارت فرض دی۔ او د تفسیر د تورو د پاره اودس
واجب دی. پر رأی د صاحب الدر، او فتوی پر دی دَه چې مندوب دی۔ او د بیاض مسح
پر بې او د سپارو اده او د قرانٔ شریف بیاض په حکم کی د قرانٔ دی مسحه یه پر بې او د سپارو
مندوب

## وَلِبَعْدَ غِیْبَةٍ وَکِذْبٍ وَنَمِیْمَةٍ وَکُلِّ خَطِیْئَةٍ

او د هر رنګه اودس مندوب دی وروسته تر غیبت دیو چا، او وروسته تر دروغو، او وروسته
تر شیطانت او وروسته تر هری صغیری ګناه. **فَائِدَه**: غیبت دا دی چې
دیو مسلمان نریا شخې بیان کوی په هغه کار سره چې هغه یه اظهار بد بولي. غیبت
کبیره ګناه ده دا هلته چې هغه عمل به هغه مسلمان کښې وی. او که دی سړې دروغ پرې
وتیله هغه ته بهتان وائی. او بهتان تر غیبت اشد دی. او ویل سوی دي چې غیبت
اشد دی تر زنا، درولیش وائي چې د غیبت بلکه دَتولو کبیره او صغیره ګناهو تفصیل
او دلائل او حکایات، نهایه عربی کتاب مواعظ الایوبي القسم الاول کښې مطالعه کړئ

اَللّٰهم اغفر لمؤلفه ولمترجمه ولکاتبه ولوالدیهم اجمعین





## ... ځای دَرواغ روادي

: او دروغ نه دی روا مګر په دغو ځایو کی ۱ د
میړه دروغ و مایني ته دهغی دَخوشحالی دَپاره
دوو کسانو د خوشحالی دَپاره ۲ د مظلوم د ظالم څخه د خلاصید و دَپاره»، او نور دد
... په څه چی وي»، او نمیمه رسول دی د خبرې دیوه سړي و بل سړي ته په نیت دَفساد»
**مسئله**، د اودس په تازه کولو سره صغیره ګناه بخښل کیږی» مر» او د کبیری ګناه
... لن نه بښل کیږي»، قال المصنفؒ

## وَلِاِنْشَادِ شِعْرٍ وَقَهْقَهَةٍ خَارِجَ الصَّلٰوةِ

او پس له ویلو ... څخه دَبدی
... او پس له په زوره خندلو د باندې تر لمانځه: او په لمانځه کښې خو اودس هم بیماتیږی
او پس له غسل ورکولو دَمړي و غاسل ته اودس مندوب

## ... غُسْلِ مَیِّتٍ وَحَمْلِهٖ

دی. او پس له جنازې دَګلو سره دَمیت هم اودس
مندوب دی» په صحیح حدیث کښې راغلی دي»، مَنْ غَسَّلَ مَیِّتًا فَلْیَغْتَسِلْ وَمَنْ حَمَلَهٗ فَلْیَتَوَضَّأْ،
ترجمه: که چا غسل ورکړي و مړي ته هغه دي غسل وکړي. او که چا دَمړي جنازه واخستله
هغه دي اودس تازه کړي. د احدیث خود مراقی مصنفؒ دلیل راوړی دیٔ.
لکن امام طحطاویؒ پر هغه داسې سوال کړی دی چې دا دی حدیث څخه خو مندوب والی
غسل د غاسل المیت معلومیږی نه اودس کول» او امام حلبیؒ په لویه شرح کښې چل
منیه المصلی باندی و مندوب والي ته د غسل تللی دیٔ. **پوښته**: چی امام
احمدؒ اودس پر حامل الجنازه باندی واجب بولي» ط »

## وَلِوَقْتِ کُلِّ صَلٰوةٍ وَقَبْلَ غُسْلِ الْجَنَابَةِ

او دا خلیدو سره د هر وقت
دلمانځه اودس تازه کول مستحب کار دی لتعظیم وقت الصلوٰة» در» او مخه تر غسل دَجنابت اودس کول مستحب
دی» ولی چی دی باره کی صحیح حدیث بلکه دیر حدیثونه موجود دیٔ» قال المصنفؒ.

... خدایه و بخښی شارح او هم کاتب ۔ چه اکثر دعا قبلیږی د غائب» حقانی غفر له

## وَلِلْجُنُبِ عِنْدَ اَكْلٍ وَّشُرْبٍ وَنَوْمٍ وَّوَطْیٍ

اودغه رنګه اودس مستحب دی جنب لره په وخت کی داراده د خوراك یا د څښلو او
یاد بیدیدو د پاره او دغه رنګه د پاره د جماع یعنی یو وار یه جماع وکړی او بیا د جماع
کولو اراده وکړی. نو د مخه تر دوهم پلا جماع او اودس کول مستحب دی.

**پوهه سه**: چی غسل د حیض یا د نفاس هم په حکم کی د غسل د جنابت لره چی
اودس کول په دی دوو غسلو کښی هم مستحب دی» ط». بنهانه فان

پوهه سه: چی دا اودس څخه مراد په مابین کی د دوو جماعو: او په نیز د خوب مُراد شرعی
دی» په قول کی د ابوحنیفه او مالك او شافعی او احمد هم دا غسی بیان کړی دی. بدا
العینیٰ الحنفیٰ په شرح کښی د بخاری» او دغه رنګه حکم کړیدی حافظ ابن حجر الشافعی
په شرح کی د بخاری» په بخاری شریف کی د سیدتنا عائشة رض څخه روایت دی چی
وخت چی رسول الله صلی الله علیه وسلم اراده وکړه چی بیده سی او دی به جنب وو
غسل فرجه» یعنی استنجاء بی وکړله. وتوضأ للصلوة» یعنی اودس بی تاو وکړ
نکه اودس د لمانځه د پاره یعنی کامل شرعی اودس بی وکړی. او امام احمد او مسلم
ابن ماجه او نسائی او ابن حبان او ابوداود او حاکم او بیهقی داسی روایت د علیه
السلام څخه نقل کړی دی» چی کم وخت چی سړی ما ینی ته ورسی یعنی وطی وکړ
وکړی د بلی پلا د وطو لپس اودس د هے تازه کړی په مابین کښی چی دا اودس د
پلا جماع د پاره ډیره خوشحالی بید اکوی.»
او قاضی ابویوسف وائی چی اودس بین الجماعین مستحب نه دی دهم ډیر دلایل
راوړی دی او هغه نور احادیث یه پر بیان د دی اجمال کړی دی. لکن فتوی پر قول
د ائمه اربعه وو ده. او فقیه ابوجعفر الطحاوی وائی چی حدیث دا اودس بین
الجماعین یا په نیز دارادی د خوب منسوخ دی. والله اعلم بالصواب
او هم اودس کول دی په نیز د خوراك یا څښلو د هغه او داسه څخه مراد وضوء لغوی

بیولہ. ولی چی طحطاوی ابوداود ابن ماجه دعائشة څخه روایت کړی
لاس پریولہ. آنحضرت چی به اراده د خوراك وکړه او دی به جنب وو لاسونه پریولہ: قال شارح
الشکوٰة وعلیه جمهور العلماء. وفی الفتاوی الخانیة: جنب چی اراده وکړی د خوراك یاد
څښلو د... مستحب ده ده لره چی پریمینځی لاسونه او خوله. او کی نه وکی لا باس به.
فی خزانة الاکمل» کی پریږد دی ضرر نه لری. او په منیة المصلی کښی وائی چی جنب
د خوراك او چښنګ بیله لاس پریولو سبب د فقر ګرځی. قال المصنف.

اوچی د رد وړسی سړی سته هم اودس مستحب دی ولی چی د رد یه

## لِلْغَضَبِ

ورکیږی. په حدیث شریف کی چی روایت یه احمد او ابوداود
دی علیه الصلوة والسلام فرمائیلی دی چی غضب د شیطان د خوا دی او د شیطان
خلقت د اور څخه دی او اور په اوبو وژل کیږی پس هغه وخت چی سړی ته
غضب وړسی نو اودس د تازه کړی. قال المصنف

او د پاره د تلاوت د قرآن شریف

## لِلْقُرْآنِ وَحَدِيْثٍ وَرِوَايَتِهٖ

یعنی د یا د ولو د پاره هم اودس
کول مستحب دی. او د پاره د حدیث ویلو او یا یه بل چا ته د روایت د حدیث کولو او د
مستحب دی. دا په سبب د شرافت د قرآن او د حدیثو. قال المصنف.

## وَدِرَاسَةِ عِلْمٍ وَاَذَانٍ وَاِقَامَةٍ وَخُطْبَةٍ

د پاره د درس علم اودس مستحب دی. او د اذان او اقامت کولو د پاره او د خطبه ویلو د پاره هم
اودس کول مستحب دی خطبه که څه هم د نکاح خطبه وی کذا فی المراقی.

**پوهه سه**: چی مراد د علم څخه شرعی علم دی. قال المصنف

## وَزِيَارَةِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَوُقُوْفٍ بِعَرَفَةَ

او د پاره د زیارت د نبی علیه السلام اودس د کولو مستحب دی. او د پاره د درید و پر عرفات باندی

**پوهسه**: چې دزيارت کولو د نبي عليه السلام اودس د پاره د تعظيم د عليه السلام او
پاره د تعظيم د دخول د مسجد نبوي **فائده**: د وقوف عرفات د پاره اودس
مستحب دی. بلکه که غسل وکړي ډیر به ښه وي. ولې چې عرفات يومشرف مقام دی
خصوصًا د حج په موقع کښې چې خدای جل جلاله پر ملائکو وو باندې په واقفينو
سره د عرفات فخر کوي "کما في الحديث النبوي".

## وَلِلسَّعْيِ بَيْنَ الصَّفَا وَالْمَرْوَةِ وَ اَكْلِ لَحْمِ جَزُوْرٍ

اود پاره د سعي په مابين کښې د صفا او مروه" ولې چې دا سعي عبادت دی او عبادت
طهارت ډیر بیا دی). او پس له خوړلو څخه د اوښ د غوښو اودس مستحب دی
ولې چې امام احمدؒ دا اودس واجب بولي. که څه هم نور مجتهدينؒ د هغه حديث څخه چې
اوښ د غوښو په خوړلو کښې راغلی دی مراد د لاسو پرېولو بولي. لکن چې اودس تازه کړي د
اختلافه به خبره ووزي. قَالَ الْمُصَنِّفُ

## وَلِلْخُرُوْجِ مِنْ خِلَافِ الْعُلَمَاءِ كَمَا اِذَا مَسَّ اِمْرَأَةً

او دی د پاره هم اودس مستحب دی چې ووزي د خلاف څخه د علماوو لکه چې سړی
مسه کړي ښځه. چې په دې سره بعض مجتهدان اودس مات بولي. که څه هم زموږ
مذهب نه دی. **پوهسه**: چې مراد د ښځې څخه هغه ښځه ده چې د سړي محرمه
نه وي لکه خور، لور، وغيره. او بل دا چې ښځه د اشتهاء ځای دی. ولې چې د محرمې
ښځې په مسه کولو سره او یا د بيځې کشنۍ نجلۍ په مسه کولو سره هیڅ څوك اودس
مات نه بولي. او یا خپل غړي په باطن دا غوی مسه کړي چې په دې سره هم شافعي
اودس مات بولي. نو چې سړي ورو سته تر دغو دوو کارو اودس تازه کړي عبادت
به ئې د خلاف څخه ووزي"

كتبه بيده وبقلمه فضل الحق حقاني استاد بقسم القراءات والعلوم العقلية والنقلية جامعه تجويد القرآن





# فَصْلٌ

فصل مصدر دی په معنیٰ د جلا کونکی. او یا جلا کړه سوی، خبر د مبتداء دی. ای
هذا فصل" فصل په اصطلاح د مصنفانو هغه یو اندازه مسئلې دی چې د مخ د مسئلو
څخه جلا وی" قَالَ الْمُصَنِّفُ.

## يَنْقُضُ الْوُضُوْءَ اِثْنَا عَشَرَ شَيْئًا

اودس ماتوي دوولس شيان. **پوهسه**: چې نقض نړيدو
وائي نو که یو جسم ته مضاف سي لکه "نَقَضَ الْحَائِطُ" وي نړاوه ديوال نو معنا د هغه
جسم خرابول دي. او که مضاف و معنیٰ ته سي لکه "نَقَضَ الْوُضُوْءَ" معنا يه دا ده چې
اودس د هغې فائدې څخه لکه جواز الصلوٰة مثلاً وفتي. قَالَ الْمُصَنِّفُ.

## مَا خَرَجَ مِنَ السَّبِيْلَيْنِ

اول هغه شی دی چې راووزي د دوو لارو
څخه د نر یا ښځې یعنی د بولو د لاري یا د
غولو د لاري که ډیری وی او که لږ په ستر ګولید ل کیږي لکه بولې او غول یا نه لیدل
کیږي لکه پسکی او ګوز، عادي شی وي او که غیر عادي وي لکه شګه یا چینجي"

## اِلَّا رِيْحَ الْقُبُلِ فِي الْاَصَحِّ

مګر پسکی د مخ د خوا څخه د نر
یا ښځې په صحیح روایت کی.
ولې چې د مخ د خوا څخه باد نه دی صرف او صرف هغه ځای سره وښوري. او که باد هم وي
نو پر نجاست نه دی راتیر سوی. او د نجاست د ځای نه دی راوتلی. بخلاف ريح الدبر
چې پر نجاست راتیریږی. نو دی سببه مصنفؒ وویله في الاصح، قَالَ

## وَيَنْقُضُهُ وِلَادَةٌ مِنْ غَيْرِ رُؤْيَةِ دَمٍ

او همدارنګه اودس
ماتوي لنګوالی د ښځې
بیله لیدو د وینو یعنی که څه هم وینه نه وي. او که وینه وه خو په طريق اولیٰ اودس ماتیږي

**مسئله:** ښځه په دغسې ولادت سره بيله وينو نفسا نه ګرځي په قول دابو يوسفؒ او محمدؒ قال المصؒ في المراقي وهو الصحيح. ولې چې نفاس په وينه پورې اړه لري هغه خو نشته. مګر اودس پرې لازم دی. ولې څه رطوبت خو راووتي. او حضرت الامام الاعظمؒ وائي چې دغه ښځه دې احتياطاً غسل وکړي. ولې چې غالباً دولادت سره څه نه څه وينه راوزي، او دا قول د امام اعظمؒ په کتابونو کښې د فتاوي وو تصحيح ورکړې سوې ده. او صدر شهيدؒ هم په دغه مذهب فتوې ورکول، کذا في المراقي. قال المصنفؒ

## وَنَجَاسَةٌ سَائِلَةٌ مِّنْ غَيْرِهِمَا كَدَمٍ وَقَيْحٍ

او د غه رنګه اودس ماتوي بهيدونکي نجاست د غير ځخه د سبيلينو، ولې چې په صحيح حديث کې (اعلى الوضوء من كل دم سائل) لکه وينه او زېړې او بده، او دا مذهب دی د ډېرو کسانو د صحابه کرامو چې زيري د جنت آنحضرتﷺ ورته کړي دي. او مذهب دی د عبد الله بن مسعودؓ او د عبد الله بن عباسؓ او د زيد بن ثابتؓ او د ابي موسى اشعريؓ او نورو کسانو د غټو صحابه وو څخه او مذهب د رئيس التابعين الحسن البصريؒ او محمد بن سيرين.

**فائده:** سيلان د نجاست د سبيلينو څخه په صرف ظهور سره دی ولې چې نجاست ځای لوړ دی نو چې نجاست ځان ښکاره کړي معلومه سوه چې را بهيدلی دی. او سيلان د غير سبيلينو په تجاوز سره دی د نجاست د ځای څخه د ظهور و داسې ځای ته چې پاکې د هغه ځای يا په اودس يا غسل کښې لازم دی. **مسئله:** که زړې او بده د ښځې [illegible] څخه راووزي او يا د نو څخه د نر يا ښځې يا د غوږ و څخه که د مرض د سببه څخه وي په ټولو اودس ماتيږي. پر صحيح روايت، مرط، قال المصنفؒ

## وَقَيْءُ طَعَامٍ أَوْ مَاءٍ أَوْ عَلَقٍ أَوْ مِرَّةٍ إِذَا مَلَأَ الْفَمَ

او د غه رنګه اودس ماتوي قي وهل که خوړلې شئ قي کړي او که اوبه قي کړي او که کلکه کنګلې وينه قي کړي او که ترخې اوبه قئ کړي که چېرې دا قي په ډکه خوله وي.





**پوهسه:** چې علق سودا د سوی او مرة صفرا ته وائي. قال صاحب المراقي وهو مذهب العشرة المبشرة بالجنة، او هغه په حديث کې روايت په ترمذي کړې دی راغلی چې رسول کريم صلى الله عليه وسلم قي وواهه او بيا يې اودس تازه کړي. سيدؒ وائي که دغه علق سره اوري وه اودس په ماتيږي که څه هم ملأ الفم نوي عند الامام الاعظمؒ خلافاً لمحمدؒ چې ملأ الفم شرط بولي.

**راهم زده کړه:** چې دا اختلاف هلته دی چې قئ د علق د لښه څخه وي او که د سر څخه وو نو خامخا اودس په ماتيږي که لږ وي او که ډېر. قاله البدر العيني في شرح الهداية.

**سوال:** فقهاوو په قئ کښې ډک والی د خولې معتبر کړي. او په نورو نجاستو کې نفس سيلان بهيدل معتبر کړي دي. **جواب:** خولې دوه حيثيت لري - په يو دليل خوله حکم د ظاهر لري چې خوله خلاصه کړي شئ په کښې معلوميږي. او په بل دليل حکم د باطن لري چې خوله بنده کړي شئ نه پکښې معلوميږي. او په احکام شرعيه وو کښې هم ګاهې خولې ته حکم د ظاهر ورکول کيږي. چې په غسل کې پريوله فرض دي. او ګاهې حکم د باطن ورکړه سوي دی چې سړي د خولې نارې تيرې کړي روژه په نه په ماتيږي. نو فقهاوو په قئ کښې د دواړو دليلو مراعات وکړي. يعنې چې قئ په ډکه خوله وي نو خوله خارجه معتبره سوه نو دا قئ چې نجس دی ګويا خارج شوا او بهيدی. او چې قئ لږ وي ګويا د غه قئ که څه هم د با ندې خوړا او ووت لکن په حکم کښې د نارو دی لکه سړي چې نارې توکړي، طهر،

## وَهُوَ مَا لَا يَنْطَبِقُ عَلَيْهِ إِلَّا بِتَكَلُّفٍ عَلَى الْأَصَحِّ

او ملأ الفم هغه قي بولي چې شونډان نسي پرتېنګه ولای مګر په تکليف سره په صحيح روايت کې. او بعض فقهاء وائي چې ملاء الفم هغه قي دی چې د هغه سره خبرې نسي کولای.

---

ے په تفصيل چې ترجمه کړې اولې: خوشنويس بيا نوشته کړې حقاني.

## وَيَجْمَعُ مُتَفَرِّقُ الْقَيْءِ إِذَا اتَّحَدَ سَبَبُهُ

اوسره جمع کیږي

جَلاجَلا قئ وَهَل کی سبب یو وُو. یعنی خوا گرځید نه نوکه دَټولو څخه ملأ الفم جوړیږي اودس پـه ماتیږي که یه څه هم ځایونه مختلف اوځلاوي. دا مذهب دی دامام محمّدٌ قـَالَ الْمَرَاقِی وَهُوَالْاصح. اوپه نـیز دابویوسفؒ اعتبار یو وَالی لره دمکان دیٔ. او ابوعلی دُقـاق؏ وَائي چې پرهر تقدیر چې مِلاء الفم وي اودَس پـه ماتیږي، حاصل دا چې که سبب هم یو وی او مکان هم یو وی او قئی مِلاء الفم ته ورسیږي اتفاقًا اوَدس پـه ماتیږي، اوکه دواړه مختلف وَه اتفاقًا نـه پـه مَاتیږي اوپه دوه صورته کښی اختلاف دیٔ» قـَالَ الْمُصَنِّفُ۔

## وَدَمٌ غَلَبَ عَلَى الْبُزَاقِ اَوْسَاوَاهُ

اوپه هغه وینه چې برناړه دېره وي

اودَس مَاتیږي اوکه سره برابر وَه هم اودَس پـه مَاتیږي **فَائِدَه:** وینه که چیری دسَرد خوا څخه پـه پزه کښی راغله اوساېله وَه. اودس پـه ماتیږي که څه هم لږ وي، نوکه نارې ته رې وی داوینه مَخلوبه ده اودس نه پـه مَاتیږي اوکه سره سخت وه غالبه ده اودس پـه مـاتیږي. عَینی، اوکه صِرف سره وه هغه صورت دمُساوات دی پـه دې صُورت کښی هم اودس مَاتیږي احتیاطًا ط» قـَالَ الْمُصَنِّفُ

## وَنَوْمٌ لَمْ تَتَمَكَّنْ فِيهِ الْمَقْعَدَةُ مِنَ الْاَرْضِ

اود اغه رنګه اودس ماتوی هغه خوُب چې کونه یه پر ځمکه نـه وی ټینـګه۔
**پوښتنه:** چې بیده سَړی یه یا پر اړخ پروت وی نو اودس یه مات دَی. او یا پر یو کُنـاټي بیده وی نوُیـه هم اودس مات دیٔ. ولې چې کوُنه یه دَ ځمکې څخه پورته ده او یا ئې تکیـه کړی وی ویوشې ته چې هغه ځندی ایستـه سی غوځاریږی» نو یه دی صُورت کی که یه کونـه د ځمکې څخه زا ئله وَه. نو یـه هم اودس مات دی په اتفاق





اوکی کُنه پـه ځمکه پوری ټینـګه وه لکه چې یو دیوال ته چَسپ ناست وی. اوکُنه په ځمکه وي. امام قدوریؒ وَائي چې اودَس یه ماتیږي. دا رنګه دَطحاویؒ څخه هم روایت دی لکن صَحیح دادَه چې اودَس نه پـه مـاتیږی. اوکه پـه ولاړی یا پـه حال کی د رکوع یا سجدی بیده سُو. نوکه په لمانځه کښی وو خو اودس یه نه ماتیږی اوکه خارج الصلوٰة وو نو هـم یه اودَس نـه ماتیږی پر صحیح مذهب: اومریض که مضطجعًا لمونځ کاوه او بیَده سُو» صحیح داده چې اودس پـه مَاتیږي.
او نعُاس چې پینکی یه بوُلی کـه چیری په حَال کښی د پروتی وی اودَس په ماتیږی اوچې د ولاړی وي. اوکه سپکی وی اودَس نـه پـه مـاتیږی. اوفرق پـه مـا بین کښیٔ د ثقیل نعُاس او خفیف دادی کی چیری دَخلګو خبري او ریدی هغه خفیف اوسَپك نعُاس دَیٔ، اوکی نـه اوریـدَی هغه دروند دی» اودغه رنګه مَاتیږی چې سَتوفی ستخ پروت وی او بیدهٔ سِی» ولې چې د کُنی خوله یه د ځمکې څخه پورته دَه۔ اوکه بر مَخی پروت وی بیده سِی هم یَه اودَس مـَاتیږي۔
**فَـائِـدَهْ:** خوب پخپَله خو حدث نه دَی» بلکه حَدث اصلًا هغه شی دیٔ چې د نایمه څخه غالبًا ووزی چې نپُسکی اوگوزدَی. نود دی کبـله دګونی و ټینګید و تـه پر ځمکه او یا نه ټینګید و تَه داودس پَه ما تَولو اونـه مَا تولو کښی دَخل سـَتـه: پـه حَدیث مُبارك کښی راغلی دې. اَلْعَيْنَانُ وِكَاءُ السَّهِ فَاِذَا نَامَتِ الْعَيْنَانُ اِنْطَلَقَ الْوِكَاءُ یعنی سَترګی چې مراد ځندی و لیبن وَالی دَیُ.» خوُل وَابنَی دکُـنی دی نو چې سَترګی بیدی سِی هغه تنا وخَلاص سِی: عَـلامه شبلی نعمانیؒ پـه حَاشیَه کښی دز یلعی دا سِی پوښتنه راوړی دَه» **پوښتنه:** چې یو سَړي چې معذوره وُو پَـه انفلات الریح سره یعنی بـادونه یه جاری وَه. نو چې دغه سَړی بیده سِی پـه خوُب یه اودَس ماتیږي
**جواب:** یا نه ماتیږی ولی چې پخپَله خوب ما توُونکی داود اسَه نـه دَی ما توونکی خو هغه باد دی چې د ده سَه ووزی. او د دی سَړي خود و لیبنی په باد هم اودس نه ماتیږی په وخت کی دَنَنه»

# وَارتِفَاعُ مَقعَدَةِ نَائِمٍ قَبلَ اِنتِبَاهِهٖ وَاِن لَّم يَسقُط فِي الظَّاهِر

او د غه رنگه اودس ماتوي پورته والی د کُنی د بیده سړي، یعنی د محکمې ځمکې د مخه ترپیدا ریدو د دَه، که څه هم غځارنسی پر ځمکه په ظاهره مذهب کی: قَالَ المصنفؒ

# وَاِغمَاءٍ

او د غه رنگه اودس ماتوي بیهوښېدل والي۔ اِغماء نا جوړي دَه چې د پوهنی او د حرکت قوتونه یې تر ډوله د خپل کار څخه معطل سي مگر عقل یې پاتوي مغلوب

# وَجُنُونٍ وَسُكرٍ

او دا غه رنگه اودس ماتوي لیونتوبٌ او جنون یو مرض دی چې عقل یې بیخی زائل سی۔ او قوی محرکه یه قوی وي.
او دا غه رنگه مستی اودس ماتوي۔ که دا شرابو څخه وي که د یو بل ماکول مشروب څخه وي"
بعض اطباء وائي چې سُکر د یو خوشحالي ده د زړه چې پر عقل غالبه سي۔ پس انسان کی څه هم عقل باقي وي خو په مقتضیٰ د عقل عمل نه سی کولای۔ کذا فی البحر وهو التحقیق، ط، وهذا اولیٰ مما قیل هو خفة یظهر اثرها فی التمایل وتلعثم فی الکلام کا فسره الراقی انتهیٰ

# وَقَهقَهَةُ بَالِغٍ يَقظَانٍ فِي صَلوٰةٍ ذَاتِ رُكُوعٍ وَسُجُودٍ

او دا غه رنگه اودس ماتوي په زوره خندا د بالغ سړي چې ویښ وي په داسی لمانځه کښی چې

# وَلَو تَعَمَّدَ الخُرُوجَ بِهَا مِنَ الصَّلوٰةِ

رکوع او سجده پکښی وي، که څه د ده قصد وي په دی خندا سره وتل د لمانځه څخه۔ د لمانځه خو به ووزی لکن اودس یې مات سو:

**فَوَائِدُ** ۱ دا خندا که په قصد وي او که په سهوه اودس ماتوي ۲ قهقهه هغه خنداده چې ده ته نږدي خلک یې هم واوري۔ په دی خندا هم لمونځ فاسدیږي او هم اودس په ماتیږي او **ضحک** هغه خندا ته وائي چې دی ئې واوري همسایگان یې نه واوري په هغه سره لمونځ فاسدیږی۔ او اودس نه په ماتیږي.





تبسم صرف د شوندانو خنداده که څه هم غاښونه ښکاره سی، په تبسم سره هیڅ شی نه باطلیږی ۳ کشئ یعنی نابالغه که په لمانځه کښی وخاندی اودس یې نه ماتیږی۔ ولې چې دا ما توالی داودا سه په خندا سره د جهت څخه د زجر دی او کشنی د زجر اهل نه دی۔ او بعض فقهاء وائي چې د عاقل کشنی اودس په ماتیږی
**پوهسه**: چې قهقهه حدث په حقیقت کښی نه ده، ولې که حدث وای نو خارج الصلوٰة به هم اودس په ماتی دای۔ لکه بولی وغیره۔
او بل دا چې خندا خارج نجس نه دی بلکه یو صوت (آواز) دی لکه نور او خبری چې په هغو اودس نه ماتیږی بلکه اودس ما تیدل په خندا زجرًا او عقوبتًا دی چې په حدیث صحیح کښی راغلی دی چې رسول الله صلی الله علیه وسلم د جماعت پر لمانځه ولاړ وو چې یو سړی چې سترگی ضعیفه وي په تلوار لمانځه ته راروان وو او په مخ کښی یو ځاغوندی وه ب وُو د هغه سړي په لوی ترپ سره هغه کندی ته ولویدی۔ بعض لمونځ کوونکو په زوره پر وخندل نو څه وخت چې آنحضرت م سلام وگرځاوه۔ وي وئیله چې هغه ځاچی په لمانځه کی په زوره خندلی وي هغه دی اودس او لمونځ دواړه را وگرځوي۔ **نتیجه** داده چې چونکه په خندا اودس مات والی زجري دی حقیقی نه دی۔ نو دغه سړي ته رواده چې مسحه د مصحف شریف دی پس له دغی خندا وکړي کی څه هم اودس نه وي تازه کړی۔ او بعض فقهاء وائي چې قهقهه حدث دَه لکه نور احداث نو د دوي په نیز مسحه د مصحف د غه سړي ته روا نده۔ نه ئی سی مسحه کولای د مخه تر اودا سه۔ بحر الرائق وَاول ته ترجیح ورکړیده۔
۷ مصنفؒ یقظان ووایه وَلی چې په قهقهه د بیده سړي په لمانځه کی اودس نه ماتیږی۔ وَلی پر نائم (بیده) هم زجر نسته هو لمونځ یې باطل سو" قَال فی البحر وهو المذهب۔ مصنف وَ وَئیله فی صَلوٰةِ ذات رکوع آه په دی قید سره لمونځ د جنازی او سجدة التلاوة خارج کړه۔ نو که په دغو دوو کښی وخاندی اودس یې نه ماتیږی کی څه هم لمونځ باطلیږي۔

**سوال** یوسړي وود عذر په سبب په لمونځ په اشاره کاوه او په لمانځه کی وخندل نو ددی سړی اودس باید مات نشی ولی چی لمونځ د ده رکوع او سجده والا نه دی.

**جواب** مراد د رکوع او سجدی نه عام مراد دی که حقیقةً وی او که مجازاً وی او دغه معذور سړي اشاره په ځای کښی د رکوع او سجدی ولاړه ده نو مجازاً رکوع او سجده ورته ویل کیږی.

او بعض فقهاءٌ وائی چی مراد دادی چی هغه لمونځ په اصل کښی رکوع او سجدی والاوي. او بښکاره خبره ده چی د اشاره کوونکی دغه لمونځ خو په اصل کی رکوع او سجده والا دی.

**پوښتنه** مصنفٌ تخصیص داو دا سړ وکړئ چی په خندا د لمانځه ماتیږی نو که دغه لمونځ گذاره په تیمم سړه لمونځ کاوه او وی خندل نو باید تیمم دی مات نه سی:

**جواب** چونکه تیمم قائم مقام داودسه نو ځکه هغه هم په خندا ماتیږي. وعلی هذا فقس الغسل»

مصنفٌ ووَیله "وَ لَوْ تَعَمُّدًا" آه **پوهسه**: چی زموږ په مذهب کی وتل د لمانځه نه په صنع او فعل د لمونځ گذاره خو فرض دی. او سلام گرځول واجب دی نو لمونځ گذاره چی اخیره ناسته یه وکړه. او بی له سلامه بل شی نه وویاته نو یه زوره وخندل قصد یه داو وچی په دی خندا د لمانځه ووزم» نو اودس یه مات دی. ولی تر او سه پوری حرمت د لمانځه باقی دی لکه چی په سجدهٔ سهو کی وخاندي» او لمونځ یه صحیح سو ولیچی د فرائضو نه شی نه دی پاته. هو سلام چی واجب وو پاته سو گناه گار دی» قَالَ المصنفٌ.

## وَمَسُّ فَرْجٍ بِذَكَرٍ مُنْتَصِبٍ بِلَا حَائِلٍ

او داغه رنگه اودس ماتیږی په مسه کولو سره د کُس په نرم سره چی لک ولاړ وی او په مابین کښی حائل یعنی مانع نه وي.

**پوهسه**: چی مراد د حائل نه داسی حائل مراد دی چی حرارت د بدن منع کوی لکه پنډ ټوکر، یا گس سره مانع نه وی او یا مانع وی لکن نازک.





کُس په کُس سره ومښی په دي ټولو صورتو کښی دو طرفه اودس مات سو. او وره: چی په دغه صورت کښی دنر او ښځی دواړو اودس مات دی»، کما فی القنیة. او امام محمدٌ وائی چی اودس نه ماتیږی مگر په وتلو د مذی سره. **جواب** چی دغسی مباشرت غالباً د خروج نه د مذی خالی نه وی والغالب کالمتحقق» ط په مجمع الانهر کی وائی چی قول د امام محمدٌ د قیاس سره برابر دی او قول د شیخینو احوط دی. **فَائِدَه**: قید د فرج او ذکر اتفاقی دی. ولی که غنړ یه لوینه پوری مسه کړي. او یا دوه نره خپل غنړان لک لک سره مسه کړي» او یا دوی ښځی

# فَصْلٌ

## عَشَرَةُ أَشْيَاءٍ لَا تَنْقُضُ الْوُضُوءَ

لس شیان دی چی اودس نه ماتوی یعنی په مذهب کی د حنیفیانو که څه بعض ددغو لسلو شیانو په بعض نورو مذهبو کښی نواقض الوضوء دي. قَالَ المُصنفٌ.

## ظُهُورُ دَمٍ لَمْ يَسِلْ عَنْ مَحَلِّهِ

یو د هغو نه ښکاره والی دی د وینو چی د خپل ځای نه ونه بهیږي. مثلاً د سړي دیو ځای پوست واوښتی وینه یه ښکاره سوه مگر ونه بهیدله اودس یه نه دی مات. د دی وجه داده: چی په دغه وینه بل شی که وچ شی وی لکه ټوکر یا لوند شئ لکه چی دغه وینه په پنبه سره واخلی او په لړو اوبو کښی واچوي په دغه وینه نه هغه وچ مرداریږی او نه هغه لږ اوبه» پر صحیح مذهب چی مذهب د ابی یوسفٌ دی. او امام محمدٌ وائی چی وچ شی او لوند شئ دواړه په مردار یږی. لکن امام حدادیٌ وائی چی په وچو شیانو کی فتوی پر قول د ابو یوسفٌ

ده اوپه لندوشیانوکښې پرقول دامام محمدؒ ده، کذاقال السیدؒ مرط،

## وَسُقُوطُ لَحْمٍ مِنْ غَيْرِ سَيَلَانِ دَمٍ

اوبل دااودس نه ماتوي چې دیوه ځای څخه دسړي غوښه جلاسی او وینه نه ورسره وبهیږي. ددی وجه داده چې غوښه پاکه ده اوجلا والی د پاك شی اودس نه ماتوي. **پوهسه**: چه دسړي غوښه په حق کی دخپله سړي پاکه ده او په حق کښې دبل چا مرداره ده. لان المنفصل من الحی میتة، مرط، قال المصنفؒ

## كَالْعِرْقِ الْمَدَنِيِّ الَّذِي يُقَالُ لَهُ رِشْتَهُ

لکه مدنی رګ چې هغه ته رشته ویل کیږی. یعنی په فارسی ژبه یه رشته بولی. کذافی الفتاوی البزازیة.

**فائده**: عرق مدنی یومرض دی چې په مدینه منوره کښې دیر پیښیږی هغه اول وار په پوست کی یوتنها که غوندی شیٔ پیداسی. او هغه بیاسوری سی او په کراركرار یوسپین سیٔ غوندی سی څندی راوزی او بیاجوړ سی. او داد طبیبانو په نیزدفضولو موادو څخه پیداکیږي. قال المصنفؒ.

## وَخُرُوجُ دُودَةٍ مِنْ جُرْحٍ وَأُذُنٍ وَأَنْفٍ

اوداغه رنګه اودس نه ماتوی راوتل د چنجی دتهیه څخه او یا دغوږه څخه او یا دپزی څخه: علت یې هم دادی چې چنجئ په خپل ذات کی خوپاك دی. او ده سره چې کم رطوبت دی هغه لږ دی. لکن پوه سه که چیری دغه چنجئ په اوبو یا بل مائع شی ولویږی هغه په مرداریږی. نو دغه قضیه چې، مالیس بحدث لیس بنجس، په حق د چنجی کښې ده نه په حق کښې داوبو، ط، قال المصنفؒ.

## وَمَسُّ ذَكَرٍ وَمَسُّ امْرَأَةٍ

او اودس نه ماتوی مسه کول دغړی خواه خپل ذکر وی او که دبل چا ذکروی





اوکه مسه کول په باطن دارغووی اوکه په بل ځای سره وي. او خواه مس په شهوت سره وی او کی بیله شهوته مسه کړي. **پوهسه** چې دکولی دمسه کولو هم دغه حکم دئ ط، او هم دامذهب دی دلویو صحابه وو لکه حضرت عمرؓ وعلیؓ وابن مسعودؓ وابن عباسؓ وزید بن ثابتؓ او رئیسانو دتابعینو هم دغه مذهب دی لکه حسن بصریؒ وسعید بن المسیبؒ والثوریؒ.

په **حدیث مبارك** کی چې روایت یه ترمذی کړی دی داسی راغلی دي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم ته یوسړی راغلی دشانه یه داسی معلومیدی چې صحرائی دی. نو هغه ووئیله: مَا تَقُولُ فِي رَجُلٍ مَسَّ ذَكَرَهُ فِي الصَّلٰوةِ، یعنی ته څه وایه په هغه سړي کښې چې خپل ذکر مسه کړي په لمانځه کښې قال علیه الصلوة والسلام: هَلْ هُوَ إِلَّا بِضْعَةٌ مِنْكَ، وفی روایة مُضْغَةٌ مِنْكَ، علیه السلام وهغه سړي ته جواب ورکړی چې نه دی ذکر مګر ستا یوټوټه. او ترمذی په باب کی د حدیث داسی ویلی دی، وَهٰذَا الْحَدِيثُ أَحْسَنُ شَيْءٍ فِي هٰذَا الْبَابِ وَأَصَحُّ،

**سوال** په یو حدیث کی دبسرةؓ په روایت کوی داسی راغلی دي، مَنْ مَسَّ ذَكَرَهُ فَلْيَتَوَضَّأْ، یعنی که چا خپل ذکر مسه کړي هغه دی اودس تازه کړي. **جواب** امام فقیه ابوجعفر الطحاویؒ اوامام الطحطاویؒ داسی وائي چې دغه حدیث د بسرة یوجماعت د محدثینو ضعیف ګڼلی دئ. وَإِنْ شِئْتَ التَّفْصِيلَ فَارْجِعْ إِلَى فَتْحِ الْقَدِيرِ شرح الهدایة.

**پوهسه**: چې مسه کول د ښځی که دسړي خپله ماینه وی او که بیګانه وی، او که محرمه وی که غیر محرمه وی اودس نه ماتوی خلافا للشافعیؒ. زمونږ دلیل دادئ چې ابوداود، ترمذی، نسائی، ابن ماجه، بی بی عائشه رضی الله تعالی عنها څخه روایت دی، چې رسول الله صلی الله علیه وسلم د بعض ماینو څخه مچه واخستل او بیا ئې لمونځ کاوه، او اودس یې نه تازه کاوه، او مچه په انواعو کښې دلمس دشهوت شیٔ دی.

**پوښتنه**: په ایت کښې د تیمم داسی راغلی دي، أَوْ لَامَسْتُمُ النِّسَاءَ الآیه

نوم هغه څخه ـ اسی فرمیږی چی لَمَس دښځی هَم اودس ما تَوی. **جَوَاب** ترجمان القرآن رئیسُ المفسرین عبد الله بن عباس رَ وَائی چی مراد د لمس څخه په دغه آیت مذکوره کښی جماع او وطی دی» او دا هم د لمس لغوی ترجمه ده. ابن السکیت اللغوی وائی چی لَمَس چی دښځی سره راسی مراد ځنی جماع ده عرب وَائی، لَمَسْتُ المَرْئَةُ ای جَامَعتُهَا» قَـــالَ المـصنفؒ

# وَقَیْئُ لَایَمْلَاءُ الْفَمَ وَقَیْئُ بَلْغَمٍ وَلَوْکَثِیْرًا

خوله ډکه نه په ډکه اودس نه ماتوي. ولی دَغه قی د لوړی حصی څخه د معدی راځی چی ځای د نجاست نه دَه. او قی د بَلغمو چی په اصطلاح کښی گروړی بُولي اودس نه ماتَوي که څه هم ډیر وي. ولی دگروړي دښووی والی له کبله نجاست په ده سره نه مَبتلی او دی ځکه پاک دی. قَـــالَ المُصنفؒ:

# وَتَمَایُلُ نَائِمٍ احْتَمَلَ زَوَالَ مَقْعَدَتِهٖ

او سره نیول ... د بیده سړي چی پیښېږی بُولی: چی احتمال دَ زوال د کُنی یه هَم وی. اودس نه ماتوي. په حدیث کښی د ابی داوُد داسی راغلی دي. کَانَ اَصْحَابُ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّی اللّٰهُ علیه وَسَلم ینتظِرُوْنَ العِشَاءَ حَتّٰی تَخْفِقَ رُؤُسُهُمْ ثُمَّ یُصَلُّوْنَ وَلَایَتَوَضَّؤُوْنَ ترجمه: وَه اصحاب د عَلیه السلام انتظار بی کاوَه دماخستن دَ لمانځه حتی چی سرونه بی رنگیدَله او بیابی لمونځ کاوَه او دَسُونه یه نه تازه کوَله» قَالَ المُصنفؒ

# وَنَوْمُ مُتَمَکِّنٍ وَلَوْمُسْتَنِدًا اِلٰی شَیْئٍ لَوْاُزِیْلَ سَقَطَ عَلَی الظَّاهِرِ

**فِیْهِمَا** او دا غه رنگه اودس نه ماتوی خوب د هغه چا چی کُنه یه پر ځمکه ټینگه ایښی وي کی که هم تکیه کړی وی ویوشی ته لکه دیوال یا بالښت یا تنبه» په داسی ډول که هغه شی چی ده تکیه ورته کړیده ایسته سی. غوځاریږی. او دا هم پر ظاهر روایت





په دواړو مسئلو کښی» یعنی ظاهر مذهب دامام اعظمؒ هم دَغه دی» چنانچه روایت د امام ابی یوسفؒ کړی دی دحضرت الامامؒ څخه» مصنف په مَراقی الفلاح کښی وائی چی دغه مذهب صحیح دی او پر دغه مذهب دی عام مشائخؒ. لکن قدوریؒ وائی چی اودس یه ماتیږی. او امام طحاویؒ هم وائی چی اودس یه ماتیږی. **دَرَوَلِیْش** وائی چی دلیل د ظاهر المذهب دادی چی داسړي که څه هم بیده دی لکن ځان پر ځمکه ټینگ دی نو دوتلو څخه د ناقض الوضوء په امان دی»

**تَنْبِیْه** دحضرت الامامؒ په مناقبو کښی داسی راغلی دي چی دَه مبارک څلویښت کاله دماخستن په اودَاسَه دسحار لمونځ کړی دی» مخالفین د حضرت الامامؒ د ا منقبت دَواقعیت څخه بیځی لری بُولي» بعض حنیفیانؒ دغه خُواب ورکوی چی حضرت الامامؒ موافق دخپل مذهبه سره دَ شپی ویوډیواله یا تنبی یا بالښت ته چارزانو کښینستی او بیا به یه خُوب کاوَه او دَ تهجد او دَ سَهار لمونځ یَه هم په هَغه دماخستن په اوداسه کاوَه» **دَرَوَلِیْش** وَائِیْ چی دیوخوشیپوړ پاره خودا کار بعید نه دی امّا څلویښت کاله متوالی (پی دري) داسی خُوب کول ډیر لیری مَعلومیږی. چی په دوښاوو ده موده کښی عذرونه دنا جوړی او د کور دَ ضرورت، او د قضاء حاجت حتماً پیښیږی. اما منقبت خو صحیح دی چی درولیش ددی منقبت وجه او به زړه پوري توجیه په شرح پښتو کښی دابو المنتهی بیان کړیده. اوزه گمان کوم چی دَهغی وجهی څخه بیله مُتعصب عالِم یا حاسِد څخه بل څوک اعراض وَنه کړی، او په اِنعام دا حُسْنَت به می مخاطب کړي، اِنْ شَآءَ اللّٰهُ. قَـــالَ المصنفؒ.

# وَنَوْمُ مُصَلٍّ وَلَوْرَاکِعًا اَوْسَاجِدًا عَلٰی جِهَةِ السُّنَّةِ وَاللّٰهُ

**اَلْمُوَفِّقُ** او اودس نه مَا توی خوب دَلمونځ گذاره پر هر هیئت چی وی حتی کی که هم په حالت د رکوع یا سُجده کښی بیده سِی. چی په دی دوو حالوکی د وتلو د باد ډیر احتمال سته، لکن چی رکوع او سُجده یَه پر دَوَل د سُنت وی چی لاسونه

بې د بَغَلو ځنې لیرې وی او په سُجدهٔ کښې بې نَس هم (تَرَوَنو) دَوَرَنو ځنې لیرې وی
حَدیث مُبارك کښې رَاغلی دی م لَا یَجِبُ الوُضُوءُ عَلیٰ مَنْ نَامَ جَالِسًا اَوْقَائِمًا
اَوسَاجِدًا حَتیٰ یَضَعُ جَنْبُهٗ ، یعنی اودس نه واجبیږی پرهغه چاچې بیده سی
ناستی یا په وَلاړی یا په سُجده کی ترهغو چې بَغَل این دی پر ځمکه . امام طحطاوی
په صـ۷۵ کی داسی وَائی : لِبَقَاءِ بَعْضِ الْاِسْتِمْسَاكِ اِذْ لَوْ زَالَ کُلُّهٗ لَسَقَطَ ، چې د
سړي بعض ځان ټینګه ول پاته دی . ولی که یو کَلَکَنْتَه یه ځان ټینګیده ورلېسوی
داسړي حتمًا غځاریدی ، مصنف په اخیر کی وائی وَاللّٰهُ الْمُوَفِّق خدای جَل جَلالهٗ
ورکوونکی دی . قَالَ الْمُصَنِّفُ

# فَصْلٌ مَا يُوْجِبُ الْاِغْتِسَالَ

فَصَل دی په بیَان کښی دهغو شیَا نو چې غسُل واجبوي . پُوهسَه
چې اغتسال او غسل په یوه مَعنا دی چې هغه پریوله دتوله بَدن دی . او په شرع کښې
کی پریوله دتوله بَدن دی دجنابت ځنه یا د حَیض یاد نفاسه ځنې او جنابت یو
صفت دی چې دنزول ځنه دمَني په شهوت سره که د نروی اوکه دښځی پیدا کیږی
لکن دا غسُل فرضی تضیر دی او غسُل مسنون هم دا غه معناده ، قَال المُصَنِّفُ

## يُفْتَرَضُ الْغُسْلُ بِوَاحِدٍ مِنْ سَبْعَةِ اَشْيَاءَ

فرضیږی غسُل په یوه سَره داوو شیانو ، یعنی چې سړي یو دغو اوو شیانو څخه
سی غسُل پرلازم دی .

## خُرُوْجُ الْمَنِیِّ اِلیٰ ظَاهِرِ الْجَسَدِ

اول وَتل دی دمنی دنریا دښځی ځنه وظاهر بدن ته . ولی چې ښکاره نسی حکم نه لري



پوهسَه : چې مَنِي دَنر سپینی ختیه او به دی چې په وَتولو سَره ئې ذکر مړ کیږي
ومَنی دښځی تری ژیړې او به دَی . قَالَ الْمُصَنِّفُ

## اِذَا انْفَصَلَ عَنْ مَقَرِّهٖ بِشَهْوَةٍ وَكَانَ خُرُوْجُهٗ مِنْ غَيْرِ جِمَاعٍ

...وتل یه یعنی جلاسو غه منی دځپل ځای ځنې چې دنر ملا او دښځی دځګر پښتی دی . چې
...ائب یه بولي : قَالَ اللّٰهُ تَعَالیٰ : يَخْرُجُ مِنْ بَيْنِ الصُّلْبِ وَالتَّرَائِبِ ، او وتل یه بیله جماعو
... لکه په خوب کی اودس پرواوري . یا په فکر سره ، اویا په نظر د شهوت
...تلوسره ، پوهسَه : چې مصنف مِنْ غَيْرِ جِمَاعٍ وویله ، ولی چې دجماعو غسل
...وپه خروج دمنی پوره اړهنه لری بلکه چې د غنړ سر په فرج یا دُبر کښې پټ سی غسل
...فاعل او مفعول دواړو فرض دی که څه هم انزال نه سی : مَسْئَلَهٗ که بې شهوت مَنی
...ج سو لکه لوی بار چې په شا کړی یا په خولک پر ملا ووهی او مَنی راووزی غسل نه
...ی پر لازم . پوهسَه : چې چونکه دفق وشهوت سره لازم وه نو ځکه مصنف
...فق نه کړي ذکر او په بعض کتابو کښی دفقهی یه دفق او شهوت دواړه راوړي دي
...لکن عبارت د مصنف چې یوازی شهوت راوړی دی ډیر اعلیٰ دي . ولی د دفق وجود
...په ظاهره یه مَنِي کی دښځی نه لیدل کیږی . حضرت الامام الطحطاوی په صـ۷۷
...وائی چې هغه ایت مبارك ، خُلِقَ مِنْ مَّآءٍ دَافِقٍ يَّخْرُجُ مِنْ بَيْنِ الصُّلْبِ وَالتَّرَائِبِ
...بناء پر تغلیب وی د منی دنر پر مَنی دښځی ، دارو لِش وَائی چې هم دغه رنګه
...بارت دنورو فقهاؤ چې دفق یه ذکر کړي دی مبنی پر تغلیب وي . لکن مع هذا
...صنف په مَراقی الفلاح کښی وائی : وَاَغْنیٰ اِشْتِرَاطُ الشَّهْوَةِ عَنِ الدَّفْقِ لِمُلَازَمَتِهٖ
...بینهما . وَاللّٰهُ اَعْلَمُ بِالصَّوَابِ

## فَائِدَةٌ سَنِيَّةٌ ضَرُوْرِيَّةٌ

...لاسه چې مصنف په مَراقی کی دخروج دمَنی په شهوت سره بیله جماع یو بل صوت راوړی

دی لکه چی یوسَړی پَلاس کی ځان اِنزال کړی. **مَسْئَلَه** : په دی باره کښی داد
بحرُ الرائق د محیط څخه داسی نقل کړی دَی. که یوسَړی ماینه نه لری، او شهوت یې
ډیروی او بیریږی چی یا زِنا یا لواطت به ترې صادرېږی. هغه اجازه ده چی په
خپل لاس کی ځان انزال کړی دَ یاره دا، امَولو دَشهوت خپل مګر په دی فعل کښی
نسته. حضرت الامام الاعظمؒ وائی یَنجُوْ رَاْسًا بِرَاْسٍ»، دی سَړی نجات پیدا کړ
سَر په سَر یعنی نه ده ته ثواب سَته او نه عذاب. او که سړی دَشهوت پرستۍ
دیاره دغه کار کاوه - بیا داکار حرام دئ. په حدیث شریف کی راغلی» نَاکِحُ
الیَدِ مَلعُوْنٌ». او د سَعید بن جُبیرؒ څخه روایت دی چی یو قوم خدای په عذاب
کړه په سَبب د دی چی دوئ په لا سو کښی ځا نونه انزالوه»
**واوره:** چی او وه قسمه خلګ خدائ په نظرد رحمت نه ور ته ګوری یو دن
څخه نَاکِح الیَد دی: ابن جریج وائی ما د عطاءؒ څخه په باره کښی دَدغه کار
پو ښتنه وکړه. هغه وَوَیل چی مکروه دی. او هغه ته یاته کړه چی په ورځ دقیامت
به بعض قوم حشر سی چی په لاسو کښی بی حمل وی. نو ده وَوَیله چی زما ګمان کیږی
چی دا قوم دغه فعل کوونکی به وی. **مَسْئَلَه** : دحضرت الامام الاعظم او امام
محمدؒ مذهب دادی چی شهوت په نیز د جلاوالی دَ نطفی دَملا څخه فقط شرط دی
او تروخته دَ وتلو د ذکره څخه دوام نه غواړی. او امام ابی یوسفؒ وائی چی تر وخته
دَ وتلو دَمنی دوام دَشهوت شرط دی **فَائِدَه**: د دی خلاف دَاده که دیو سړی
دَملا څخه په شهوت نطفه جلا سوله او ده د ذکر سر ټینګ کړی، چی شهوت یا
سوړ سُو بیا نطفه ایله کړه.
دامام اعظمؒ او محمدؒ پر مذهب غسُل کول پر لازم دی. او په نیز د امام ابو
یوسفؒ غسُل نسته باندې. او بله فایده په دَاده که د یو سَړی څخه مَنی وَوتله
پر هغه ځای غسُل وکړی او لمونځ یې هم وکړی. ور وسته نور مَنی را وَوتله لمونځ
خو اتفاقا صحیح دَی. لکن دَطرفینؒ په نیز غسُل بل پر لازم دی او د امام یوسفؒ





نیز غسُل اول کافِی دی. او که چیری د یوسَړی نطفه راوَوتل نو ده بولی وکړی
او بیا ده سو او یا یه ډیر تګ وکړی بیا یه غسُل وکړی او ور وسته نور مَنی
راووتله بَل غسُل په اتفاق پری نسته: **سَوَال**: دغه وویل سوله که پر زړ
جماعو واوړی مثلاً دخوب په وخت کی او که پر ښځه اودَس واوړی ایا پر
ښځه هم دغه شان اودَس اوړی **جَوَابْ** هواوړی د بخاری دَروایت سره سم
پوښتی دَرسُول الله صَلی اللهُ عَلیه وَسَلم څخه پوښتنه وکړه. هَلْ عَلَی المَرْاَةِ
اِذَا هِیَ اِحْتَلَمَتْ قَالَ نَعَمْ اِذَا رَاَتِ المَاءَ» یعنی آیا پر ښځه غسُل سَته چی
شیطان یه خطا باسی. عَلیه السلام وَرته وَوَیل هُو چی او به وویني یا پر بدن یا پر
پرتاګه.
**پُوښتَنَه** : زمونږ نران خوچی په خُوب کی اودَس پر واوړی نُو وائی حتی د
ښځو په مخکښو چی دَشپی معذور سوی وَم، یا شَیطان بازی راکړی وَه، او ښځی
دا خبره نه کوی حتی څخه پلها بین کښو هَم» **جَوَابْ** دَ ښځی چونکه شرم ډیر دی
نو ځکه دا خبره نَسی کولای بلکه په بها نه دسَر پریولو په غسُلخانه ننوزی او
هوری خپل غسُل وکړی. او دا خبره ضروری ده هرڅوک چی شهوت او نطفه لری
خواه مخواه اودَس هَم په ویښه دَ جماعُو په سَبب هم په خوب کی اودَس پر اوړی
که ښځی نطفه نه درلودای. نو د یوائی ترد نطفی څخه عیال نه پیدا کیږی. قَالَ

**وَتَوَارِیْ حَشَفَةٍ اَوْقَدْرِهَا مِنْ مَقْطُوْعِهَا فِیْ اَحَدِ**

او بل واجبوونکی دَغسل پټ والی دی د غړ سَر او یا په قدر د حشفه کی حشفه
پری وَه . په یوه کښی د دوولا روچی کُس او کُنه
**سَبِیْلَی اٰدَمِیٍّ حَیٍّ** ده لکن دا نسان چی ژوندی وی. **پوه سَه**
چی حشفه د سُنتی تر ځایه پوری ته ذکرته وائی . لکن ننوتل دَبولی حشفی واجبوونکی
دغسُل دی او که چیری کم تر حشفی یا تر قدر د حَشفی ننوزی غسُل نه واجبیږی.

قَاله الطحطاوی نقلًا عَن القهستانی. **فَائِدَہ**: غسل پر ښځه هلته واجبیږی چی په یوه کښی ددوو لارو ددی ننوزی ذکر د انسان اوکه د لنګوټی د بیزو ګیانو مثلاً غنر په ننوزی ترمغه چی پرده ی اودس وا نه وړی غسل نه دی پر واجب او نر کښه هم پر دغه قیاس دَه» اوهغه انسان چی د اشتهاء په ځای که چیری دی د کښنی اله په ځان چخ کړی ترهغو چی انزال نه سی غسل پری نسته.

**پُوه سَه** چی غسل پر فاعل او مفعول دواړو فرض دی که مکلف وه او که مراهق یعنی بلوغ ته نزدی وه نو هم په امر کیږی د پاره د عادت نیولو.

**مَسْئَلَهُ** که یو نر د کښنی جنلی سره جماعی وکړی او د ذکر سر یه په کښنی پټ کړ او کس ته یه تاوان نه وړ سیدی پر دغه نر که څه هم نسی انزال غسل فرض دی»م

**مَسْئَلَهُ** که سری خپل ذکر په ټکره کښنی وپیچی او د ښځی په فرج کی داخل کړی او انزال نه سو بیرته یه ړ او کښنی نو اصح خو داده کی ګرمی د کس د ښځی او خوند احساس کړی غسل پر واجب دی او کی احساس نه کړی غسل پری نسته. لکن احتیاط دا دی چی غسل وکړی. لِقوله عَلیه الصَّلوٰة وَالسَّلام: اِذَا الِتَقَی الخِتَانَانِ وَغَابتِ الحُشْفَةُ وَجَبَ الغسُلُ اَنزَلَ اَوْلَمْ یُنزِلْ. او مصنف دژ وندی قید وَوایه ولی کی د مړی ښځی سره دغه کار وکړی ترهغو چی انزال نسی غسل پری نسته. قال المصنفؒ

## وَاِنْزَالُ الْمَنِیّ بِوَطْیِ مَیْتَةٍ اَوْ بَهِیْمَةٍ

او بل غسل واجبوونکی انزال دی د منی په وطی سره د مړی ښځی او یاد چارپای لکه خره، غوا، وغیرهما. د دی مسئلی معنا داده چی په مطلق داخلولو د ذکر په فرج کی د مړی ښځی یا خری مثلاً غسل نه واجبیږی ترهغو چی انزال نسی. که انزال سو غسل پر فرض دی» قال»

## وَوُجُودُ مَاءٍ رَقِیْقٍ بَعْدَ النَّوْمِ اِذَا لَمْ یَکُنْ ذَکَرُهُ مُنْتَشِرًا قَبْلَ النَّوْمِ

اودغه رنګه غسل واجبوی لیدل د اوبو نریو یعنی چی د منی خیال هم نه کیږی. پس له بیداری د خوب نه لکن دا بلته چی ذکر د ده.





تاک او و لاړه وی ترخوب د مخه. په مراق کی وائی چی احتلام یه هم په یاد نه وی.

**پُوه سَه**: چی دا حکم د غسل مذهب دی د حضرت الامام الاعظمؒ او د حضرت الامام محمدؒ او ابو یوسفؒ وائی چی غسل نسته باندی ولی چی دا نرمی او به مذی ده او په قول د ابی یوسفؒ خلف بن ایوبؒ. او ابو اللیث السمرقندیؒ هم اختیار کړی دَه. او قیاس هم د غه تقاضا لری. طرفینو لره دلیل دا دی چی د رسول الله صَلی اللهُ علیه وسلم څخه چا پوښتنه وکړه. چی یو سړی چی پر بدن یا پر تا ګه لندوالی ووینی او احتلام یه یاد نه وی! قَالَ یَغْتَسِلُ» علیه السَّلام جواب ورکړی چی غسل به کوی. او بل دلیل دا دی چی ګاهی ګاهی منی په سبب د یو عارض نرم ګرځی او احتیاط په باب کی د عبادا تو لازم دی» او کی ذکر منتشر وو ترخوب د مخه نو دا تجربه ده چی د ولاړ ذکره څخه مذی وزی نو ځکه موږ دا نرمی او به پر مذی حمل کوو» او غسل پر واجب نه بولو.

**مَسْئَلَه**: که میړه او ماینه سره یو ځای بیله پرتا ګه بیده وه چی ړ او پس سوله په ما بین کی د دوی او به وی. نو که د یوه د دوی څخه احتلام پیاد وو خو پر هغه غسل لازم دی. او کی نه وو پیاد. نو که دا او به ختهه او سپینی او یه او د والی پرتی وی نو پر نر غسل لازم دی. او که هغه او به نرمی او زیړی او یه پسار پرتی وی نو پر ښځه غسل لازم دی. او کی هیڅ تمیز نه کیدی دواړه به غسل کوی» کذا فی معتبرات الفقه.

**فَائِدَہ**: بحر الرائق دا مسئله یعنی د لیدلو د اوبو پر بدن یا پر جامه پس له خوبه څخه پر د ۱۴ ولس وجهی بیان کړی ده. چی حاصل یه دا دی ۱ یا بی یقین وی چی منی ده ۲ یا بی یقین وی چی مذی ده ۳ یا بی یقین وی چی ودی ده ۴ او یا بی شک وی په اول او دوهم کښی ۵ او یا بی شک وی په اول او دریم کی ۶ او یا بی شک وی په دوهم او دریم کی. دا خو شپږ صورته سوه. او پر هر تقدیر د دغو شپږو یا بی احتلام پیاد وی یا نه. نو شپږ چی په دوو کی ضرب کړی د ۱۲ دوولس جوړیږی. نو په هغه صورت کی چی یقین یه وی چی منی ده کی احتلام پیاد وی او که نه غسل

پر لازم دی. او دغه رنګه غسل پر واجب دی کی یقین ووچی مذی ده لکن احتلام یې یاد وو.
او دغه رنګه غسل واجب دی کی شک ووچی منی ده او که مذی یا شک ووچی منی
او که ودي. او یا شک ووچی مذی ده او که ودی لکن په دغو صورتو کښې احتلام یې یاد وو.
داخو په اتفاق د درو سره امامانو. او د اهم اتفاقی حکم دی کی یقین ووچی دغه او به
ودی ده کی احتلام یې یاد وی او که نه ا. او یا شک ووچی مذی ده او که ودی لکن
په دی دوو صورتو کښې احتلام نه وو یې یاد.

او که چیری شک ووچی منی ده او که مذی. یا شک ووچی منی ده او که ودی او احتلام
یې یاد نه وو نو غسل پر واجب دی په نیزد طرفینو خلافاً لابی یوسف. **پوهه**
چی مراد د یقین نه په دغو مسئلو کښې غلبة الظن دی. ولې چی حقیقت یقین مشکل دی
کذا فی «ط» قال المصنف

## ووجود بلل ظنه منیا بعد افاقته من سکر او اغماء

او دغه رنګه غسل واجبوی لیدل د لندوالی چی د سړی غالب ګمان داوی چی دا منی ده. او دا
لندوالی وویني پس له دې چی دا سړی پر سد سی د مستئ نه او یاد بیهوشتیا نه.
حاصل دا چی یو سړی شراب مثلاً چښلی وه او یا بیهوشه سوی ووچی په هوش کی
راغلی. یعنی مستی یې ولاړه او یا بیهوشتیا یې ختمه سوه. نو پر بدن او یا جامه
یې لندوالی ووچی دا ده غالب ګمان داسو چی پر دا ودس او بنتی دی. او د لندوالی منی
ده غسل پر لازم دی. او کی غالب ګمان دا وو چی دا مذی ده غسل نسته باندی. او دا
غسل په اول صورت کی احتیاطی دی. قال المصنف

## وبحیض ونفاس

او دغه رنګه غسل فرض دی په حیض او نفاس سره یعنی چی نجاست نه د حیض او نفاس نه
خلاص سی نو غسل کول پر فرض دی. دا حکم اتفاقی دی او په قرآن سره ثابت
دی.

اللهم اغفر لمؤلفه ولکاتبه آمین





## ولو حصلت الاشیاء المذکورة قبل الاسلام فی الاصح

که څه هم حاصل سی دغه شیان چی ذکر سول یعنی وطی او حیض او نفاس وغیره چی موجبات
د غسل وه د مخه تر اسلام په اصح روایت کی. ولې چی د کفر په وخت کښې چی دی جنب
وو هغه جنابت یې پاته دی او په اسلام سره نه زائلیږي. او پس له اسلام د
لا مخه تلاوة القرآن وغیرهما دپاره پاکوالی د جنابت نه شرط دی. قال المصنف.

## ویفترض تغسیل المیت کفایة

او فرض دی غسل ورکول و مړه ته لکن دا فرض کفائي دی چی یو څوک یې ورکړي د ټولو
مسلمانو غاړی خلاصیږي او که هیڅ چا ورنه کړي د ټولو حاضرو خبرو مسلمانو غاړی
بندی دي. **فائده**: مصنف که څه هم مړی مطلق ذکر کړی دی. لکن
هغه مقید په دی دی چی مسلمان به وي. او بل دا چی داسی کار او یشی به نه وي
پکښې چی غسل یې ساقط وګرځي. لکه جنایت د بغاوت و حکومت اسلامي ته یا
شهادت فی سبیل الله وغیره. او دغه رنګه دي حکم نه مستثنی دي خنثی
مشکل. خنثی مشکل چی مړ سی څوک وائي تیمم دی ورکړي. او بعض علماء وائي
د کالو سره دي پری مینځي. والاول اصح.
**پوهه**: چی د مړي د غسل دپاره نیت شرط دی. د غاسل د غاړي خلاصیدو
دپاره نه دپاره د پاکوالی د مړي. کذا فی فتح القدیر. قال المصنف.

## عشرة اشیاء لا یغتسل منها مذی وودی

لس شیان دي چی د هغو نه غسل نسته (یعنی غسل پر سړي واجب نه دی) هغه مذی او ودی دي.
د مذی لفظ په زور د میم او په سکون د ذال. او بعض وائي چی په زیر د ذال سره ده
تخفیف د یاء. او بعض د کسری د ذال سره په تشدید د یاء وائي. مذی سپینی او بر

دی نری چی په وخت کی دَ شهوت راوزی. دفق ورسره نه وی. او بعض وخت په
پـه وَتلو سَرې پوه نَسِی. او دا مذی تر نرو پـه ښځو کښی ترنرو ډیر پیداکیږی
او د ښځو ومغی تر»، قَـذْ ی وَائی پـه زورد قـا ف او سکون د ذال. او لفظ د
وَدِی پـه زور د واوا و سکون د دال سَرہ تخفیف د یاء دی. او «ودی» سپینی او بډ
دی خرینی ختم او گاهی تر بولود مخه او گاهی وروسته تر بولو راوزی.

**پـوهـسـه**: چی پـه اتفاق د ټولو اماما نو پـه دی دوو کی غسل نشته »م، ط،
او گاهی وَدی په پورته کولو سَرہ د دَرانه شی هم راوزی. او پـه دواړو اودس ماتیږی.

## وَالِاحْتِلَامُ بِلَا بَلَلٍ
اودخوبـه څخه احتلام چی لندوالی پر بدن او جامه نه وی یعنی خوب یه بیاد وی چی ما
د جاسره وطی وکړې لکن لندوالی نه وی. او ښځه لکه نر داسی ده پـه دَغو احکامو کی. م. پـه
ظاهِر روایت کی. او امام محـمَّدُ وَائی چی غسُل پر ښځه واجب دی د پاره د احتیاط»
کذا قال الطحطاوی. **فـائـدَه**: احتلام محال دی پر انبیاء عَلیهم السلام. ولی
چی دا کار شیطانی دی او انبیـاء عَلیهم السلام معصُوم دی د شیطان د غلبه څخه
که څه بعض وخت وسوسَه وراچوی. قاله الطحطاویؒ ناقِلًا عن بعض الائمة»

## وَوِلَادَةٌ مِنْ غَيْرِ رُؤْيَةِ دَمٍ بَعْدَهَا فِي الصَّحِيحِ
او زیږیدل د کچینی د ښځی څخه بیله لیدلو د وینو پس له ولادت څخه په صحیح روایت
کښی»، چی دا مذهب د یا رانوُ دی. او امام اعظمؒ وَائی چی پر د غه ښځه غسل واجب
دی احتیَاطًا. ولی چی ولادت بیله وینو که څه هم لږ وی غالبًا صوت نه لري. قـال

## وَاِيلَاجُ بِخِرْقَةٍ مَانِعَةٍ مِنْ وُجُودِ اللَّذَّةِ
او غسل نه واجبوی ننه ایستل د ذکر پـه فرج کښی د ښځی سره د داسی ټکره چی مانع
وی د وجود څخه د خوند وی. یعنی یوسړی پرخپل ذکر با ندی پنده ټکره ونیچی





او بیائی د ښځی په فرج ننه کړی. چی هیڅ خوند نه ورکوی غسُل نه واجبوی.»
**سوال**: مصنفؒ د مخه حرارت او لذت دواړه ذکر کړه او دلته یی یوائی لذت ذکر کړی.
**جواب**: لذت او حرارت سَرہ لازم او ملزوم دی. **پـوهـسَـه**: چی دا حکم
بناء پر صحیح روایت دی لکن احتیاطًا غسُل پر واجب دی«م» قالَ المصنفؒ

## وَحُقْنَةٍ وَاِدْخَالُ اُصْبُعٍ وَنَحْوِهٖ فِي اَحَدِ السَّبِيلَيْنِ
او دغه رنگه غسل نه واجبوی»، دستور) په بل عبارت (اماله) یعنی هغه چی یوسړی قبض
اوسُده وی د کـنی د خوا د وا پـه کښی تو نیوی. او یـا گوته یا مثل دگوتی لکه پوست
شم، وغیره پـه یوه کښه د دوو لارو یـا کُنه یا کُس. **پوهسَه**: چی دستور
خو د پاره د دَوادی دَ شهوت د پاره نه دی او گوتـه او مثل د هغی که څه هم د قضاء د شهوت
د پاره وی لکن شهوت یـه قاصِر او کم دی. نو تر هغو چی انزال نه سی غسل نه دی پر واجب
**فـائدِه**: پـه ننی زمانه کی بعض ښځی شهوت پرستـه. پنده شم رانیسی
او سَریـه د ذکر د سَر پر وَزم ورجوړ کړی. نو رخو. شم پوست لکه کلک ذکر دا سی
دی. نو که ښځه باکره وی د دې سَبَبه چی بکارت يې زایِل نه سی. د غه شم
پـه کونه ننـه باسی او را کـاږی ترڅو چی اِنزال کیږی.
او که باکره نه وَه نو بیَا یه مهبل ډیری وطی نسی کولای. او یا مسافر وی نود غه
شمع پر کُس استعمالوی څو چی انزال کیږي. نو پـه دی گردو صُورتو کښی
غسل پر واجب دی. او که نر دا غسی وکړی هم غُسل پر واجب دی. او دا کار
که د پاره دُ تسکین د شهوت وو خو راسًا برأسٍ خلاص دی. او که د پاره د قضاء
د شهوت وو نو گناه هم دَه»، کمَا فی الاستمناءِ وَقد مَرّ تفصیله» قـالَ المُصنفؒ.

## وَوُطُوْءُ بَهِيْمَةٍ اَوْمَيْتَةٍ مِنْ غَيْرِ اِنْزَالٍ
اودغه رنگه غسل نه واجبوی
وطی کول د یو چارپای لکه خره یـا مړه ښځه چی بی انزاله وی. وجه یه دا ده چی

په دی دوو کښی کامل شهوت نشته ۔ قال المصنفؒ۔

## وَاِصَابَةُ بِكْرٍ لَمْ تُزَلْ بَكَارَتُهَا مِنْ غَيْرِ اِنْزَالٍ

او واغزنگه غسل نه واجبوی رسیدل یعنی غوول د باکری ښځی چی په د غه غوولو سره یه د بکارت پرده نه سی خیری لکن بیله انزال څخه او که انزال سو بیا غسل پر واجب دئ.

**پوهسه:** چی د بکارت پرده ودالآن ته د فرج دومره نژدی ده که چیری سړی تموله حشفه ننه باسی خواه مخواه هغه پرده څیریږی. نو هغه پرده نه سوه خیری نو معلومه سوه چی تموله حشفه په فرج کی نه ده داخله سوی بلکه صرف په د هلیز کښی د فرج ده» قال المصنفؒ.

# فَصْلٌ

## يَفْتَرِضُ فِي الْاِغْتِسَالِ اَحَدَ عَشَرَ شَيْئًا

دا فصل دی ۔ فرض گڼل کیږی په غسل کښی یوولس شیان. **پوهسه:** چی د دغو یوولسو کارو مرجع یو دی ـ چی هغه رسول دا و بودی و هغه ټولو ځایو ته د بدن چی رسیدل دا و بو و ر ته ممکن وی. لکن مصنفؒ د پاره د ښه تعلیم یوولس کړه.

## غَسْلُ الْفَمِ وَالْاَنْفِ وَالْبَدَنِ مَرَّةً

پر یوله دی دخولی او د پزی او د بدن یو وار **پوهسه:** چی لفظ د مَرَّةً قید د درو سره و دی یعنی یو یو وار خو فرض دی او دری واره والی یه سنت دی. او مبالغه په پر یولو کښی هم سنت ده ۔ مر، ط»





**مسئله:** چی جنب په ډکه خوله او به وڅښی د فرضو غاړی خلاصیږی.

**فائده:** فرض والی دخولی او د پزی د پریولو اجتهادی دی. او د امام اعظمؒ او د ده د یارانو مذهب دی. دلیل یه دا قول دخدائ دی «وَاِنْ كُنْتُمْ جُنُبًا فَاطَّهَّرُوا» د فَاطَّهَّرُوا د پاره د مبالغی دی یعنی که چیری تاسی جنب واست ځان ښه پاکوی لفظ.

**مسئله:** پر یوله دخولی او د پزی یوازی په غسل مفروض کی شرط دی یعنی غسل د جنابت او حیض او نفاس. په غسل مسنون کی لکه غسل د ورځی د جمعی یا د عرفات وغیرهما فرض نه دی بلکه سنت دی» کذا فی الدرر.

**مسئله:** که د چا د غاښ مابین خالی وو. او په هغه غار کښی د وړی لویدلی وو او یا یه د غاښو په مابین کښی طعام وو او یا یه په پزه کښی لانده خیږان وو ۔ پر یوله دخولی او د پزی سره د هغو کافی دی» ولی چی اوبه لطیف شئ دی هر ځای ته رسیږی ۔ او کی په پزه کښی وچ خیږان وو هغه یه ایسته کوی نو بیه غسل صحیح دی. **مسئله:** د بعضو خلگو پر غاښو کلک خیږان وی چی اکثره د نسوار و څخه پیښیږی او د اخیږان بیله علاجه لکه په سوهان سره نه لیری کیدل ۔ او د اعلاج حرج عظیم دی بلا شکه نو غسل یه سره د هغو صحیح دی» د ر و لیش»

**مسئله:** بعض خلگ د غاښو د درد له کبله د غاښ ما بین په ډاکتر خالی کړی او بیا یه دیوشی څخه ډک کړی» آیا د دغه سړی آینده غسلونه صحیح دی او که څرنگه او آیا د غاښ د غه ډکول جائز دی او که نه! **جواب:** د غاښ ډکول خو تداوی ده په حلال شی دا تداوی خور وا ده. په شرط د دی چی په وخت کښی د ډکولو جنب نه وي. او پس له ډکولو چی جنب سی نو هغه دوا لکه جزء د غاښ دا سی گرځی. یعنی چی بیله کښلو د غاښ نه راووزی. نو غسل یه صحیح دی. کذا یفهم من الفتاوی الهندیه. او په کتابو کښی د فقهی شریفی د دی مسئلی مقیس علیه ویردی فلیطالع ثمه» د ر و لیش.

## وَدَاخِلُ قُلْفَةٍ لَاعُسْرَ فِي فَسْخِهَا

اوفرض دی په غسل کښې پریوول

د ده نَنِی خواد هغه پوست چې د ذکرپ سَر وی یعنی سَرِی ناسنت کړې وی نسو غسل کوی هغه پوستکی به چَپَه اړه وی او بیا بی مینځی لکن که چیری په چَپَه اړولو کښې تکلیف نه وو، اوکه چیری زوړ یه غوښتی بیاسره دقلفتِ یه غسل صحیح دی : قَالَ المُصنفُ .

## وَسُرَّةٍ وَثُقْبٍ غَيْرِ مُنْضَمٍ

اوفرض دی پریوله دنُودغاړ ولی چې دَباندی جزء دی او په پریو لو کښې حَرَج (تکلیف) نشته. اوفرض دی پریوله دهغه غار چې دغوښې ډک سوی نه وی. لکه د لعض ښځو په پزه کښې غارد تیک دپاره. اویا دا کثرو ښځو غوږو غارونه دغوږ والیُو دپاره. اویا نورد غه قسمه غارونه.

**مَسْئَلَهْ** د ښځې دَفرج د شونډانو پریوله فرض دي. ولې چې دا لکه خوله داسی ده. او د داخِل دفرج پریوله نه غواړی چې گوته به ورننباسی. ولی هغه لکه حَلق دی.

**مَسْئَلَهْ**: د غُسل په وخت کښې بـه هَغه شئی دَبَدنه لیری کوی چې مانع داوبو رسیدو وی وپوست ته، لکه موم یا لانده اوړه. **مَسْئَلَهْ** د رنگریزنو نوکانو رنګ پروانه لری. او د ما بین د نوك او وَرِی خیرہ مانع دَغسل نه ده، که سړی بناری وی اوکه صحرائی وی پـه صحیح روایت کی. اوبعض فقهاءؒ وائی چې د صحرائی دغسل مانع نه دَه. او بناری سَرِي بـه هَغه خیره لیری کوی ور نه غسل یه نه دی صحیح کڅه هم اوبـه لاندی وَنه رسیږی، «م، ط»

**مَسْئَلَه ضَرُورِيَّه**: بعض ښځې چې د کفارو د عادَت سَره شناخته سوی دی دلاسو گوتو نوکان ډیر اوږده وی. او علاوه پر هغه پوسور خته رنگ دی چې دخارجه نخه راځي. بـلکه پـه بعض اسلامی ملکو کښې هَم جوړیږی. پر د غو نوکانو وا چوی، چې دَنوك دپاره لکه پوښ بلکه عینًا پوښ سی.





چې نه په تودو اوبو اونه په صابوڼه جلا کیږی. نو د د غه ښځو که ځانونه مسلمانانی وائی. نه ئی او دَس صحیح دی او نه غسُل. چې دا دوه نه سی صحیح نو لمونځونه یـه هم نه دی صحیح. او په بعض کتابو کښې د فقه شریفی وائی چې بی او دسه سجده کول کفر دی.

## وَدَاخِلُ الْمَضْفُورِ مِنْ شَعْرِ الرَّجُلِ مُطْلَقًا

اوفرض دی پریوله د داخِل دکوڅیو دَنر یعنی چې د سړو ویښتیان یه لکه ښځی او داغه رنگه کوڅی وَدَلی وي. نوترهغو چې دغه کوڅی سَره خَلاصِی نه کړي غسل یه داسی صَحیح نه دی. ولی چې دَنر دپاره کوڅی زینت نه دی. لکه دَښځي. نو په غوړولو کښې که حَرَج نشته. **پـوښـتـنـه**: چې د مطلقًا د لفظ ترجمه مَراتِی داسی کړی ده، «سَوَاءٌ سَرَى الْمَاءُ فِي أُصُوْلِهِ أَوْلَا» خواه ننوزی اوبـه په بیخو کښې دکوڅی اوکه نـه! امام طحطاویؒ پرد غه تفسیر داسی سوال کړی دی ۔ وَفِيهِ إِنَّهُ إِذَا سَرَى فِي أُصُوْلِهِ وَعَمَّهُ الْمَاءُ كُلَّهُ لَا يَلْزَمُ دَلُّهُ» پـه دی تفسیر کی داسته چې هروخت چې اوبـه سر یان وکړی پـه بیخو کښې دکوڅیو او تولِه اصول یـه لانده سی بیا نو خلاصیده نه غواړی ط۸۲.

او بعض فقهاء داطلاق داسی ترجمه کوی" خواه داسَړِي عُلوی وی اوکه ترکی" یعنی پـه قَدیمه زمانه کښې بـه علویانو کوڅی. د سړو ویښتانو نخه جوړه وَلي - داد دوی شعار وو. او هَغه خبره چې عینی کړی ده. چې پـه علویانو کښې خلاصول دکوڅیو حَرَج دی. سَیّدؒ داخبره هرگز نه مَنی. وَاللهُ أَعْلَم، قال المصنفُ

## لَا الْمَضْفُورُ مِنْ شَعْرِ الْمَرْأَةِ إِنْ سَرَى الْمَاءُ فِي أُصُوْلِهِ

اونه دی فرض پر ښځه غوړول دَ وَدَلو کوڅیو که چیری داخلیدی اوبه پـه بیخو کښې د ویښتانو، پـه حَدیث شریف کښې داسی راغلی دی چې ام سلمهؓ سَوال وکړی د رسُول الله صَلى الله عَليه وَسَلم نخه چې زه داسی ښځه یم چې زما د سَر کوڅی

ډېرې سختې دی ایا زه ئې غوړوم دپاره د غسل دَجنابت آنحضرتؐ وهغې ته ...
وفرمائیله کافی دی تاته چې پرسَر واچوه درې وَاره اوبه لیعنی تاچه بیخونه د...
ویښتا نودی لا نده سی۔ اوبیاپرنور بَدن اوبه واچوه نوته پاکېږې

**مسئله**: که چیرې دَښځې ویښتان څپوله وه لکه کراستَه۔ اوبیا یه کُنډو... پورې مَنبلی وی۔ اوبیا بیځې ډېر وه چې په درې سَره صورتوکښې اوبه وبیخوی... دویښتا نو نه رسیدَلی۔ نوبیا فرض دی چې سَربه غوړه وی لیعنی کوڅې په خلاف... م، ط، ص۸۲

**مسئله**: پرښځه باندی فرض نه دی رَسَول داوبو وما بین ته دکو... پرصحیح روایت۔ اوبعض فقهاءؒ وَائې چې لندَول دکوڅیو ضروري دی۔ اوبعض... وائې چې پریوَله دکوڅیو ضروري دی که څه هَم ترپښو تیر وی. وهٰذا بخلاف الرجل فانه یفترض عَلیه بل الذوائب کلها «ط» قَالَ المُصنفؒ.

## وَلُبُشَرَةُ اللِّحيَةِ وَلُبُشَرَةُ الشَّارِبِ وَ الحَاجِبِ وَالفَرجِ الخَارِجِ

اوفرض دی پرتر باندی پریوله دپوست دږیرې» (اِ وائې که څه هم ږیره گڼه وی اوده... رنگه دوېښتا نو دږیرې۔ اوفرض دی په غسل کی پریوله دپوست دبریتو لیعنی کی... څه هَم بریتونه ډېرغټ وي۔ اوفرض دی پریوَله دپوست دَوَرځو، اوفرض دی پر ښځه باندی پریوله دد باندی دَفرج

**مسئله**: که چیرې اوبه په پیسووی... نود ښځی دچینګ داوبو داوداسه داوبو دغسل داوبو روړې پر میره دي.

# فصل

دا فصل په بیان کی دسُنتو دغسل دی» قَالَ المصنفؒ. ویلی دی مصنفؒ

## یَسُنُّ فِی الاِغتِسَالِ اِثنَا عَشَرَ شَیئًا

سنت دی یه غسل کی دوولس شیان



## اَلاِبتِدَاءُ بِالتَّسمِیَةِ وَ النِّیَّةِ

شروع کول په بِسمِ اللهِ آه اوپه نیت سَره . چونکه بِسمِ الله قولی شی ده او نیت دزړه شی دی نودې دی دَواړو یوځای والی ممکن دی، سنت والی د بِسمِ الله په دغه حدیث شریف دی» کُلُّ اَمرٍ ذِیْ بَالٍ لَم یُبدَءُ فِیهِ بِسمِ اللهِ الرَّحمٰنِ الرَّحِیمِ فَهُوَ اَبتَرُ» اوشك نسته چې غسل کول خو امر ذي بال دی

**سوال**: بِسمِ اللهِ الرَّحمٰنِ الرَّحِیمِ خو قرآن دی او جنب خود قرآن دتلاوت څخه ممنوع دی

**جواب**: هغه چې اتفاقًا قرآن وی، بِسمِ الله په نیزد امام مالكؒ قرآن نه دَه. نوځکه یه وپیل وجُنب ته روادی. او ابتداءَ په نیت سره دي سَببه غواړی چې دا غسل یه دَثواب موجب وګرځي. لقوله علیه الصلوة و السلام» اِنَّمَا الاَعمَالُ بِالنِّیَاتِ. الحدیث بخاری . قَالَ المُصنفؒ»

## وَغَسلُ الیَدَینِ اِلَی الرُّسغَینِ

اوپریوله دَلاسو دی ترَاولو بندوپورې۔ **پوه سه** چې بِسمِ الله»چې قولی عَمل دی۔ او نیت چې قلبی کار دی اودلاسو پریوله چې فعلی عَمل دی سَره یوځای به وی۔ کذا یفهم من م» قَال المُصنفؒ

## وَغَسلُ النَّجَاسَةِ لَو کَانَت بِاِنفِرَادِهَا

اوبل سنت دغسل پریوله دی د نجاست که چیرې وو یوازې. لیعنی کی برلاسو یا بل ځای نجاست وُو۔ نو دَهغه پریوَله تنها د مخه تر اوداسه او غسل سُنت دی۔ تاچې پرتوتولو داوبو سره هغه نجاست نورو ځایونه وَنه بهیږی. مونږچې داوَیلیه چې دَمخه آه نوهغه سوال نه واردیږی چې پریوله دَقدر مانع د نجاست خوفرض دی. نوشیخ ولې په سُنت کښې راوړی۔ حاصِل دجواب دادی چې سُنت یه تنها دمخه تراوداسه اوغسل پریوله دې۔ اگر که نفس ازاله یه فرض دَه»

کتبه احقر فضل الحق حقانی عفرله البَاری

**وَغسَلُ فَرجِهِ پوهسه** اودغړنګه سُنت دی پریوله دَفرج یعنی دمخه ترغُسله : چی مراد د فرج مخه دَلته منځا
دی چی په وخت کښی د ناستی د استنجاء پرځول سَرَه خلا صیږی اوچی ولاړیږ
سو ټولیږی لکه کُنه او کُس.
د دی سنت سَبب دادیُ چی دغاسِل یقین سِی چی د کُنتی یاد کسُ ویتموځایوته مُ
اوبه ورسیدی. **فَائِدَه**: داپریوله سُنت دی که څه هم پرفرج نجاسَ
نه وی» کَمَا یُفهمِ مِنْ بیَانِ السبب» قَالَ المُصنفُ.

**ثُمَّ يَتَوَضَّاءُ كُوضُوئِهِ لِلصَّلوٰةِ فَيُثَلِّثُ الْغَسَلَ وَيَمسَحُ الرَّأ**

او بیا دی اودس تازه کړی لکه اودس د پاره د لمانځه نودری واره به کوی پریوله دمغو
اندامو چی پریوله کیږی په اوداسه کی او مسح دی وکړی پرسر **پوه سه**
چی په مسح کښی د سَر اختلاف دی داچی شیخ کرمدا ظاهرِ روایت دَی. وَهُوَ الاصح
او بعض فقهاءؒ وائی چی دَمسح نه غواړی ولی چی اوبه پرتوئیږی. دلیل دظاهر
روایت دادیُ چی په صحیح حَدیث کی داسِی رَاغلی دی چی رسُول الله صَلی الله علیه
وَسَلم: تَوَضَّأَ قَبْلَ الْاِغتِسَالِ وُضُوءَهُ لِلصَّلوٰة، یعنی رسُول اللهؐ به اودس
تازه کاوه دَمخه ترغُسل لکه اودس دپاره د لمانځه اوشك نسته چی اودس نودړ
پریولواودسَر د مسحی دواړو دَیُ. د دی حَدیث روایت شیخ وسرو امامانو دَحد
کړی دی. او اصلِ راوی یه اُمُّ المؤمنین میمونه رضی دَه **فَائِدَه**: په
هغه اوداسه کی چی د مخه ترغسل به کوی مراعات دَټولو فرائِضو سُنتو مستحباتو به کوی

**وَلٰكِنَّهُ يُؤَخِّرُ غَسلَ الرِّجلَينِ اِنْ كَانَ يَقِفُ فِي مَحَلٍ**

**يَجتَمِعُ فِيهِ المَاءُ** لکن دی ځندوی پریوله دَپښو یعنی داوداسَه په وخت
کی دی نه مینځیُ که وودغاسِل ولاړ په هغه ځای کی چی



دَ نه مینځی ... ورو سته ترغُسل
... هلته اوبه د غسل جمع کیدی. دلیل دتاخیریه دادی چی ورو سته ترغُسل
... ته د پښو و پریولوته ضرورت سته چی د هغه مُستعملو اوبو ځنه
... غسل پاکی یی. نواول پریوله یه بی فائدی دیُ»
**... فَائِدَه** سوال په هغه حدیث کښی چی عائشهؓ روایت کړی او بخاری
اومُسلم هغه حدیث روایت کړی دی» په هغه کښی تاخیر د
... غسل الرجلین نسته. بلکه لفظ د«وضوء الصلوٰة» راغلی دی او په اوداسه کی دلمانځه
... غسل الرجلین نسته
... تاخیر د غسل الرجلین نسته
... وتاخیر د غسل الرجلین نسته
... ولکه بعض مشائخ وائی چی دَپښو پریول دی نه ځندوی. لکن صحیح هغه خبره
... ده چی مصنفؒ وکړه چی پریوله دَپښو دی وځندوی. ولی چی په حدیث کښی د
میمونهؓ داسی راغلی دي» ثُمَّ تَنَحّٰى عَنْ مَقَامِهِ ذٰالِكَ فَغَسَلَ رِجلَيهِ» بیا
ورو سته ترغُسل علیه السلام گوښه سو د هغه ځایه څخه چی غسل یه هلته کړی
... نو بیایه پریولی پښی مُبارکی. او دوایش وائی چی بعض شارحینو د حدیثو دی
... وو حدیثو تطبیق داسی کړی دی چی حدیث د عائشهؓ محمول پر دې دی چی
... علیه السلام داسی ځای غسل کاوه چی هلته اوبه د غسل نه جمع کیدیُ.
... نو پښی یه د اوداسه سَره پریولی. او حَدیث د میمونهؓ محمول دی پردی چی
... علیه الصلوٰة والسلام داسی ځای غسل کاوه چی هَلته اوبه د غسل جمع کیدیُ.
... نو ځکه د هغه ځایه څخه گوښه سُو او پښی مبارکی یه پریولی. وهذا معنٰی
... قول المجتبٰی وَالاصح التفصیل» قَالَ المصنفُ.

**ثُمَّ يُفِيضُ المَاءَ عَلٰى بَدَنِهِ ثَلَاثًا** یعنی تر اوداسه دې وروسته توی کړی
... اوبه پر ټوله بدن دری واره. **مسئَلَهُ** بعض فقهاءؒ وائی چی اول د ...
... دری واره اوبه پر راسته اوږه توی کړی دری واره. بیا دی پر چپه اوږه توی
کړی دری واره.

اوبیادی پرسر اونور بدن توی کړی دری واره. وَالِیٰ هٰذَا ذَهَبَ الحلوانیؒ وَ
کثیرمَن الفقهاء. اوبعض علماء وائی چې اول راسته اوږه دہ اوبیا سرته
اوبیا چپه اوږه دہ. اوبعض وائی چې شروع دسره څخه وکړي. قَالَ المصنفؒ

**وَلَوِ انغَمَسَ فِي المَاءِ الجَارِيْ اَوْمَا فِيْ حُكْمِهٖ وَمَكَثَ فَقَدْ اَكْمَلَ السُّنَّةَ**

اوکه چیرې یوجنب سړی غوټه شو په جاری اوبو کې چې په حکم کې دجاری اوبو
که لښ په لښ کې حوض. او په هغوکې درنګ وکړي په قدر داودا سه اوغسل
نوهغه سړي پوره کړه طریقه مسنونه دغسل **مسئله** که څوک جنب وو او تیز
باران ته ودرېږی په اندازه داودس اود غسل. نو طریقه مسنونه دغسل یې پر ځای کړه
ولې چې په دی دواړو طریقو کښې په غسل کې ښه مبالغه وشول. م. مراقی الفلاح.

**وَيَبْتَدِئُ فِيْ صَبِّ المَاءِ بِرَأْسِهٖ وَيَغْتَسِلُ بَعْدَهٗ مَنْكِبَهُ الْاَيْمَنَ ثُمَّ الْاَيْسَرَ**

اوشروع دی کوی غاسل په حال کښې د تویولو داوبو په
سرېره. یعنی اول وارد ی اوبه پرسر توی کړي» ولې چې ان
حضرت صَلَّی اللّٰهُ عَلَیهِ وَسَلَّم هم داغسې کړی دی. اوبیادی پر راسته اوږه اوبه توی
کړي اوبیادی پرچپه اوږه اوبه واچوی ددی دپاره چه تیامن حاصل » قال.

**وَ يَدْلُكُ جَسَدَهٗ وَيُوَالِيْ غَسْلَهٗ**

او بیادی ومونږی تولو اعضاء دبدن خپل او پی دی کوی پریوله داعضاوو. **پوهسه**: چې دَلك (مَښوَل) په اول وارکې غوړول هم هغه سنت دی.

مګر بحرالرائق دفتح القدیر څخه نقل کړی دی چې امام ابویوسفؒ دغه دلك واجب بولي. +

**اصطلاح**. ددی کتاب رموز « **م** معنی مراقی الفلاح **ط** معنی طحطاوی:





# فَصْلٌ

یعنی په ادابود غسل کښې

**وَاٰدَابُ الْاِغْتِسَالِ هِيَ اٰدَابُ الْوُضُوْءِ اِلَّا اَنَّهٗ لَا يَسْتَقْبِلُ الْقِبْلَةَ لِاَنَّهٗ يَكُوْنُ غَالِبًا مَعَ كَشْفِ الْعَوْرَةِ وَكُرِهَ فِيْهِ مَا كُرِهَ فِي الْوُضُوْءِ**

اوآداب دغسل په مثل دادابود اوداسه دي چنانچه وړاندی تیرسوه. مګر داچې په غسل
کی به مخامخ وقبلې ته نه درېږی یا نه کښېنی. ولې چې غسل په اکثرو اوقاتو کښې دکشف العورة
یعنی دعورت دلڅ والی سره کیږی نو نه دی مخ خوا وقبلې ته
کوی اونه دکښې خوا بلکه شمالاً یا جنوباً دی په حال کې دغسل
کښېنی یا دریږی. چونکه مصنفؒ کشف العورة د عدم استقبال دقبلې دلیل وښووله.
نوکه چیری یه عورت پټ وو نو بیا استقبال پرواه نه لري.
**پوهسه**: چې مصنفؒ په مراقی الفلاح کې داهم وئیلی دی چې مستحب دد چې په
حال کې دغسل دی خبری نه کوی که څه هم دعاوی وي. ولې چې غاسل په ځای کې دمرار بو
دی او دغه رنګه مکروه دی خبری سره دکشف العورة. او بل مستحب دغسل دَا او ښځی
دادی چې په داسی ځای کې دی غسل کوی چې هیڅ څوك یې نه وینی. یعنی داسی کسان
چې دده وعورت ته یې کتل نارواوی. ولې احتمال سته چې دده عورت به یا په حال کښې
دغسل او یا په حال کې دکالو اغوستلو وچا ته ښکاره سي.
**مسئله**: که دسړي ماینی د میړه په حضور کې لڅ په لڅه غسل کاوه روادی بې کراهته.
او بالعکس هم روادی د میړه په اجازه. **مسئله** که داوبو پرځای نر ناست وو او غاسل
ساتر نه درلود. غسل دې نه پرېږدی. او هغه دَوَل دی غسل وکړی چې څه نا څه ستر د
عورت پکښې وی. او دَ ښځی حکم په نیز د ښځو هم داغسی دی. او ښځه په مابین کې د

نرو دې غسل نه کوی بلکه غسل دی وځنډوي.

**مسئله** رواده نراوښځی ته چې په یوائې غسل‌خانه کښې کالی توله وکاږي او ځان بربنډ کړي **مسئله** هروخت چې دا مسئله سوه چې ښځه دی د نرو په مابین کې غسل وځنډوی داهغه وخت که د لمانځه وخت نه تیریدی او که د لمانځه وخت تیریدی نو تیمم دی وکړی او لمونځ دی وکړی لکن لمونځ به بیرته راګرځوي ولې چې دا عذر د بندګانو له خوا دی. طحطاوی»

# فَصْلٌ

## وَيُسَنُّ الْاِغْتِسَالُ لِاَرْبَعَةِ اَشْيَآءٍ صَلٰوةَ الْجُمُعَةِ

اوسنت دی غسل دپاره دڅلورو شیانو یعنی یو دپاره دجمعې د لمانځه قَالَ الْمَرَاقِي عَلَی الصَّحِيح، چې هغه قول دامام ابی یوسفؒ دی» دلیل په هغه حدیث دی چې په بخاری او مسلم کی راغلی دی» چې علیه الصلوة والسلام وفرمائیل که څوک راتلی دجمعې و لمانځه ته نو دی غسل وکړی. او په بل روایت کی دابن حبان المحدثؒ داسې راغلی دی» که څوک راتلی دجمعې ولمانځه ته د نرو یاد ښځو څخه غسل دی وکړي.

وَزَادَ الْبَيْهَقِيُّ فِي رِوَايَةٍ. او که څوک لمانځه ته نه راتلی دجمعې لکه مسافر یا مریض نو نسته پر هغه غسل»

**پوښتنه**: چې امام محمدؒ او حسن بصریؒ وائي چې غسل دجمعې دپاره دورځې دجمعې دی دپاره د اظهار دفضیلت ددی ورځې لِمَا جَاءَ فِي الْحَدِيثِ النَّبَوِيِّ» سَيِّدُ الْاَيَّامِ يَوْمُ الْجُمُعَةِ، **فائده**: که چا غسل وکړی په ورځ دجمعې او بیا یی اودس مات سو او دجمعې و لمانځه ته یی اودس تازه کړی نو بناءً عَلٰی قولِ ابی یوسفؒ سنت یه پرځای نه کړه او پر قول دامام محمدؒ سنت یه پرځای کړه (ولې چې دی غسل دتولې ورځې دپاره بولی» او دغرنګه پر هغه حاجی چې دجمعې لمونځ پری لازم نه وي غسل





سنت دی په نیز دامام محمدؒ او سنت نه دی په نیز دابی یوسفؒ. او هرچه غسل وروسته تر لمانځه دجمعې هغه هیڅ اعتبار نه لری په اتفاق سره» قَالَ

اوبل غسل سنت دی دپاره د لمانځه دوو اخترو

**وَصَلٰوةُ الْعِيْدَيْنِ** په حدیث شریف کی راغلی دی چې رسول الله صلی الله علیه وسلم به غسل کاوه په ورځ دکښتنی اختر او د لوی اختر او په عرفات کې.

**پوښتنه**: چې د دی دوو ورځو غسل هم دپاره د لمانځه دی پر قول دامام ابو یوسفؒ او دپاره دورځې دی په قول دحسن بصریؒ.

**پوښتنه**: مصنفؒ وویل چې غسل دجمعې سُنت دی او په حدیث شریف کی خو داسی راغلی دي» غُسْلُ الْجُمُعَةِ وَاجِبٌ عَلٰی كُلِّ مُحْتَلِمٍ یعنی بالغ» **جواب** بعض علماء وائي چې معنیٰ دواجب په حدیث شریف کی واجب شرعی نه ده بلکه واجب په معنیٰ دمتاکد دی» نو معنیٰ داسوه چې غسل دجمعې سنت مؤکد دی. او مصنفؒ په مراقی الفلاح کی دعوا کړیده چې دغه حدیث منسوخ دی په هغه حدیث سره چې رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمائیلی دی چې څوک چې اودس تازه کړي په ورځ دجمعې یعنی د لمانځه دپاره پس په سُنت طریقه یی اختیار کړه او ډېر ښه خصلت دی. او که څوک غسل وکړي غسل افضل دئ.

**وروستۍ ورائی**: چې دعوی دنسخ معلومیده د تاریخ دغو دوو حدیثو له پي. یعنې چې دوهم حدیث تر اول وروسته دی. او هیڅ محدث تاریخ نه دی بیان کړي نو اول جواب اولیٰ دی» قَالَ،،

اود غرنګه غسل سنت دی دپاره داحرام تړلو که په حج وی او که په

**وَلِلْاِحْرَامِ** عمره. ولې چې په حدیث شریف کی راغلی دی چې رسول الله صلی الله علیه وسلم غسل کاوه دپاره داحرام. **فائده** دا غسل د تنظیف دپاره دی دپاکوالی دپاره نه دی نو ددی وجهی حائضه یا نُفَساء ښځه به هم دا غسل کوي. او که اوبه نه وی تیمم کفایت نه کوی.

## وَلِلْحَاجِّ فِيْ عَرَفَةَ بَعْدَ الزَّوَالِ

اوداغسې رنګه غسل سنت دی د حاجی دپاره نه دنورو خلګو دپاره

اوداغسل به هم په عرفات کې کوی نه دباندی. او هغه هم وروسته تر زوال دَ لمر. داغسل په سبب دفضیلت د زماني دوقوف دی چې پس لزواله کیږي.

**پوهسه**: چې مصنف داقصل یوازې دمسنون غسل دپاره نه دی ایښی بلکه مندوبه غسلونه یه هم په دې فصل کښی راوړی دی نو څرنګه چې بیان دځلورو سنت ختم سو هم دااوس د مندوبه غسلو بیان شروع کوی. او وائي..

## وَيُنْدَبُ الْاِغْتِسَالُ فِيْ سِتَّةَ عَشَرَ شَيْئًا لِمَنْ اَسْلَمَ طَاهِرًا

او مندوب (مستحب) دی غسل په شپاړس شیانو کښی. چې څوک کافر وی او اسلام راوړي په داسی حال کې چې پاک وي. یعنی دجنابت او د حیض او نفاس څخه. اوکه داکافر جنب وي یا ښځه حائضه یا نفساء وی با خو غسل پر فرض دی علی المعتمد. **فـائـده**: صاحب د هدایه اکثر ددې غسلو سنت بولي. قَالَ المصنفؒ.

## وَلِمَنْ بَلَغَ بِالسِّنِّ

او هغه چاته هم غسل مندوب دی چې بلوغ ته ورسیږی دسن او عمر په لحاظ چې هغه ۱۵ کاله پر مفتیٰ به مذهب دی. چې دیارانو دی په نر او ښځې دواړو کښی. او بعض علماء وائي چې دَنر دپاره ۱۲ کاله دي او د ښځې دپاره ۹ کاله دی **پوهسه**: که ترته شیطان بازی وړکړی. یا داغسی په بل سبب او دس پرواوړي "یا ماینه لری هغه دده څخه حمل واخلي. او یا ښځه وی لودس پر واوړی یا حیض ورسی او یا حمل واخلي وهغه نر او ښځې ته چاره نسته د غسل څخه.

## وَلِمَنْ اَفَاقَ مِنْ جُنُوْنٍ

او د هغه چا دپاره غسل مندوب دی چې پر سدسي دلیونتوبه څخه. وفی المراقی. یا دسکر یعنی دمستی څخه او اغماء څخه. یا د بیهوشتیا څخه اوداغسل غسل د شکر دی.





## وَعِنْدَ حِجَامَةٍ وَغُسْلِ مَيِّتٍ

اوداغسې رنګه غسل مندوب دی چې وینې وکاږی یا رګ خلاص کړي او یا وَمړی ته غسل ورکړي. په حدیث شریف کې چې روایت یه ابوداؤد کړی دی راغلی دی چې رسول الله صلی الله علیه وسلم دَ ځلورو شیانو غسل کاوه یو د هغو څخه حجامت وو. په دی غسل سره د حجامت یا د غسل د مړي به د هغه خلافه خلاص سي چې بعض عُلماءدا غُسل واجب بُولي. قَالَ المُصنفؒ.

## وَفِيْ لَيْلَةِ الْبَرَائَةِ وَلَيْلَةِ الْقَدْرِ اِذَا رَاٰهَا

اوداغسې رنګه غسل مندوب دی په شپه کښی دَبراءت چې هغه شپه نیمی دمیاشتی دبراءت دَه. داغسل ددی شپې داحترام دَپاره دی ولې چې په دې شپه کی رزقونه او اجلُونه د خلګو ویشل کیږی او هم په دې شپه کی وَرقی د خلاص والی د دوږخ څخه نوشته کیږی د هغه چادپاره چې حقوق د شریعت یه پرځای کړی وي. او بل په دې شپه کی د ډیرو ګنا ه ګارانو ګنهونه وربخښل کیږی. **فـائـده**: داشپه په عبادت باید تیره سي. او د غسې رنګه غسل مندوب دی په شپه د قدر کی که چیری سړي په وپوهیږي. یعنی د عَلاما تو څخه د هغه شپې چې په کتابو کښی راغلی دي. او داشپه چې هم په بیداری سره او عبادت سره تیره سی ډیر ښه کار دی ، قَالَ المُصنفؒ.

## وَلِدُخُوْلِ مَدِيْنَةِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

اوداغسې رنګه غسل مندوب دی دپاره د داخلیدو وَ ښار ته دَ نبي علیه السلام داغسل د تعظیم د دغه مدینې منوری دی. او دپاره د حضور وَ قبر انور ته دَ نبي کریم صلی الله علیه وسلم.

## وَلِلْوُقُوْفِ بِمُزْدَلِفَةَ غَدَاةَ يَوْمِ النَّحْرِ

او بل غسل مندوب دی دپاره د درېدو پر مزدلفه شریفه په سحار د ورځی د لوی اختر. ولې چې مزدلفه ځای د اجابت د دعا ګانو

ولې چې آنحضرت صَلَّی اللّٰهُ عَلَیه وَسَلم پر عَرَفات دامت دپاره د مغفرت دخون او مظالمو خواست کړی وو هَلته هلته نه وو قبول سوی خو پر مزد لفه شریفه د آنحضرتؐ هغه خواست هم قبول سو" م، ط " قَالَ صَاحِبُ نُورِ الایضَاحِ "

## وَعِندَ دُخُولِ مَكَّةَ المُكَرَّمَةِ

او په وخت کی دد اخلیدو وَ مکی مکرمی ته چې افضل دځایو دی په مځکه کی په نیزد خدایؒ نو دې محترم مقام د دخول دپاره غسل مندوب دئ.

**فَائِدَه**: په نیزد حنیفیانو مکه مکرمه افضل ترین د بقاع د دنیا ده. حتی تر مدینی منوری هم افضل ده.. او امام مالکؒ افضل البقاع مَدینی ته وَائی. لکن دا خلاف په غیر کی د هغه ځای دی چې د رسول الله صلی الله علیه وَسَلم صُورت مبارک په کښی ښخ دی. حتی چې شهاب الدینؒ په شرح کی د شفاد قاضی عیاضؒ د امت مرحومَه د علماؤ و اجماع نقل کړی ده پر دی چې مدفن د آنحضرت صَلی اللّٰهُ عَلَیه وَسَلم افضل دی تر هر ځای حتی پر مکی مکرمی هم او بلکه تر عرش او کرسی هَم افضل دی.

**پوه سه**: چې هر یوه لره د مکی مکرمې او مدینې منوری ډیر نوما ن دې چې قریب وسل ته رسیږی. امام نوویؒ وائی چې په مځکه کی ډیر و نوما نو د ر لودنکی ځای بَل نسته تر مکه مکرمه او مدینه منوره " وکثرة الاسمآء تدل عَلی شرف المسمی کذا قال الامام الطحطاویؒ. قَالَ

## وَلِطَوَافِ الزِّيَارَةِ

او بل غسل مندوب دی د طواف زیارت دپاره **پوهسه** چې طواف زیارت یو د فرائضو څخه د حج دی نو باید دا طواف په اکمل د طهارتینو چې غسل دی ادا کړه سی. قَـــالَ.

## وَلِصَلوٰةِ كُسُوفٍ وَخُسُوفٍ

او د غرر نگه غسل مندوب دی دپاره د لمانځه د کسوف او د خسوف دئ کسوف د لمر تندری ته وائی. او خسوف د سپوږمی تندری ته وائی. د لیل د ندب د غسل دا دی چې په دی دوو وختو کښی نفل سنت دی نو دا لمونځ چې په اکمل د طهارتینو ادا سی بنه کار دئ.

اللهم اغفر لمؤلفه ولکاتبه ولوالدیهما.





## وَاسْتِسْقَاءٍ وَفَزَعٍ وَظُلْمَةٍ وَرِيحٍ شَدِيدَةٍ

او د غرر نگه غسل مندوب دئ په وخت کښی د طلب د مسلمانانو باران. وَلې چې په دی وخت کی مسلمانان نفلونه کوی او دعاوی کوی. نو چې اکمَل دَ طهارتینو موجود وی بنه کار دئ. او د غرر نگه غسل مندوب دی په وخت کښی د ډیری بیری دیو سبب څخه. ولې دا وخت هم د زاریو او د عا گانو دی" او د غرر نگه غسل مندوب دی چې د وَرځی پر وطن یو لوی ظلمت او تاریکه جوړه سی. او اغرر نگه غسل مندوب دی په وخت کی د را تلو د سختو بادو. که د شپی وی او که دوَرځی وی. چې دا ټول مصائب دی او د عا کول و ختونه دی نو چې اکمل د طهارتینو وی اجابت ته به د عا گانی نږدی سی. وَاللّٰهُ اَعلم قَالَ.

# بَابُ التَّيَمُّمِ

**پوهسه** چې چونکه تیمم خلف دا و بو دی نو دی کبله مصنفؒ تر طهارت دا و بو یعنی اودس او غسل ورو سته راوړی. **سَوال** مسح د خف (موزی) خو په او بو سره کیږی نو ولې ئې تیمم تر هغی د مخه کړي **جَوَاب** دَ تیمم ثبوت په قرآن مبارک سره سوی دی او د مسح الخف ثبوت په حَدیث شریف سره دی نو تیمم اقوی دی تر مسح الخف.

**فَـــائِدَه**: تیمم احسان الهی دی د دې امت مرحومه سره خاص چې په نورو امتو کښی نه وو با الاتفاق. او تیمم په خاوره سره کیږی چې هغه په حقیقت کی ملوث دی. او په تیمم کی جزء په ځای کی د کل دریدلی دَی. یعنی فقط مسح د مخ او د لاسو مسح د سر په کښی نسته او مسح د پښو هم په کښی نسته وهذا تخفیف لخر من ربنا جَلّ سلطانه.

**پوهسه**: چې تیمم په لغت کی مطلق قصد ته وَائی. او په شرعه شریفه کښی مسح کول دی د مخ او د لاسو د پاکی مځکی څخه "

## يَصِحُّ التَّيَمُّمُ بِشُرُوْطٍ ثَمَانِيَةٍ اَلْاَوَّلُ النِّيَّةُ وَحَقِيْقَتُهَا

صحیح کیږی تیمم په اته شرطه سره. اول شرط د تیمم نیت دی ولې چې خاوری خو ملوث دی نو پاکوونکی نه ګرځی مګر په نیت سره

## عَقْدُ الْقَلْبِ عَلَى الْفِعْلِ

او اوبه خلقةً مطهری دی نو ځکه په اودا سه کښی نیت شرط نه دی. او معنی د نیت عوټه کول دی د زړه پر یو فعل باندی. یعنی یقین کول دی دیوه کار پر کولو باندې. قَالَ المصنفؒ.

## وَوَقْتُهَا عِنْدَ ضَرْبِ يَدِهٖ عَلٰى مَا تَيَمَّمَ بِهٖ وَشُرُوْطُ صِحَّةِ

او وخت د نیت کولو هغه وخت دی چې دی لاس ووهی پر هغه شی چې دی تیمم پر ووهی لکه خاوری وغیره

## اَلنِّيَّةِ ثَلَاثَةٌ اَلْاَوَّلُ الْاِسْلَامُ

او شرطونه د صحیح والی د نیت دری دی اول شرط یه اسلام دی. ولې چې نیت و عبادت ته سبب د ثواب دی او کافر د مطلق ثواب څخه محروم دی.

## وَالثَّانِى التَّمْيِيْزُ وَالثَّالِثُ الْعِلْمُ بِمَا يَنْوِيْهِ

او دوهم تمیز دی یعنی تیمم کوونکی به پوهیږی چې زه څه کوم، او دریم شرط په علم دی د تیمم کوونکی پر تیمامه باندی یعنی چې تیمم څرنګه وهل کیږی. ولې چې کیفیت د تیمم که نه وی ور معلوم نو دی بڅه کار وکړی. او د دی بیان څخه ته پوه سوې چې نیت دیو فعل غیر دی د علم څخه د ماهیت د هغه فعل. کذا قال المصنفؒ فی المراقی. لان الاجمال فی الاول کاف والثانی یقتضی العلم التفصیلی

## وَيُشْتَرَطُ لِصِحَّةِ نِيَّةِ التَّيَمُّمِ لِلصَّلٰوةِ بِهٖ اَحَدُ ثَلَاثَةِ اَشْيَاءَ

او شرط دی د پاره د صحت د نیت د تیمم د پاره د لمانځه یعنی چې په هغه نیت وده ته لمونځ ادا کول روا سی یو د درو شیانو یا نیت ...





## ثَانِيَةُ الطَّهَارَةِ اَوِاسْتِبَاحَةِ الصَّلٰوةِ اَوْ نِيَّةِ عِبَادَةٍ مَقْصُوْدَةٍ

یا نیت د مطلق طهارت یعنی د خصوص د طهارت د جنابت څخه او یا د بی او دسیا څخه شرط نه دی. ولې چې د لمانځه د پاره طهارت شرط دی نو نیت د طهارت نیت د استباحت د لمانځه دی.

## لَاتَصِحُّ بِدُوْنِ طَهَارَةٍ

مسئله: که جنب سړي تیمم وکړي د پاره د اودا سه هغه تیمم به د جنابت د تیمم په ځای کښی درېږي. کذا روی ابن سماعة عن محمد کما نقله الطحطاوی.

ترجمه: (د عبارت) او یا نیت د مباح والی د لمانځه. او یا نیت دیو عبادت مقصوده وي چې هغه عبادت بیله طهارت نه صحیح کیږي. **پوهسه**: چې عبادت مقصوده هغه عبادت دی چې د بل عبادت تابع نه وی بلکه ابتداءً ځندی مقصود تقرب و خدای پاک ته وی. نو مسحه د مصحف شریف عبادت مقصوده نه دی بلکه تبع د تلاوت دی. او په صرف مسه د مصحف شریف تقرب و خدای ته نه کیږی. قوله لاتصح آه، د دی قید فائده داده که محدث یعنی بی اوده سړي چې جنب نه وی د پاره د تلاوت د قرآن کریم بیله مسه کولو تیمم وکړي په دې تیمامه لمونځ نه دی روا ولې چې صرف تلاوت د قرآن غیر د جنب بی اودا سه هم روا دی.

**حاصل دا** چې متیمم به داسی نیت کوي: نیت کوم د پاره د لمانځه یا د پاره د جنازی د لمانځه یا د پاره د سجدهٔ تلاوت او جنب سړی به داسی نیت کوي چې تیمم کوم د پاره د تلاوت د قرآن. ولې چې جنب ته صرف تلاوت د قرآن هم بی طهارته روا نه دی. او ښځه چې د حیض یا د نفاس څخه خلاصه سی نیت د تیمم د پاره د تلاوة القرآن ورته روا دی. ولې چې ښځې ته تلاوت د قرآن په حال کی د حیض او نفاس نا روا وو. پوه سه چې مصنفؒ پر هغه درو شرطو داسی تفریع کوي.

## فَلَا يُصَلِّى بِهٖ اِذَا نَوَى التَّيَمُّمَ فَقَطْ اَوْ نَوٰى لِتِلَاوَةِ الْقُرْاٰنِ وَلَمْ يَكُنْ جُنُبًا

نو لمونځ نه دی صحیح په هغه تیمامه چې صرف او صرف د تیمامه نیت یه کړي وی یعنی د طهارت یا

اباحت د لمانځه وغیره نیت یې نه وی کړی. او یا نیت د تیمم وکړی د پاره د تلاوت د قرآن او دی جنب نه وی. او د غه رنګه ښځه چې د حیض خلاصه سی یا د نفاسه. ولې د غه دری نفره که تیمم وکړی په نیت د تلاوت د قرآن کریم په هغه تیمامه ودوی ته لمونځ روادی کما عرفت سابقًا. قَالَ صَاحِبُ نُورُ الایضاح.

## اَلثَّانِی اَلْعُذْرُ الْمُبِیحُ لِلتَّیَمُّمِ کَبُعْدِهٖ مِیلًا عَنِ الْمَاءِ وَلَوْ فِی الْمِصْرِ

او دوهم د تیمم شرط هغه عذر دی چې مباح کوونکی دی د تیمم وسړی ته هغه عذر لکه لیری والی د تیمم کوونکی دا و بو څخه یو میل که څه هم په ښار کی وې. پوهسه چې دا شرط دی د صحت د تیمم.

**پوهسه** چې میل دریمه د فرسخ ده، او دریمه د فرسخ خلور زره ګامه دی او یو ګام یو نیم ګز دی **واوره**: چې د غه لیری والی دیوه میل د او بو څخه پر غالب ګمان د سړی بناء دی نو که څه هم په واقع کښی او به نږدی وی اما د سړی غالب ګمان دا وی چې تر میل کمی او به نشته تیمم ورته روادی، ولې چې دا سړی چې یو میل سفر کوی چې او به سته او که نسته دا حرج دی او تیمم خدای پاك د دفع د حرج د پاره مشروع کړی.

**فـائِدَه**: فقیه ابو جعفر الطحاویؒ وائی چې تیمم په ښار کی نه دی روا مګر د پاره د دی چې د جنازی لمونځ یا د اختر لمونځ را څخه تیریږی. او یا جنب وی د یخه څخه بیریږی یعنی که غسل وکړم په یخو او بو مریض به سم لکن صحیح مذهب هغه دی چې مصنفؒ وویل.

**بنهانه فـائِدَه**: دا اختلاف حقیقتًا اختلاف نه دی بلکه بناء پر عادت د ښار دی. په بعضی ښارو کښی لکه قندهار په هر مسجد کی دا و بو ځای موجود وی، نو په داسی ښارو کی د لمونځ د پاره تیمم نه دی روا، قَالَ الطحاویؒ، او په بعض ښارو کی ځاهان نه وی او به د برق (بجلی) په ذریعه په نلکو کښی راځی لکه اکثر ښارونه د پاکستان. نو په داسی ښارو کی کیدای سی چې برق دیوی ناحیه دی خراب وی په نلکو کښی دی او به نه وی او تا لاوونه د مسجد وا و د کورونو هم وچ سوی وی په سبب د مرور د زمان. او په یو میل لری ناحیه کښی دی برق فعال وی په مسجدو او کورو کښی دی او به وی. نو په او له ناحیه کی تیمم روادی کما قال المصنفؒ:





## وَحُصُولُ مَرَضٍ

او دا غه رنګه تیمم روادی هغه چا له چې ده ته مرض حاصل وی.

پوهسه: چې مصنفؒ حصول د مرض ذکر کړی و یعنی به ان المرض یکون حاصلًا بالفعل، د دی څخه مطلب دا دی که چیری یو سړی فعلًا په صورت جوړوی مګر دی بیریږی که او دس تازه کړم نو به مریض سم هغه سړی ته تیمم نه دی روا لکن قهستانیؒ وائی چې په دی صورت کی ورته تیمم روادی. او امام زیلعیؒ په شرح کی د کنز وائی په باب الصوم کی په بیان د عذرو د خوړلو د روژی، که یو سړی په بدن جوړ وو مګر غالب الظن د ده دا وو که چیری زه روژه ونسم نا جوړ به سم نو دی لکه مریض دا سی دی د روژی خوړل ورته روادی. فالتیمم اسهل فی باب جوازه لمثل الشخص المذکور»

وَاللّٰهُ اَعْلَمُ بِالصَّوَابِ.

**فـائِدَه**: قال الامام الطحطاوی ص ۹۱/۹۲ المَرِیضُ عَلٰی اربعة اقسَامٍ: اول هغه مریض دی چې او به ضرر ور رسوی. دوهم هغه مریض دی چې او به خو ضرر نه ورته کوی لکن حرکت د پاره د استعمال دا و بو تاوان ورته کوی. دریم هغه مریض دی چې نه خو او به او نه حرکت تاوان ور کوی. لکن حرکت د پاره دا و دا سه پخپله قدرت نه لری. نو په دریم صورت کی به یا داسی څوك لری چې د ده او دس ور تازه کړی. او یا به داسی څوك نه لری چې د ده سره کومك وکړی. په اخیر صورت کی ده ته تیمم روادی په اتفاق سره که څه هم په ښار کی وی پر ظاهر مذهب:

او کی کهمك والا در لودی نو د غه کومك والا که د ده زوی وُو یا لور وه او یا د ده مریئی وو او یا مزدور وو، نو که دغو کسانو د ده فرمانبرداری کوله، د حضرت الامام الاعظمؒ څخه د ده روایت په یوه روایت کښی تیمم ورته روادی په بل روایت کښی تیمم نه دی ورته روا، «وهوالظاهر» او کی د ده اطاعت نه کاوه بلکه مزدوری غوښته. نو د غه سړی ته تیمم روادی په نیز د امام اعظمؒ مطلقًا یعنی که ډیره مزدوری غواړی او که لږ مزدوری غواړی او یاران وائی چې تیمم هله ورته روادی چې تر څلرمی درهم بالا مزدوری غواړی، ورنه تیمم نه دی ورته روا. او څلرم هغه مریض دی چې نه پر او د اسه قدرت لری او نه پر

پرتیمم نه په خپله اونه بل چا په کومك. نو بعض علماء وائی چی قیاس د قول د امام اعظم دا دی چی لمونځ پرېږدی ترڅو چی پریوه داوداسه یا تیمم قدرت مومی. او امام ابویوسف وائی چی مشابهت د لمونځ گذارانو سره دی کوی. لکن چی قدرت پیدا کړی نو لمونځونه به قضاء راوړی» قال المصنف

**وَبَرْدٍ يَخَافُ مِنْهُ التَّلَفَ اَوِ الْمَرَضَ** اود غړ رنگه تیمم روادی چی سړی په غالب گمان دده بیرېږی داوبو داستعماله څخه د تلف دیوا ندام اویا د مرض څخه. **پوهسه** چی مصنف دامسئله مطلق راوړې ده لکن پر اطلاق نه ده صحیح ځکه مصنف په مراقی الفلاح کی وائی چی جواز د تیمم و دغه خائف ته هغلته سته چی دی په ودانی یعنی بنا یا قریو کښی چی هغلته تودی اوبه پیدا کیږی. اویا بولحب پیدا کیږی چی دی ځان په تودو کړی نه وی بلکه په صرف صحرا کښی وی. ورنه تیمم نه دی ورته روا، او چی شرطونه د خوف چی ذکر سوه پرځای وی بیا تیمم د جنابت د پاره اود اوداسه د پاره دواړو ورته روادی. قال عز من قائل، «وَمَا جَعَلَ عَلَيْكُمْ فِي الدِّينِ مِنْ حَرَجٍ» قال الامام الحلوانی چی رخصت نشته بی اود سړی ته په سبب د دغه خوف د تیمم وهلو، ولی دا صرف سړی توهم دی غلبة الظن نه دی»، کذا فی فتح القدیر والایضاح، بلکه خلاف په جنب کی سته چی په تن جوړ وی او په ښار کښی وی او بیرېږی که زه په یخو اوبو غسل وکړم نو به ناجوړ سم. او دا ده غالب گمان وی او د حمام دغسل پیسی هم نه وی ورسره. نو په دا سی صورت کی امام اعظم تیمم ورته روا بولی. مطلقًا. یعنی که د ښار سړی وی او که مسافر، او یاران وائی چی دا حکم په مسافر پوری خاص دی، والفتوی علی قول الامام، او بعض کتابونه د غه سړی ته چی جنب وی او په ښار کی وی او په یخو اوبو سره د استعمال په صورت کی د مرض بیره وی، دا سی یوه حیله وربنیی چی حمامی خود مخه ترغسل کولو پیسی نه غواړی نو د غه سړی دی ورسی غسل دی په حمام کی وکړی، بیا چی راووزی حمامی ته دی خپل عذر بیان کړی. وَاللهُ اَعْلَمُ بِالصَّوَابِ





**اَوْخَوْفِ عَدُوٍّ** اویا بیرېږی بی اود سه سړی چی که زه داوبو ځای ته ورسوما په دښمن مړ کړی نو هغه ته تیمم روادی. **پوهسه**: که سړی پر مال بیرېدی او یوفاسق سړی چی داوبو سره ناست وو بیرېدی. اویا مفلس سړی د پور ورکړی څخه بیرېدی ودغو خلگو ته هم تیمم روادی. او د هغه لمانځه چی په تیمم یه ادا کړی را گرځول پری نشته: کذا فی المراقی ص۹۲. قال المصنف

**وَعَطَشٍ وَاحْتِيَاجٍ لِعَجْنٍ لَا لِطَبْخِ مَرَقٍ** اود غړ رنگه تیمم روادی د بیرې د تندی اود سببه د احتیاج و اوبو ته د پاره د خمیر کولو او روهم تیمم روادی او تیمم نه دی رواد پاره د یخولو د ښوروا. **پوهسه**: چی بیره د تندی عامه ده که د ځان پر تنده فی الحال بیرېږی او که په ائینده حال کښی بیرېږی. **مسئله**: که د قافلی وا ندیوال پر تنده بیرېدی هم تیمم ورته روادی. او که د حیوان پر تنده بیرېدی که څه هم سپی وی هم تیمم ورته روادی. لکن د حیوانا تو د تندی له سببه هلته تیمم روادی چی داوداسه اوبه یه نسوای ساتلای»، ولی لوښی نه وو او که لوښی وو چی د زود اسه اوبه په کښی خوندی کړی د حیوانا تو د پاره نو بیا د تندی د حیوانا تو د سببه تیمم نه دی ورته روا.

**مسئله**: که دیوه سړی سره اوبه وی او بل سړی د تندی شدید سره مخامخ وو، نو که مالك داوبو هم دیر نه دی وو نو د غه مالك دی اوبه و جنبی» او که مالك سخت تږی نه وو بیا واجبږ پر هغه چی خپلی اوبه دی هغه بل تږی ته ورکړی. او که مالك د اوبو نه ورکولی تږی د ی په زوره ځندی ونخلی. او که مالك جنګ ورسره کاوه تږی د ی جنګ ورسره وکړی. نو کی مالك داوبو مړ کړی تاوان نه لری. و ینه یه لغوه ده. او کی تږی مړ کړی تاوان لري.

مگر تږی سړی قیمت داوبو لازم دی. او که بیگانه سړی داوداسه د پاره د مالك څخه اوبه غو ښتی او صاحب الماء هم ضرورت او بوته نه درلودی» نو پر مالك الماء (اوبه والا) باندی داوبو ورکړه واجب نه ده. او نه بی داوداسه د پاره په زوره ځندی اخلی» کذا فی الطحطاوی ص۹۲ ۹۳

**قوله العجن** چونکه دپاره دخوراك وخمیرولو ته داوبو په ذریعه داوبو ضرورت دی لکه وجه که اوبه فقط دخمیریدو کفایت کوی نو تیمم ورته روادی. سید وائی که یو سړی دچاو عملی وو چی په نه چینلویه ده ته ضرر متوجه کیدی او اوبه صرف دچا یو لسیدلو نو غرسپ تر هم تیمم روادی» دروپش وائی چی دچا یو ضرورت دومره نه دی لکه د ډوډی نو دچای د پاره احتیاطًا باید تیمم ونه کړی» **قوله لاالطبخ مرق** ولیچی بنوروانه دومره ضرورت لسته چی سړی ته دی ضرر او ناجوړی متوجه کړی. قال

**وَلِفَقْدِ اٰلَةٍ** اودغه رنگه تیمم روادی په سبب د نیستی والی د آله دراکښلو داوبو دپاره لکه تناو، یا سولاغه» ولی چی آله نه وی گویا اوبه نسته» **مسئله**: که په صحرا کښی چا اوبه ایښی وی دمسافرو د څښلو د پاره یعنی یو خم یا منگی ئی ایښی وو په هغه اوبو دی څوك اودس نه تازه کوی بلکه تیمم دی وَوَهی. اوکی ډیری اوبه ایښی وی نو دی اودس په تازه کړی تیمم دی نه وهی تیمم ورته روا»

## وَلِخَوْفِ فَوْتِ صَلٰوةِ جَنَازَةٍ اَوْعِيْدٍ وَلَوْبِنَاءً

اودغه رنگه تیمم روادی چی سړی بیریږی په فوت د جنازی د لمانځه کړدی اودس کوی اویا بیریدی په فوت داختر لمانځه کړدی اودس تازه کوی نو تیمم دی ووهی که څه دی هغه بر بناء ( کوی. **قاعده**: هغه لمونځ چی خلف او عوض لری د هغه د فوت د پاره تیمم نه دی روا. لکه پنځه وقتی لمونځونه چی قضاء یه عوض ده یا د جمعی لمونځ چی دما پښین لمونځ یه عوض دی. او هغه لمونځ چی عوض نه لری لکه دجنازی لمونځ د اختر لمونځ نو د هغه دفوت د پاره تیمم روادی.

**مسئله**: که د سړی داخیال وو چی زه چی اودس کوم یو تکبیر د جنازی د لمانځه نیولای شم هغه ته تیمم نه دی روا **مسئله**: هغه ولی او قریب د سړی چی تصرف د جنازی دده په لاس کی وی هغه ته تیمم نه دی روا» ولی چی دی دا لمونځ ځنډولای شی او دا غه رنگه قاضی یا سلطان ته تیمم نه دی روا ولی هغه تاخیر د جنازی د لمانځه کولای سی»





قال المصنف فی المراقی هوالصحیح، او دغه مذهب ته صاحب هدایه هم ترجیح ورکړی ده»، لکن ظاهر الروایة د حضرت الامام الاعظم دادی چی ټولو ته تیمم روادی. ولی چی تاخیر د جنازی مکروه دی» ودې روایت ته امام سرخسیؒ ترجیح ورکړی ده. وعلیه فتوی الفقیر سامحه القدیر»

**قوله وَلَوْبِنَاءً** یعنی که څه هم پر کړی لمانځه دی بناء کوی. صورت د بناء یه دادی چی یو سړی شروع وکړی په لمانځه د اختر د امام سره په طهارت او بیا یه اودس مات سی نو ده ته د پاره د بناء ترڅو لمانځه تیمم روادی» دا مذهب د حضرت الامام الاعظمؒ دی»، او یاران وائی که اصلی لونځ یه او دا سه شروع کړی وو نو بناء پر هغه په تیمم سره نه ده روا»، او که دیو عذر د سببه اصلی لونځ یه تیمامه شروع کړی وو بیا بناء پر هغه لمانځه یه تیمامه روا ده.

## وَلَيْسَ مِنَ الْعُذْرِ خَوْفُ الْجُمُعَةِ وَالْوَقْتِ

او نه دی عذر یعنی رواکوونکی د تیمم، بیره د تیریدو د جمعی د لمانځه او بیره د تود وخت د لمانځو، یعنی که یو سړی بیریدی که زه په او دا سه مشغول سم د جمعی لمونځ به راسه تیر سی. او یا په پنځو لمونځو کی دیوه لمانځه د وخت د تلو څخه بیریدی که دی په او دا سه مشغول سی دا عذر نه دی او تیمم نه دی ورته روا» لما مر من القاعدة الکلیة»

## وَالثَّالِثُ اَنْ يَّكُوْنَ التَّيَمُّمُ بِطَاهِرٍ مِّنْ جِنْسِ الْاَرْضِ

او دریم شرط د تیمم دادی چی تیمم به په یوه پاك شی سره وهی چی د جنس د مځکی وی لکه

## كَالتُّرَابِ وَالْحَجَرِ وَالرَّمَلِ لَاالْحَطَبِ وَالْفِضَّةِ وَالذَّهَبِ

خاوری یا ډبره یا ریگ او نه دی روا تیمم په لرگی یا په سپینو زرو او یا په سرو زرو **پوهسه**: چی مراد د طاهر څخه هغه شی دی چی نجاست بولی وغیره نه وی ور رسیدلی که څه هم اثر د نجاست باقی نه وی خو هم تیمم نه دی پر روا بخلاف الصلٰوة» او مراد د جنس الارض څخه هغه شی دی چی په وخت کی د تیمم د جنس الارض څخه گڼل کیږی.

نه په اعتبار د اصل نو بناءً علىٰ هذا پر ښيښه تيمم نه دی روا کرخه هم په اعتبار د اصل د رېګو
څخه جوړه يې. «م، ط» مراقی الفلاح، طحطاوی.
او د جر څخه مراد ډېره ده که څه هم ښوی وي «م» او امام محمدؒ وائي چې پر ښوی ډېره
چې ګرد ورپې بانده نه وی تيمم نه دی روا» وهو الاقيس» **مسئله:** پر ګ
چونه، د خاورو پخه خښته يا اومه خښته، د خاورو د ډېرو د خښتو پر ديوال تيمم
روا دی، د خاورو پر اومه لوښی او پر پاخه لوښی چې غوړ سوی نه وی هم تيمم روا دی
او پر هر شی چې ګرد پروت وی تيمم روا دی» در مختار عالمګيری

**فَائِدَةٌ سُنِيَّةٌ** عنايه په شرح کی د هدايه وائي چې ډېرو مفسرينو د تواريخ
شريف څخه داسی نقل کړی دی چې رب جل وعلیٰ اول اول
يوه لويه ملغلره پيدا کړه. او په نظر د هيبت او قدرت په وهغی ته وکتل هغه ملغلره
او به سوه» او بيا هغه او به په مرور د زمان متکاشف سوی او د هغه څخه ځګه پيدا
سوه، او بعض اجزاء د هغو او بو نرم سول چې هغه هواء سوه او ترهغو اجزاوو الطف
په کښی پيدا سوه چې هغه اور سو. لو او س ۴ د طهارت د پاره اول اصل دی چې او به دي
او که اصل نه وی بيا يه تبع چې خاوري دی په ځای کی د رېږی. او پاته نباتات لکه
وابنه درختی وغيره او د غه رنګه معدنی شيان لکه وسپنه، سره زر، سپين زر
وغيره دوی تبع داو بو يوازی نه دي، بلکه دا ټول مرکب د عناصرو اربعه وو څخه دي
او علاقه خاصه ديوه عنصر سره چې او به دی نه لري حتی چې په ځای کښی د مقا
ودريږی، فلا يجوز التيمم بهذه الاشياء» قَالَ الْمُصَنِّفُ

**وَالرَّابِعُ اِسْتِيعَابُ الْمَحَلِّ بِالْمَسْحِ** او څلرم شرط د تيمم کښېښتل دی د محل
مخ او لاسونه دی په مسح کولو سره. **پوهسه:** چې مصنفؒ په مراقی الفلاح کی
داسی وائی چې د استيعاب شرط والی ظاهر المذهب دی او هم صحيح او هم مفتیٰ به
دی نو بناءً علیٰ هذا که چيری د نر يا ښځی په ګوتو کی ګتمی وی او يا د ښځی پلاس کی





بنګړی وه نو هغه به يا کابړی د تيمم په وخت کی يا بې د ځای څخه ښوروی چې د مسح
استيعاب پر ځای سی» او تخليل د ګوتو به هم کوی او ابن امير حاجؒ وائی چې د تخليل د
ګوتو په تيمم کی لکه تخليل د هغو په او داسه کی يعنی سُنت دیٔ.
اما هغه خبره چې ذخيرة العقبیٰ والا کړی ده چې د تخليل د پاره ضربه ثالثه غواړی
بېځايه خبره ده ولی چې اعتبار مسح لره دی د ګرځ رسولو لره نسته کذا قال الامام
الطحطاویؒ» او د وينيستا نو چې مخ پوری متصل وی مسح هم غواړی نه د ځړيدلو
وينيستا نو او د مابين د با ړخواو غوږ مسح هم غواړی، او بعض فقهاءؒ وائی چې اکثر د مخ او د
لاسو چې مسح کړی هم کفايت کوی»، وهذا هو الاوفق بالناس»، او په بعض فتاواوو
کښی د دی تصحيح سوی ده» وَاللّٰهُ اَعْلَمُ قَالَ.

**وَالْخَامِسُ اَنْ يَّتَمَسَّحَ بِجَمِيْعِ الْيَدِ اَوْ بِاَكْثَرِهَا حَتّٰى لَوْ مَسَحَ**
او پنځم شرط د تيمم دا دی چې مسح په ټوله لاس کوی او يا په اکثر د لاس، حتیٰ کی مسح

**بِاَصْبَعَيْنِ لَا يَجُوْزُ وَلَوْ كَرَّرَ حَتّٰى اِسْتَوْعَبَ بِخِلَافِ**
وکړه په دوو ګوتو دا نه ده روا، کی څه هم دا دوی ګوتی مکرر کړی چې پر ټوله محل مسح راسی

**مَسْحِ الرَّاْسِ** هم نه دی روا. او مسح د سر په او داسه کی د دی څخه خلاف ده يعنی
په دوو ګوتو په تکرار سره استيعاب کافی دیٔ. قَالَ.

**اَلسَّادِسُ اَنْ يَّكُوْنَ** ای التیمم **بِضَرْبَتَيْنِ بِبَاطِنِ الْكَفَّيْنِ وَلَوْ**
او شپږم شرط د تيمم دا دی چې تيمم به کوی په دوه واره وهلو د باطن د ارغوو که څه هم

**فِيْ مَكَانٍ وَّاحِدٍ** دواړه ضربه د يوه ځايه څخه وي. **پوهسه:** چې مراد
د ضربه څخه نفس ايښول دی قاله السيدؒ»، او مصنفؒ
چې وويل وَلَوْ فِیْ مَكَانٍ آه دا د دے سببه چې مکان خو نه مستعمليږی ولی چې تيمم

**مسئلهٔ**: که د سړي نيت د تيمم وکړي او بل سړي په تيمم امر کړي خو بما في اليد دي هغه سړي تيمم ورکړي صحيح دی» مراقی ص ۹۶ قال.

## وَيَقُومُ مَقَامَ الضَّرْبَتَيْنِ اِصَابَةُ التُّرَابِ بِجَسَدِهٖ اِذَا مَسَحَ

او دريږي په ځای کښی د دوو ضربو چې خاوری د سړي په بدن پريوزی او دی لاس بر تيرکړي يعنی په مخ او لاسو په نيت د تيمم، «وقوله بباطن

## بِنِيَّةِ التَّيَمُّمِ

الکفين» د اموافق د هغه روايت سره ده چې حلبیؒ د ذخيره نه نقل کړي دی. لکن صحيح هغه خبره ده چې شمنی وائي چې هم دې باطن د کفينو په ځای وهی او هم ظاهر د هغو» قاله الطحطاوی»

**سوال** په حديث مبارک کی داسی راغلی دي» التيمم ضربتان» او ضرب په لغت کی وهلو وائي او تا قبلاً و ويله چې مراد د ضرب نه راينول دي» او سره ددی چې د اينولو پاره لفظ د وضع په عربي کښی راځي. **جواب**: هو د ضرب معنیٰ خو هغه ده چې سائل وويل لکن په حديث شريف کښی لفظ د ضرب بناء دی پر غالب عادت د تيمم کوونکو. دليل ددی ترجمی چې مونږ په وضع سره وکړه لفظ د قرآن کريم چې د تيمم په باره کښی وائي «فامسحوا»

## اَلسَّابِعُ اِنْقِطَاعُ مَا يُنَافِيْهِ مِنْ حَيْضٍ اَوْ نِفَاسٍ اَوْ حَدَثٍ

او اوم شرط د تيمم کولو دا دی چې نه به وی موجود هغه شي چې د تيمم سره منافی وی چې هغه شئی حيض او نفاس او حدث يعنی يا بولی يا غل يا پسکی وغيره. حاصل دا چې په وخت د تيمم به ښځه په حيض کی نه وی. او يا په نفاس کی به نه وی. او يا نر يا ښځه به په حال د حدث نه وی د تيمم په وخت کښی. مطلب دا چې حائضی ښځې يا نفساء ښځې يا هغه چې په حال کی د بولو وغيره تيمم وهل روا نه دی. لان اجتماع المتنافيين لا يجوز شرعاً ولا عقلاً. **پوهسه**: چې دا شرط دا و دا سه او د غسل د پاره هم دیٔ.

اللهم اغفر لمؤلفه ولكاتبه ولوالديهما وقد كتبه بيده احقر فضل الحق حقانی غفرله.





او اتم شرط د

## الثَّامِنُ زَوَالُ مَا يَمْنَعُ الْمَسْحَ كَشَمْعٍ وَشَحْمٍ

تيمم د صحت زوال يعنی نيستی والی دی د هغه شي چې مانع د مسح وی لکه موم يا وازگه. ولی که چيری دا مانع په لاسو يا مخ موجود وی بيا خو مسح په هغه مانع کيږي په بدن د متيمم نه کيږي.

## وَسَبَبُهٗ وَشُرُوْطُ وُجُوْبِهٖ كَمَا ذُكِرَ فِي الْوُضُوْءِ

او سبب د تيمم او شرطونه د واجب والی د تيمم هغه دی چې دا و دا سه په بحث کی ذکر سوله. **لوهسه**: چې سبب د تيمم وهلو اراده د هغه کار چې بې طهارت نه وی روا. لکه لمونځ، مسحه د قرآن شريف وغيره او شرطونه يې اته دی. العقل، والبلوغ، والاسلام، ووجود الحدث، وعدم الحيض والنفاس، وضيق الوقت، والقدرة على ما يجوز منه التيمم»

**تفريع**: په ليونی تيمم واجب نه دی، په کشنی تيمم واجب نه دی. په کافر تيمم واجب نه دی، او چې او دس لري په هغه چا تيمم واجب نه دی. او په حائضی يا نفساء ښځې باندی تيمم واجب نه دی. او چې وخت فراخه وی چې تر او بو رسيدلای سی تيمم واجب نه دی. او چې قدرت په هغه شئ نه لري چې تيمم پر وا وی، لکه خاوری وغيره تيمم واجب نه دی» قال المصنف.

او دوه رکنه د تيمم مسح کول دي

## وَرُكْنَاهُ مَسْحُ الْيَدَيْنِ وَالْوَجْهِ

د لاسو او د مخ.

**فائده**: کيفيت د تيمم هغه دی چې قول او فعله ثابت د رسول کريم صلی الله عليه وسلم معلوميږی، قال صلعم. التيمم ضربتان ضربة للوجه وضربة للذراعين الى المرفقين، وورد في الصحيح من الحديث انه سئل رسول الله صلى الله عليه وسلم: كيف امسح يعني في التيمم فضرب بكفيه الارض ثم رفعها لوجهه ثم ضرب ضربة فمسح ذراعيه باطنهما وظاهرهما حتى مس بيديه المرفقين»

درویش والیٔ: چې دغه کیفیت ډیر صحیح دی او دغه کیفیت هم د امام اعظم څخه مروی دی هغه وخت چې امام ابو یوسفؒ دده څخه پوښتنه د کیفیت د تیمم وکړه ص۹۷ ط او هغه کیفیات چې بعض علماوو ذکر کړي، کما فی الطحطاوی ص۹۷ هغه په احادیثو شریفه وو کې نه دی راغلی۔ او نه د صاحب المذهب څخه منقول دی، صاحب البدائع وائی چې دغه کیفیات تکلف دی او احسن هو الموافق للمنقول، که څوک د هغو کیفیاتو زده کړه غواړي نو دې د طحطاوی ص۹۷ مطالعه کړي او تکلف به هم ور معلوم سی» قال

# وَسُنَنُ التَّيَمُّمِ سَبْعَةٌ اَلتَّسْمِيَةُ فِي اَوَّلِهٖ وَالتَّرْتِيْبُ

او سُنت کارونه د تیمم اووه دي. اول بسم الله ویل دي په اول کې د تیمم لکه په اصل کتبو کې دده یعني اودس

# وَالْمُوَالَاتُ وَاِقْبَالُ الْيَدَيْنِ بَعْدَ وَضْعِهِمَا فِي التُّرَابِ

او بل ترتیب دی یعني مخ دی د مخه مسح کوي او بیا لاسو لکه چې په حدیث کې تېره سوه. او بل پیوست کول دی دری

# كَاِدْبَارِهِمَا وَنَفْضُهُمَا وَتَفْرِيْجُ الْاَصَابِعِ

کی چې هم سنت دی۔ او بل دوو مسح کولو لکه په اودس دفعل څخه د آنحضرت صلی الله علیه وسلم هم موالات فهمیږي. او بل سُنت دا دی چې اول دی مخ د لاسو پر ځمکه راښکوي. او بیا دی شاوي د لاسو ایږدي. او بل سُنت دا دی چې لاسو دی وڅنډي د ګرز څخه، تا چې مثلت یعني ککړېدل د مخ رانسي. او هم په دغه کیفیت امام اعظمؒ تیمم وابو یوسفؒ ته ورښوولی دی چې هغه پوښتنه څنډی وکړه.

**مسئلهٔ** په خټو تیمم نه دی روا تر هغو چې وچې نسي د جهت د مثلت مګر هغه وخت که سړي بېرېدی چې وخت د لمانځه تېریږي. او بل سُنت خلاص نیول د ګوتو د لاسو دی په وخت کې د ایښوولو پر ځمکه» د پیاره دد ی چې ګرز ور ننوزي.

# وَنُدِبَ تَاْخِيْرُ التَّيَمُّمِ لِمَنْ يَرْجُو الْمَاءَ قَبْلَ خُرُوْجِ الْوَقْتِ

او مستحب دی ځنډول د تیمم تر هغه سړي چې امید د اوبو وي د مخه تر وتلو د وخت د لمانځه.





چې هغه فاقدُ الماء شرعاً وي یعني یو میل پوره سَله: چې دا حکم او ندب د هغه د پاره دی چې اوبه څنډی لری وی» په ظاهر روایت کی د حضرت الامام الاعظم څخه. ولی که د سړي ظن وي چې اوبه تر یوه میل کمی لیری دی بیا خو تیمم نه دی ورته روا. او دا هم وا وره چې مراد د رجاء څخه امید د اوبو دی په غالب الظن سره نه په نفس ګمان سره. او د حضرت الامامؒ او دا غه رنګه د امام ابو یوسفؒ څخه روایت دی چې په صورت کی د غلبة الظن د اوبو تا خیرد تیمم واجب دی لکن دا ظاهر روایت نه دی»

**فائدهٔ** له رجاء: مراد د وقت څخه وقت مستحب دی»، چې هغه ته لمونځ کی اول د اخیر نیمائی وخت دی»، او بعض علماءؒ وائی چې تر اخیر پوری د وخت د جواز په ځنډول مندوب دی. لکن صحیح اول مذهب دی تا چې ادا د لمانځه په وخت مستحب کی راسی» ط، ص۹۸.

**تفریع**: نو ځنډول د تیمم د ماز دیګر د لمانځه د پاره تر تغیرد لمر روا نه دی. او دغه رنګه دی د ماښام لمونځ د اول څخه د وخت نه ځنډوي. او بعض فقهاءؒ وائی چې تر نژدی پوری د مغیب الشفق ځنډول پروا نه لري.

**حکایت**: یوه ورځ حضرت الامام الاعظمؒ سره د خپل استاذه الامام حمادؒ د پاره د رخصت کولو د حضرت المحدث الکبیر امام الاعمشؒ د بغداد څخه د باندی وتلی ووچې د ماښام وخت داخل سو او د غالب الظن پر بناء امام حمادؒ په اول کی د وخت تیمم وکړي او د ماښام لمونځ یې ادا کړي. او امام اعظمؒ لمونځ وځنډاوه چې په اخیر کی غیبی خدایؒ او به پیدا کړی او امام اعظمؒ اودس وکړي او لمونځ د ماښام یې په اخیر وخت کی ادا کړي»، دده استاذ د غه رأیه د امامؒ صواب وبو لله. حکایت کوونکی چې د اول مخالفت وود حضرت الامام الاعظمؒ د خپل استاذ حمادؒ څخه» قال المصنفؒ

# وَيَجِبُ التَّاخِيْرُ بِالْوَعْدِ بِالْمَاءِ وَلَوْ خَافَ الْقَضَاءَ

او واجب دی پر سړي ځنډول د تیمم په سبب د وعدی د یو سړي چې زه دا اوبه درکوم که څه هم پر قضاء د لمانځه بېرېږي»

**پوه سه**: چې د دې مسئلې ځای هلته دی چې د وعده کوونکي سړي سره اوبه موجودې وي. او یا اوبه تر کم د میل نږدې وي او وعده کوونکی وائي چې زه لږ پر سائیکل یا آس وغیره تا ته را رسوم او که اوبه پوره میل لیرې وي یا بالا تر هغه بیا څند ول د تیمم پر ده واجب نه دی، چې خدای ورته پر دغه صورت کې تیمم روا کړی دی، البته که ده پر د وعده کوونکي پر وعده د وفا ګمان وُو نو څند ول د تیمم مندوب دی. قال المصنف

## وَيَجِبُ التَّاخِيرُ بِالْوَعْدِ بِالثَّوْبِ اَوِالسِّقَاءِ مَالَمْ يَخَفِ الْقَضَاءَ

او واجب دی تاخیر ای تاخیر د لمانځه که یو چا د لنګ سړي سره وعده د جامې یعنی په قدر د ستر العورة وکړه. او یا د هغه سړي سره چې اوبه په څا کښې وي مګر رسی او سولاغه نه وه بل چا وعده د رسی او سولاغې وکړه. نو پر دی سړي هم واجب ده څند ول د تیمم تر هغو چې پر قضاء د لمانځه نه بیرېږي په دواړو صورتو کې. **فائده**: مصنف متابعت کړې دی په دې دوو مسئلو کې د صاحب البرهان لکن په عامو کتابو کې د فقه حنفي لکه فتاوای خانیه او فتح القدیر او منیة المصلي او د هغه دوی شرحې صغیري وکبیري او بحر رائق، او سراج، او صاحب خلاصه یه و مبسوط ته هم نسبت کړی دی چې دغه تاخیر په نیزد امام اعظم مندوب دی، او یاران وائي چې واجب دی او مزید البیان فی الطحطاوی ص۹۸

## وَيَجِبُ طَلَبُ الْمَاءِ اِلٰى مِقْدَارِ اَرْبَعِمِائَةِ خُطْوَةٍ اِنْ ظَنَّ قُرْبَهُ

او واجب دی طلب د اوبو تر څلور سوه ګامه پورې کې ګمان وُو د نږدې والي د اوبو، لکن دا طلب هلته واجب دی چې په لاره کې د طلب امن

## مَعَ الْاَمْنِ وَ اِلَّا فَلَا

وي یعنی د دښمن یا د غلو بیره نه وي.

**مسئله**: طلب د اوبو که په خپل کوي کې په بل چا کوي. **پوه سه**: چې طلب د اوبو دې هغه طرفته کوي چې د ده ګمان کیږي چې پر دغه طرف به اوبه وي. او که پر څلور سو طرفه د اوبو د قریب ګمان وُو، نو پر څلور سره طرفه به طلب کوي. لکن دا طلب هلته





واجب دی چې په لاره کې د طلب امن وي. یعنی د دښمن یا د غلو بیره نه وي. **قوله والا فلا**. یعنی که چېرې امن نه وُو بیا طلب واجب نه دی که څه هم د قریب د اوبو نه وُو یا د لارې ګمان د نږدې والي د اوبو. یا خو په واقع کې نږدې وي. **پوه سه**: چې سبب د ګمان د نږدې والي د اوبو یا په سته او یا شنه نلان وو یني او به سته او یا شنې د ونې یا شنه نلان وو یني اخبار د یو چا وي چې دلته نږدې اوبه ستره کیږي. **مسئله**: که د سړي ګمان خونه وو او یا مرغان هلته دوري وو ایسته کیږي. **مسئله** که د سړي ګمان خونه وو لکن یو بل سړي تیر یدی واجب ده پر ده چې د هغه سړي څخه دی معلومات د نږدې والي د اوبو وکړي اوکه ده پوښتنه څنډی ونه کړه تیمم یې وکړ او لمونځ یې هم وکړ اوکه ده پوښتنه څنډی ونه کړه تیمم یې وکړ او لمونځ یې هم وکړ وروسته هغه سړي د قریب د اوبو خبر ورکړ هغه لمونځ به راګرځوي» ط»

**پوه سه**: چې دغه ۴۰۰ ګامه ته په نورو کتابو کې غلوة وائي. او دا مقدار مغرب چې د لغت کتاب دی ذکر کړی دی. او صاحب قاموس وائي چې غلوة مقدار د غشي دو ویشتلو دی. او دا مقدار حافظ الدین په کنز کې راوړی دی.

**مسئله**: صاحب بدائع وائي چې پر ته د مقدار د دو مره اندازه دی طلب کوي چې و ده ته او یا د ده اندیوالانو ته په سبب د انتظار ضرر نه وي، قال ط وهو الاصح.

**مسئله**: که سړه د ظن د قریب الماء ده طلب ونه کړي بلکه تیمم یې وواهه او لمونځ یې هم وکړي او بیا وروسته چې طلب وکړي اوبه نه وي. نو تیمم او لمونځ به دواړه را ګرځوي» په نیزد امام اعظم، او امام محمد وائي په صورة مذکوره کې شرط د جواز د تیمم چې طلب دی نه وو پیدا سوی» او امام ابو یوسف وائي چې را ګرځول پرې نسته» سراج» **مسئله**: که د سړي غالب ګمان د نږدې والي د اوبو وو مګر یو عادل سړي ورته وویل چې اوبه نږدې نسته تیمم بې خلافه ورته روا دی. حلبی

**مسئله**: دا ټوله خبرې هلته دی چې سړي په دښت او بیابان کې وي. او که آبادۍ ته میل کمی معلومیدی بیا طلب د اوبو پر واجب دی مطلقًا یعنی کې ګمان وي او که نه وي. حتی که دغه سړي تیمم وکړي او لمونځ یې هم وکړي لمونځ یې نه دی روا. ولې چې آبادی غالبًا د اوبو څخه خالی نه وي، وَالْغَالِبُ كَا الْمتحقق فی الاحکام»

## وَيَجِبُ طَلَبُهُ مِمَّنْ هُوَ مَعَهُ إِنْ كَانَ فِي مَحَلٍّ لَا تَشُحُّ بِهِ النُّفُوسُ

او پر سړي يعنې مسافر واجب دی طلب داوبو د هغه چا څخه چې دده سره ملګري دی که په داسې ځای کې وو چې هلته پر اوبو سره بخل نه کیدئ.

**فائده** په هدایه بلکه په ډیرو کتابو کې د فقه شریفې وائي چې په نیزد امام اعظمؒ طلب د اوبو د ملګري څخه هیڅ واجب نه دئ. ولې چې د غیر سړي خوبخیله داوبو څخه عاجزه دی او اوبه په سفر کښې هغه بیخي ګران د شیانو څخه دی پر مسافر نو ظاهره داده چې نه بې کې ور. نو بې له طلب دی تیمم وکړي او لمونځ دی اداء کړي. او یاران وائي چې طلب داوبو لازم دی او د مخه تر طلب داوبو و سړي ته تیمم نه دی روا.

ولې چې اوبه خلک ورکوي یو و بل ته خصوصًا د اوداسه دپاره، لکن ابوبکر الجصاصؒ وائي چې په حقیقت کې د امام اعظمؒ او د ده شاګردانو ترمابین خلاف نشته. ولې چې مراد د امام اعظمؒ چې طلب داوبو لازم نه بولي. هغه وخت یه لازم نه بولي چې دده غالب ګمان داوي چې اوبه نه راکوي، او مراد د یارانو دا دئ چې طلب داوبو لازم بولي چې د سړي ظن داوي چې منع به و نه کړي نو ګویا پر اوبو قدرت سته نو ځکه تیمم ناجائز دی، فقیر وائي چې د اول د جصاصؒ د دوي یعنې حضرت الامامؒ او یارانو د دلیل څخه فهمیږي. قَالَ المصنفؒ

## وَإِنْ لَمْ يُعْطِهِ إِلَّا بِثَمَنِ مِثْلِهِ لَزِمَهُ شِرَاؤُهُ بِهِ إِنْ كَانَ

او که هغه شریک د سفر اوبه نه ور کولې مګر په ثمن مثل سره پر سړي لازم ده رانیول یه په ثمن مثل که چیری دده سره ثمن وو چې هغه هم دده تر

## مَعَهُ فَاضِلًا عَنْ نَفَقَتِهِ

سفر خرڅ بالا وو. **پوهه**: چې خرڅول داوبو په ثمن مثل سره داده چې نن دی و دغه ځای ته اوبه په دغونه قدر قیمت خرڅیږي، په دې صورت کې که د سړي سره ثمن مذکوره وو او فاضل دده تر نفقې وو نو رانیول یه لازم دی او تیمم نه دی ور ته روا.

كتبه احقر الورى فضل الحق حقانی۔





او که خرڅول داوبو په لن بالا بیسو وو بیا هم رانیول یه لازم دی تیمم نه دی روا. ولې چې په دې دواړو صورتونو کې سړي قادر دی پر اوبو دی ددی کبله چې قدرت پر بدل دی قدرت پر مبدل دی چې اوبه دي. او که خرڅول داوبو په غبن فاحش یعنې چې بیسې دی ډیرتاوان سره وو چې تر اصلي قیمت نیمه د هغه نور یه ځندی غوښتي بیا یه رانیول لازم نه دی او تیمم روا دئ. ولې چې په دی رانیولو کښې ضرر دده د مال دی او مال دمسلمان لکه ځان دده دی، نو ضرر دده نفس مسقط ساقطوونکی داوداسه وو نو ضرر د مال یه هم مسقط داوداسه دی، کفایه بالاختصار. قَالَ المُصنفؒ

## وَيُصَلِّي بِالتَّيَمُّمِ الْوَاحِدِ مَا شَاءَ مِنَ الْفَرَائِضِ وَالنَّوَافِلِ وَصَحَّ

او دی ادا کولای سې په یوه تیمم هغه لمونځونه چې دده خوښه

## تَقْدِيمُهُ عَلَى الْوَقْتِ

وي د فرضي ډیرو لمونځو او نفلي لمونځو او روادی تر وخت دمخه تیمم وهل.

**پوهه**: چې تیمم زمونږ په مذهب کې طهارت مطلقه کامله دی لکه اودس. ولې چې په تیمم سره امر قرآني راغلی دئ، فَتَيَمَّمُوا صَعِيدًا طَيِّبًا، لکه یه اوداسه سره وقال علیه الصلوٰة والسلام، التراب طهور المسلم ولو الی عشر حجج مالم یجد الماء، نو لکه په یوه اوداسه چې ډیر فرضي لمونځونه روادی دغه رنګه په یوه تیمم هم ډیر لمونځونه روادي. او لکه اودس چې قبل دخول الوقت روادی تیمم هم روادی او په نیزد امام شافعيؒ تیمم طهارت ضروري دی چې ضرورت نه وي نه دی روا.

**فائده**: سنن او نوافل چونکه تبع د فرضو دي نو په یوه تیمم په وخت کی دننه هر څه سنت او نفل چې کوي بالاتفاق روادی. لکن بنه داده چې قبل الوقت دی تیمم نه کوي او هر فرضي لمانځه دپاره دی جلا جلا تیمم وکړي تا چې د خلاف څخه د حضرت الامام الشافعيؒ ووزي.

## وَإِنْ كَانَ أَكْثَرُ الْبَدَنِ جَرِيحًا أَوْ نِصْفُهُ جَرِيحًا تَيَمَّمَ

که چیری ډیره حصه د بدن د سړي ټپي وه او یا نیمي د بدن یه ټپي وه نو تیمم دی وکړي

## وَاِنْ كَانَ اَكْثَرُهٗ صَحِيْحًا غَسَلَهٗ وَمَسَحَ الْجَرِيْحَ

اوکه چیرې اکثر بدن

په جوړ وُو. نو هغه جوړ ځایونه دی پرې منځي او پرخوږ ځایو دی مسح وکړي.

**پوهسه**: چې مختاره د فقهاوُ داده چې کثرت او قلت په اعتبار د عدد د اندامو دې. مثلاً کې سر تپي وو او مخ په هم تپي وو او لاسو یې هم دواړه زخمي وه. صرف پښې ئې جوړې وې. دا سړی به تیمم کوي نو دی حساب په څخه اندازه د نصف (نیمی) او اقل ته و نګوه. او لعض فقهاء وائې چې کثرت (ډیروالی) او قلت (لږوالی) او نصف په اندام د د غوا ندامو معتبر دی. یعنې کې اکثر یا نصف د مخ تپي وُو او نورا ندامونه یې جوړ وه دا سړی به تیمم وهي. دا اختلاف خو په اودا سه کښې دی اما په غسل کې کثرت او قلت په اعتبار د مساحت دی یعنې د بدن د ګیچې په اعتبار دی. او چې جوړ وې نو هغه جوړ ځایونه دی پرېمنځي پرخوږ ځایو دی مسح وکړي»

**مسئله** مسح کول دا دې چې لوند لاس دې پر تیر کړي. او که لند لاس تیرول ضرر ته ته کاوه بیا دی یو ټکړ پر اوارکی او پر هغه دی لند لاس تیر کړي. او که هغه هم ضرر کاوه نو مسح دې پرېږدي صرف جوړ ځایونه دې پرېمنځي. **فـائِده** که د سړي په نس کې تپ وو که څه هم لږ وی او یا په سر کې وو او یا په شاکې وو او دې سړي د غسل ضرورت در لودی او او بو تاوان ورته کاوه تیمم دی وکړي ولې چې په سبب د ضرورت دا تپونه حکم د جراحت غالبه لري» مره قَالَ الْمُصَنِّفُ.

## وَلَا يَجْمَعُ بَيْنَ الْغَسْلِ وَالتَّيَمُّمِ

او جمع کول به نه کوي په مابین د یرې ولو او تیمم

یعنې چې بعض ځایونه پرې مینځي او تیمم هم وکړي» ولې دا په شرعه شریفه کې مثل نه لري چې جمع د بدل چې تیمم دی او مبدل منه را ئې. **سوال**: فقهاء وائې چې کړ د سړي سئوره پس خورده او بو دخره وی نو دا سړی به هم اودس تازه کوي په هغو او بو او هم به تیمم کوي نو دلته خو جمع د بدل او مبدل منه اغلم **جَوَابْ** دا جمع د دی د پاره ده چې





طهارت په یوه سره د د غو دواړو حاصلیږی نه په دواړو ولې چې سئور الحمار مشکوک دی ده جمع د بدل او مبدل منه چې ناروا ده داسی ده لکه چې د غله لاس پرې سی او د مال تاوان هم غواړي. او یا پر یوه سړي حد زنا جاري سی او ولور هم ځندی غواړي» او یا په ځندی غواړي. او یا په میراث کی برخه لري او د وصیت برخه هم غواړي او داسی نور ـ مراقی» قَالَ ـ

## وَيَنْقُضُهٗ نَاقِضُ الْوُضُوْءِ وَالْقُدْرَةُ عَلَى اسْتِعْمَالِ الْمَاءِ الْكَافِيْ

او ماتوی تیمم هغه شئ چې اودس ماتوی چې قبلاً ذکر سوله. او د غه رنګی ماتوی قدرت د متیمم پر استعمال د او بو چې کافی وی د طهارت د پاره **پوښتنه**: د مسافر سره کافی او به د او داسه یا د غسل موجودی وی لکن دی بیریدی د وروستی تندی څخه تیمم ورته روا دی سره د دی چې کافی او به ور سره دي. **جَوَابْ** دا او به مشغولې په حاجت اصل دی او مشغول بالحاجت کالعدوم. **پوهسه**: چې مصنف بناء پر غالب ناقض الوضوء ذکر کړي وړنه تیمم په ناقض الغسل سره هم ماتیږي. نو دا سوال نه واردیږی چې مصنف که داسې وئیلی وای» فَيَنْقُضُهٗ نَاقِضُ لِلاَصْلِ» بنه به وای تا چې غسل ته هم شامل سوی وای. او امام حموی دی سوال په جواب کی داسې وائې چې مصنف خاص ذکر کړي چې اودس دی او مراد یې عام دی چې طهارت دی نو غسل ته هم شامل سو.

**مسئله** که د سړي سره دومره او به وی چې د یوه وار د اندامو پر یو لو د پاره کافی ده دړی دړی واره د پاره کافی نه وي. تیمم ورته روا دی او که نه! **جَوَابْ** تیمم نه دی ورته روا ولې چې تثلیث خو سنت دی. د فرض د پاره او به کافي دې.

**فرعه**: که د سړي سره او به وی دده په خیال دا او د اسه کافی نه وې نو یه تیمم وواهه وروسته یه او به په خیال کافی ورغلې نو یه اودس شروع کړي. لکن به تثلیث سره پس اودس پای ته نه وه رسیدلی چې او به خلاصی سوې. نو بناءً پر مختار مذهب هغه د مخه تیمم یه باطل سو. ولې ده اودس شروع کړي طهوریت د خاوره پای ته ورسیدی

**فائِده**: په دی قول کی د مصنف» وَالْقُدْرَةُ اه هغه قول عذرونه چې مباح کوونکی د تیمم وه

زوال دهغو داخِل سو مثلاً مریض وو جوړ سو، ډیریخ وو یَخ مات سو، د دښمن ځکه
بیریدی دُښمن وَلاړی، پڅا سو لاغر او ریسی نه وَه هغه پیدا سوه . نو په دی ټولو صورتو
کی هغه کړی تیمممات سُو. ابن الشحنة وائی: وَیَسْقطُ مَسْح الرأسِ عَمّن برأسه
مِنَ الدّآءِاِنْ بَلّهٗ یتَضَرَرُ: ترجمه: ساقطیږی مسح د سَر د هغه چا ځنی چی په سر کی
داسی مَرض وی کی لوند کړی تا وان ورته کوی. **فـرعـه**: نو بناء پر دغه عذر پر یوله
دسر جُـنبی او حائِضی نبځی ځنی یا نفساء د ټولو ځنه ساقِط دی. قـالَ المُصنفُ

## وَمَقْطُوعُ الْيَدَيْنِ وَالرِّجْلَيْنِ إِذَا كَانَ بِوَجْهِهٖ جِرَاحَةٌ

او هغه سړی چی لاسونه یه پری وی یعنی لوړ تر څنګلو او پښی یه هم پری وی. یعنی لوړ
تر بجلکو که چیری پر مَخ یه ټپ وو یعنی چی

## يُصَلِّي بِغَيْرِ طَهَارَةٍ وَلَا يُعِيدُ

او بو ضر ورته کاوه لمونځ به کوی
بی له اودا سه . او بیا به هغه لمونځ نه راگرځوی . یعنی مَخ یه جوړ سی. او بعض عُلماء
وائی چی لمونځ ځندی ساقط دئ.

**مسئله**: که چیری لاسونه د سړی تر څنګلو کښته پری وَه، هغه باقی مانده لاس دی
په خاورو مسح کړی.

**مسئله**: که د چا لاسونه شل وَه چی پریوله یه نَسوای کولای هغه ځ او لاسونه
په ځکه پوری مسح کوی مگر لمونځ به نه پریږدی»، قـاله المصنفُ فی المرَاقی ملا»

---

**انتباه**: محترمو لوستونکو دا کتاب چی دعلم فقه د مشهور او معتمد کتاب شرحه دَه د
حضرت عَلامه مولانا ابوالفضل محمد عُبید الله الایوبی القند هاری دَه. چی زمونږ
د مکتبی له ریاتی غوښتنی وروسته یه دا زمونږ غوښتنه قبول کړه. او ددی دکتاب
طباعت او ټول د اشاعت حقوق راته کړی. هیڅ څوک ددی کتاب کتابت، طباعت بیله
زمونږ د اجازی نه سی کولای. په هیڅ لوی او کشنی سائز کی." په دړ ناوی"





# بَابُ الْمَسْحِ عَلَى الْخُفَّيْنِ

باب دی په بیان کی د مسح پر موزو باندې.

چی مسح د موزو شیعه د له روا نه بولی. او پر لخه پښه مسح روا بُولی. دوی د
**بوه سه**: چی مسح د موزو شیعه د له روا نه بولی ... زیر سره راغلی دی. نو دوی
... داسی په ایت کی چی په یوه قرائت کی» وَارْجُلِکُمْ» په جر یعنی په زیر سره راغلی دی. نو دوی
... داسی په ایت کی چی په یوه قرائت کی» ... «وَامْسَحُوا بِأَرْجُلِکُمْ»، نو ځکه
لفظ معطوف بولی پر رُؤسِکُمْ، نو معنیٰ داسی کیږی چی» وَامْسَحُوا بِاَرْجُلِکُمْ»، نو ځکه
لخه پښه مسح روا بولی. او ددوی داعادت دی چی گاهی په سفر وکی موزو ته ضرورت ولری
موزه دونه فراخه جوړوی چی لاس ورننوزی چی پر لخه پښه مسح وکړی. نو ددی سببه ضرب المثل
دی چی وائی فـلانی شیٔ دونه فراخه دی لکه د شیعه مُوزه. او مونږ هغه قرائت مختاره کړی چی
ارجُلکُمْ په نصب سره راغلی دی چی عطف پر مغسُول سی یعنی اَیدِیکُمْ»، چی معنا یه داسی
کیږی چی، وَاغْسِلوُا اَرْجُلَکُمْ»

**پوښتنه** څه حکمت دی د خدائ چی اَرْجلکُمْ سره دَدی چی عطف پر مغسُول دی او تر
وامسَحُوا یه وروسته راوړی **جوَاب**. حکمت الهی اشاره وترتیب ته ده په افعالو کښی
داودا سه ځکه بعض فقهاءٌ وائی چی ترتیب په افعَالو کښی داودا سه ځنگه چی په ایت الوضوء
کښی ذکر سوی دی واجب دیٔ. او د حنیفیانو په نیز سُنت دیٔ.

**سوَال**: پَه قرائت کی د جر (زیر) مونږ څه وایو. **جوَابُ**: شیخ احمد په تفسیرات احمدیه
او په نورالانوار کی وائی چی قرائت د جر محمُول پر حال د» تخفف دی یعنی چی موزی یه په پښو
وی چی عطف پر ممسوح سی او قرائت د نصب محمول پر حال د عدم تخفف دی چی پر مغسُول
عطف سی، ددی وجهی، بعض فقهاءٌ وائی چی مسح د موزو په قران سره ثابت ده. که څه هم
دا رأی د مصنفٌ خوښه نه ده . نو ځکه دی په مَرَاقی الفلاح کښی وَائی: ثَبَتَ بِالسُّنَّةِ قَوْلًا
وفعلًا» او بعض علماء د قرائت د جر داسی توجیه کوی چی دا جر د جوار دی یعنی لفظ دارجلکم
په اصل کی خو منصوب وو لکن چونکه مجاور د مجرور ذکر سو یعنی رُؤسِکُمْ نو ځکه وَارْجُلکُمْ

ته ئې هم جر ورکړی، کما فی قولهم جُحرُ ضبٍّ خربٍ۔ **فائده**: مسح دموزو به
ډیرو صحیحو حدیثو سره ثابته ده حتی چې وئیلی دی یو جماعت د حفاظو حدیثو چې
دمسح دموزو متواتر دی کما فی فتح الباری۔ حسن بصریؒ وائی چې ما ته اویا کسانو
اصحاب د رسول الله صلی الله علیه وسلم وئیلی دی چې مونږ لیدلی دی علیه السلام
مسح یې پر موزو کوله۔

او حافظ ابن حجرؒ په فتح الباری کی وائی چې حدیث دمسح دموزو اکثر تر اتیا وو کسانو
روایت کړی دی چې په هغو کی عشره مبشرهؓ هم ټول شامل دی۔ نو ددی سببه د حضرت
الامام الاعظمؒ نه روایت دی چې زه ویریږم د کفر له ډیره پر هغو کسانو چې مسح دموزو وانکاری
وروی عنه ایضًا، چې دده نه چا پوښتنه وکړه چې علامه د اهل سنت والجماعت
څه شی دی۔ ده ورته وویل، تفضیل الشیخین، یعنی بهتر بولل دابوبکر الصدیق او عمر
رضی الله تعالی عنهما پر نورو صحابه وو باندی، وحب الختنین، یعنی محبت کول درو
زوما نو سره د علیه السلام چې عثمان او علی رضی الله تعالی عنهما دی، والمسح علی الخفین،
او مسح جائز بولل پر موزو باندی۔ چې دا دری شیان په غیر کښی د اهل سنت والجماعت
نه پیدا کیږی۔ وروی عنه ایضًا، چې ما په مسح سره دموزو قول نه دی کړی حتی چې ماته
دومره حدیث نه وو رسیدلی لکه د سحار سپیدی۔

**پوښتنه**: بعض حدیثو کی راغلی دی چې سیدتنا بی بی عائشه وسیدنا عبدالله
ابن عباس وسیدنا ابوهریره رضی الله تعالی عنهم مسح دموزو نه منله۔ **جواب**
په نهایه او نورو کتابو کښی د فقه شریفی وائی چې دوی مبارکانو رجوع کړی وجواز ته دمسح
دموزو۔ او بل جواب دا دی چې امکان لری چې دوی انکار په حقیقت کی د لزوم نه دمسح
دموزو وو، او لازم خو یې مونږ هم نه بولو بلکه څوک موزی کا بدی او پښی مینځی
ورته روا ده بلکه عزیمت دی۔ **مسئله** که یو څوک سنی په وطن کښی د شیعه گانو
وی هغه ته تر پښو لو د پښو مسح دموزو افضل کار دی۔ دپاره د رد پر هغو شیعه وو باندی

اللهم اغفر لمولفه ولکاتبه آمین یارب العلمین



# صح المسح علی الخفین فی الحدث الاصغر للرجال والنساء

(صحیح او روا ده مسح پر موزو په کښی بې اودسیا کی یعنی نه په جنابت کی) دپاره د نرو او ښځو
۱ قال المصنف صح: اشاره وده خبری ته ده چې مسح لازمه نه ده که څوک
**فوائد** موزی کا بدی پښی مینځی روا دی بلکه عزیمت دی حکمًا مرافقًا او خلاف
تیمم چې هغه په وخت کی د عدم د اوبو فرض دی، قاله العینیؒ۔
۲ خفین یې په صیغه د تثنیه راوړو اشاره وده مسئلی ته ده چې یوه پښه پرېوله او
دوهمه پښه پر موزه مسح کول روا نه دی۔ ۳ علی۔ لفظ چې دپاره د استعلاء دی وې وایه
چې مسح دننه پر موزه یا لاندی تر موزه روا نه ده ۴ په بحر الرائق کی
تنبیه پروی خبره ده وائی چې مسح دموزو گاهی واجب گرځی مثلًا که اوبه دونه قدر وی چې نور اودس تازه کړی
پښو پریولو نه بسیږی نو مسح دموزو واجب ده۔ او یا داسی وی که سړی پښی مینځی
وخت د لمانځه وزی نو مسح پر موزو لازمه ده۔ یا وقوف د عرفات ځنډی تیریږی۔ ۵ مسح
دموزو د خواصو څخه د امت مرحومه ده لکه تیمم ۶ حدث اصغر یې ووایه ولی مسح
دموزو د جنابت یا د حیض یا د نفاس دپاره نه ده روا۔ ولی چې احادیث مبارکه په حدث
اصغر کی راغلی، او دا قانون دی چې کوم حکم چې خلاف القیاس وی پر ځای د سماع حصر دی۔
مسح الخفین کذالک۔ او بله خبره دا ده چې مسح دموزو دپاره د دفع د حرج ده او حرج په
هغه طهارت صغیر کی دی۔ چې مکرر پیښیږی چې هغه اودس دی، او طهارت د نجاست یا
د حیض یا د نفاس څخه مکرر نه دی۔ بلکه نادر دی۔

**پوښتنه**: د غسل سره څرنگه مسح دموزو تصویر کیدای سی ولی چې مغتسل چې
اوبه پر سر واچوی خو پر موزو بهیږی نو بناءً علی هذا د تقیید په حدث اصغر سره څه فائده
**جواب**: حافظ الدین په کافی کښی ددی تصویر داسی کړی دی چې سړی جوړبین
مجلدین مثلًا بیله طهارة تامه په پښو کړی او بیا دی ځان جنب کړی وروسته دی
پښی پر یو لوړ ځای کښیږدی او نور بدن دی ټول پر مینځی او پر جوړبینو مسح وکړی۔

نوفائده د قید دحدث اصغر داده چې دغه رنګه کول روانه دي.

**سَوال**: که څوک همیشه موزې کاږي او پښې منځي خلګ به خیال دشیعه پروکړي نو پرده غه عزیمت عمل خوموجب ددغه تهمت ګرځي ځکه بعض فقهاءؒ دا خنافو وایي چې مسحه دموزو افضله ده مطلقًا، **جَواب**: دفع ددغه تهمت خو په دې هم کیږي چې ګاهې ګاهې دې مسح پرموزو کوي.

**مَسئَلهٔ**: مسح دموزو په کور او په سفر په دواړو کښې روا ده. **فائِده** دلته خف چې مشتق د خفة څخه وجه داده چې د خف په سبب حکم دپښو سپک شو څخه و مسح ته **پوهَسَه**: چې مصنفؒ په مراقی الفلاح کې وایي چې سبب د مسح پښو کول دي دموزو. او شرط دمسح دادی چې موزه به پټونکی وی د محل د فرض یعنی پښه تر بجلکو پورې. او بل شرط یه دادی چې موزه به صالح دمسحې وې یعنی پرله پسې یو فرسخ تګ پکښې کولای سي. او څیرې به نه وی هغه اندازه چې مانع دمسحې وی کما سیأتي او حکم دمسح روا والی دلمانځه دی په خپله مُده کې یعنی دمقیم او مسافر، او رکن یه مسح د قدر مفروض ده، او کیفیت یه دادی چې شروع د پښو د ګوتو د خوا څخه کوي په ګوتو دلاس تر پونډی پورې.

## وَلَوْكَانَا مِنْ شَيْءٍ ثَخِيْنٍ غَيْرِ الْجِلْدِ

یعنی که څه هم جوړې سوې وی دادواړې موزې د پنډشي څخه سوا د څرمې څخه. لکه کرباسه او کرباس چې پر پنډې باندی تکیه کیږی بیله تړلو او او به هم نه جذب کوي.

## سَوَاءٌ كَانَ لَهُمَا نَعْلٌ مِنْ جِلْدٍ أَوْلَا

برابره ده که وی دغه د ثخین شی جوړې سوولره تلې د پوستکي چې ودې ته جوربین وایي. او که پوستکي اصلًا نه لري.

**پُوهَسَه**: چې دا مسئله در۳ې قسمه ده که چیرې په پښو اغوستې شی نازک وي او څیره نه وي پرې ګنډلې. خو په اتفاق نه ده پر روا. او که پنډې هم وي او نعل دار هم وي مسح په اتفاق پر روا ده. او که پنډې وی لکن منعل وی پرقول د بالاتفاق





مسح پر روا ده. او امام اعظمؒ مسح پر روا نه بولي. مصنفؒ د یارانوؒ د مذهب متابعت کړي دی. ولې چې په بعض کتابو کې وایي چې امام اعظمؒ رجوع کړې ده و قول ته د یارانوؒ د محنه ؤرو نات درې ورځې یا اوه ورځې. مصنفؒ په مراقی کښې وایي وعلیه الفتوی، لکن حلوانیؒ او حلبیؒ او خلاصه والا وایي چې د کرباس څخه پر جوړه سوو موزو مسح نه ده روا. مګر مجلدی وي د دروایش وایي ظاهره هم دغه ده ولې چې کرباس د پنبه و څخه جوړیږی نوځما لپا او به جذب کوي

**پوهَسَه**، که چیرې موزې لاندی باندی د څرمې ساخت در لودی هغه ته مجلدی وایي مسح پر روا ده **فَرعَه**: د عسکرو پر غټو ګوتو مسح روا ده ولې چې په مجلد کی داخل دي کی څه هم دوې د غایة استحکام د پاره تناوونه ورته وي. او کی د لاندی د خوا څرمه یعنی ساخت ورکړي وو او نازکی نه وی دلوړې خوا هغه ته جورب منعل وایي مسح پر روا ده.

او کی څرمه ګرسره نه وی ورکړي او پنډې وی او بې تړلو پر پنډ یو تکیه کی وی. هغه ته ثخینین وایي. **فَائِدَه**: بناء پر قول د مصنفؒ څخه یو قسم پوند و جرابو چې د خارج څخه راځي او په مابین کی کشکان لري چې پر پنډې باندی کلکې ولاړې وي او د مسح کولو او به پښو ته نه ورځي پر هغو هم مسح روا ده. او د غه قسم خبره ته دی په دقیق نظر ګورې چې شرائط په کښې برابر دی او که نه!

قَالَ المُصَنّفُ.

## وَيَشْتَرِطُ لِجَوَازِ الْمَسْحِ عَلَى الْخُفَّيْنِ سَبْعَةُ شَرَائِطَ

او شرط دی د پاره د روا والي د مسحې پر موزو باندی اوه شرطه

## اَلْاَوَّلُ لُبْسُهُمَا بَعْدَ غَسْلِ الرِّجْلَيْنِ وَلَوْقَبْلَ كَمَالِ الْوُضُوْءِ

اول شرط یه دادی چې موزې بې پښو کړې وی پس له پریولو د پښو که څه هم د مخه تر کمال د اودا

## إِذَا اَتَمَّهُ قَبْلَ حُصُوْلِ نَاقِضِ الْوُضُوْءِ

لکه چې سر یې پښې پرې منځي او موزې په پښو کړې او بیا پوره اودس وکړي. لکن دا هغلته چې په مابین کښې د باقی اوداس ماتونکی د اوداس نه سی پیدا.

لکه پښکلی یا د بوځای غخوینه راونه زی. **فَائِدَهْ**: که دسرې پربوه پښنه یا پر دواړو پښو سکنده وه یعنی جبیره نوپرهغه یه مسح وکړه موزه یه په پښوکړه پرهغی موزی مسح روادَه. وَلی چی مسح دَجبیری حکم د غسل لری گویا پښنه یه پریولله.
**پوه سَه**: چی موزی مانع دسرایت ده حَدیث و پښنی ته دی رافع دحدث نه دی

**وَالثَّانِي سَتْرُهُمَا الْكَعْبَيْنِ** اودوهم شرط دمسح دَموزو پټول دی دموزو بجلکولره یعنی دَټولوطرفوڅخه. **مَسْئَلَه**: که موزو بجلکی خوپټی کړی وی لکن لنډی وی چی د لوړی خوا بجلکی معلومیدَلی پروانه لری. مسحه پرروادَه" **مَسْئَلَه**: که چیری موزی دونه لنډی وی چی بجلکه یه نه سَوای پټولای لکن سرې کراسنه پری وگنډل او بجلکی یه په پټی کړی مسحَه پرروادَه" م"
قَالَ الْمُصَنِّفُ:

**وَالثَّالِثُ اِمْكَانُ مُتَابَعَةِ الْمَشْيِ فِيْهِمَا فَلَا يَجُوْزُ عَلٰى**
اودریم شرط دمسح دموزو دادی چی ممکن به وي پرله پسی تگ په هغوکی. نومسحه نه ده روا پرهغه

**خُفٍّ مِنْ زُجَاجٍ اَوْخَشَبٍ اَوْحَدِيْدٍ** موزه چی دشیشی څخه جوړه وی یاد لرگی څخه اویاداوسپنی څخه. **پُوهه سَه**: چی مراد دمشی څخه یوفرسخ مشی دی یابالاکله په حَواشی ووکنبی دهدایه چی وَائی. اوپه محیط کی وَائی چی مراد قطع دمسافت دسَفرده **فَائِدَه**: اگرچی تراوسه چیاد شیشی اویادلرگی اویاداوسپنی موزې نه دی لیدَلی. لکن فقهاءٌ دپاره دفوائدوقیود فرضی مثالونه راوړي. قَالَ الْمُصَنِّفُ

**وَالرَّابِعُ خُلُوُّكُلِّ وَاحِدٍمِنْهُمَامِنْ خَرْقٍ قَدْرَثَلَاثَ اَصَابِعَ مِنْ**
اوڅلورم شرط دَمسح، خالی وَالی دَی دهرې موزی دڅیری والی څخه په قدر د درو گوتو دَ





**اَصَابِعِ الْقَدَمِ** **اَصْغَرَ** کچنی گوتو څخه دَپښو **پُوهه سَه**: چی اعتبار دکوچنی گوتو دمقدارهلهدی چی خرق بیله دگوتو دځای څخه پربل ځای وي او که چیری خرق دگوتوپرځای وُو. بیا نوهرې دری گوتی چی وي هغوته اعتبار دَی. حتی که بټه گوته ښکاره وَه سره د همسَایه لوی گوتې مسح پرروَاده" که څه هم ددغو دوو گوتو مقدار د درو کشنی گوتو کیږی. او که دَبټی گوتی سره ئی دوی نوری ښکاره وی بیا نومسح نه ده پرروَا. ددے خبری دلیل دادی چی هره گوته پخپل ځان کی اصل دَه په نورو گوتو سره نه اندازه کیږی" ط، رد"
اوبعض فقهاءٌ وائی چی درې گوتی دلاس معتبرې دي. اودا روایت دی دحسنؒ دامام اعظمؒ څخه "واختاره ابُوبکررازي" وَالصحیح هُوَالاولُ" **مَسْئَلَه**: مشهوره په مذهب کی داده چی چی دیوی موزی متفرق خرقونه سره یوځای کیږی. نوکه ددرو گوتو ته رسیدل مسح نه ده پرروَا. او ده دوو موزو خرقونه نه سره یوځای کیږی. لکن په خزانة الفتاوی کی اوپه توشیح کی وَائی چی دامام ابویوسفؒ مذهب دادی چی خروق (یعنی څیری ځایونه) جدا گانه که په یوه مُوزه کښی اوکه په دوو موزوکی وی نه سره یوځای کیږي. دامذهَب مختاره کړی کمال الدینؒ او ابن امیرالحاج. اودامذهَب قوی گنړلی بحرالرائق ط، ص۱۰۲ **پوه سَه**: چی خُروق هغه معتبر دی چی پښنه په وخت کی دتگ ترې معلومیږی که څه هم په وخت کی دا یښوولو دَ پښنی پرځکه پښنه نه معلومیږی" ط.

**وَالْخَامِسُ اِسْتِمْسَاكُهُمَا عَلَى الرِّجْلَيْنِ مِنْ غَيْرِ شَدٍّ**
اوپنځم شرط دَجواز دمسح دموزو دادی چی دواړی موزی په تکیه کیږی پرپښو بیله تړلو په تَناویا په کشک. مطلب دا چی موزی به پنډی او کلکی وي.

**وَالسَّادِسُ مَنْعُهُمَا وُصُوْلَ الْمَاءِ اِلَى الْجَسَدِ** او شپږم شرط دصحت دمسح پرموزو منع کول دی دموزو رسیدَل دابو وجسَدته یعنی پښنی ته.

## وَالسَّابِعُ اَنْ يَبْقٰى مِنْ مُقَدَّمِ الْقَدَمِ قَدْرُ ثَلَاثِ اَصَابِعَ

او اووم شرط د صحت د مسح د موزو دا دی. چې پاتې به وي د ډېر حصې څخه د پښې يعني د ګوتو د خوا

## مِنْ اَصْغَرِ ثَلٰثِ اَصَابِعِ الْيَدِ فَلَوْ كَانَ فَاقِدًا مُقَدَّمَ الْقَدَمِ

څخه په مقدار د درې ګوتو لږ نيو د ګوتو څخه د لاس، نو که يو سړی مقدم حصه نه وه هغه به مسح پر موزه

## لَا يَمْسَحُ عَلٰى خُفِّهٖ وَلَوْ كَانَ عَقِبُ الْقَدَمِ مَوْجُوْدًا

نه کوي کې څه هم د پښې څوا باقي وي.

**مَسْئَلَهٌ:** که د سړي يوه پښه تر بجلکي لوړه پرې وه، پر هغه بله موزه مسح ورته روا ده

**مَسْئَلَه:** که د سړي يوه پښه تر بجلکي لاندې په قدر د درو ګوتو پاتې وه هغه پر دواړو موزو مسحه کوي. **مَسْئَلَه:** که د سړي يوه پښه روغه وه او په بله پښه کې تر بجلکي لاندې د درو ګوتو مقدار نه وو پاتې هغه نه پر هغه روغې پښې پر موزه هم مسحه نه ده روا.

ولې چې پر دغه سړي پر يوله د هغه پاتې حصې د پرې سوې پښې فرض دی. او مسح او غسل پر يوله په وظيفې کښې د پښو سره يو ځای کيږي" م" قَالَ الْمُصَنِّفُ.

## وَمَسْحُ الْمُقِيْمِ يَوْمًا وَلَيْلَةً وَالْمُسَافِرِ ثَلَاثَةَ اَيَّامٍ بِلَيَالِيْهَا

او مسح به کوي مقيم سړی يوه ورځ او يوه شپه. او مسافر به مسحه کوي درې ورځې سره د شپو د هغو. او د غه اندازه په صحيح حديث کښې د آنحضرت صلی الله عليه وسلم څخه روايت کړه سوې ده.

## وَابْتِدَاءُ الْمُدَّةِ مِنْ وَقْتِ الْحَدَثِ بَعْدَ لُبْسِ الْخُفَّيْنِ

او ابتداء د مدې د مسحې يعني مقيم او مسافر لره د وخت څخه د بې اودسه د پس له په پښو کولو د موزو. لکن چې موزې پر طهارت مائي په پښو کړې وي" هم د غه مذهب

صحيح دی. او بعض علماء په ابتداء د وخت څخه د په پښو کولو د موزو بولي، وبه قال الاوزاعیؒ او امام احمدؒ ابتداء د مُدې د وخت څخه د مسح بولي. اختلاف د دې مذهبو په دې مثال کې دی چې يو سړي موزې په پښو کړې د سحار د لمانځه د پاره او بيا اودس مات سود مخه تر زوال او بيا په وروسته تر زوال د ماپښين د لمانځه د او د اسر په وخت کې مسح پر موزو وکړه. نو پر مذهب د اوزاعیؒ اتمام د مُدې د مقيم هغه وخت کيږي چې صبا ورځې سفيدي را وچوي ولې چې وقت د لبس په دې ورځ د سحار لمونځ وو نو شبانه روز پوره سو. او زمونږ په نيز مده د مقيم قبل الزوال پوره کيږي. ولې د ده بې اودسيا وخت پر ورځ د غه وخت وو" او په مذهب کې د امام احمدؒ پس له زواله مده پوره کيږي. ولې چې د پر ورځ بعد الزوال مسح وکړه" كذا قال ز ص۴۵ قَالَ الْمُصَنِّفُ

## وَاِنْ مَسَحَ مُقِيْمٌ ثُمَّ سَافَرَ قَبْلَ تَمَامِ مُدَّتِهٖ اَتَمَّ مُدَّةَ الْمُسَافِرِ

او که چيرې مسح يو څو وکړه مقيم سړي او بيا په سفر روان سو د مخه تر پوره کولو د خپلې مُدې

## وَاِنْ اَقَامَ الْمُسَافِرُ بَعْدَ مَا مَسَحَ يَوْمًا وَلَيْلَةً نَزَعَ وَاِلَّا يُتِمُّ يَوْمًا وَلَيْلَةً

يعني شبانه روز نو دی پوره کړي مده د سفر يعني درې شبانه روزه او که بالعکس مسافر نيت د اقامت وکړي پس لر دی چې يو شبانه روز په مسح کړی وه نو موزې دې وکاږي يعني د بل او د اسر سره دې پښې پرې مينځې بيا کې موزې په پښو کولې او که نه! او کې يو شبانه روز نه وو پوره کړي هغه دې پسې پوره کړي يعني بيا دې موزې وکاږي. دليل د دې دواړو مسئلو دا دی چې جواز د مسح په سفر او اقامت پورې اړه لري و بس.

## فَرْضُ الْمَسْحِ قَدْرُ ثَلَاثِ اَصَابِعَ مِنْ اَصْغَرِ اَصَابِعِ الْيَدِ عَلٰى ظَاهِرِ مُقَدَّمِ كُلِّ رِجْلٍ

او فرض د مسح الخف مقدار دی، د درو ګوتو د هغه کشنې ګوتو څخه د لاس پر ظاهر د مقدم

حصی ډېنې **پوهـــسـه**: چې د تقدیریه د درو ګوتو معنا داده چې کم تر هغه به نه وي او که زیات وي په طریق اولیٰ روا دَه. او د ظاهر د لفظ معنا دَاده چې د نسر پر موزه او یا پر تلی د موزې مسح روا نه ده. او د مقدم معنا داده چې د پنډې دَخوا مسحه روا نه دَه، یعنی موافق د سُنت مرنه ده کما سیأتي، **پـــوهـــســـه**، چې مصنف پـه مراقی کښې وائي چې دا اصح مذهب دی. ولې چې آله د مسح دَلاس ګوتې دی او دې اکثر د پنځو ګوتو دي. **فـائـدة**: پر لفظ کی د مقدار اشاره ودې ته دَه، چې حتمًا دګوتو تیره وَل ضروری نه دي حتی کی د غه مقدار په لند تکرو مسحه اویا په پَرتوي کړي مسحه یه پرځای سَوه. قَالَ المُصنف رح

## وَسُنَّتُهُ مَدُّ الْأَصَابِعِ مُفَرَّجَةً مِنْ رُؤُسِ اَصَابِعِ الْقَدَمِ اِلَى السَّاقِ

او سنت طریقه د مسح الخف دَاده چې کش دی کړي ګوتې سره خلاصې د سرو څخه د ګوتو د پښې تر پوندې پورې، ولې رَسُول کریم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دَغسې تعلیم وکړی وهغه چا ته چې موزې یه په او د اسې کښې پړیولې. **فــائـــدَه**: که سَرې مسح د ساق (پنډې) دَخوا شروع کړه او یـا په پسَاره مسح وکړه. مسحه یه صَحیح دَه لکن د سُنت مخالف سُو،

**مسَـئـلَه**: د درو ګوتو مقدار پر هره موزه فرض دَی. که سَرې پر یوه موزه دوې ګوتې کش کړې او پر دوهمَه یَه خلور ګوتې کش کړې دا مسحه سَه ده رَوَا. ط، ص۱۰۵،

**پوهـسَـه**: چې تکرار د مَسحې سنت نه دی لکه په مسح کی د سَر. او عطاءؒ وائي چې مسح دی درې واره کوی، دده خیال دا دی چې مسح د موزو عوض دی د پښو د پریولو، پر یولو د پښو خو درې واره سنت دی نو مسح هم. **جَواب**: دا دی. چې په منصُوص احکامو کی باید سَرې متابعت د سنتِ وارده وکړي تَسلیمًا لحکم الشرع، ولې چې بنده عاجز دی د پېژندلو د سِرد احکامو شرعیه وو، نو ځکه امام علی کرم الله وَجهه. وائي که دین په عقل سَره وای نو به اسفل (لاندې د موزې) دخُف اولیٰ په مسح سَره وای ترا علیٰ دخف (ترپورتنی حصه) ولې چې تلی دخف ځای د نجاست او د خیرو دی. قَالَ الامام رح که زه په رأیه حکم وکړم نو به بولو کې به مي د غسل حکم کولای ولې چې بَولې اتفاقًا مرداري دي. او په مَنِی کی به مي دا او د اسې حکم





کولای وَلې چې د مَنی پـه نجاسَت کی اختلاف دی. او بَل به ما نرته په میراث کی نیمه حصَه د ښځې د میراث ور کولای ولې چې ښځه عاجزه دَه. قَالَ المُصنف رح،

## وَيَنْقُضُ مَسَحَ الْخُفِّ اَرْبَعَةُ اَشْيَاءٍ كُلُّ شَيْءٍ يَنْقُضُ الْوُضُوْءَ

او ماتوی مسح د موزې خلور شیٔ. اول هر شیٔ لکه بولې او غُل وغیره چې او دَس مَا توې مسحه د موزې هم پـه ماتیږي. قَالَ المصنف رح.

## وَنَزْعُ خُفٍّ وَلَوْ بِخُرُوْجِ اَكْثَرِ الْقَدَمِ اِلَى سَاقِ الْخُفِّ

۲. او دوهم ماتوونکی د مسح د موزې نزع د خف دَه که څه هم په وَتو سره د اکثرې پښې وي د موزې د پنډې و خواته وي. **فـائـده**: مصنف رح لفظ د خف مفرد و وایه او خُفین یـه نه وویَله د دی سَبَبه چې د یوې موزې چې پښه څَندی ووزی هم ناقض د دواړو پښو د مسح دی. ولې چې یوه موزه چې دَ پښې څخه وختله د هغې پښې پر یوله لازم سَوه. او هغه بله موزه به هم کاږي او هغه پښـه به هم مینځی ولې چې دَ مسح او غَسل جمع ناروَاده، **مسَـئـلَه**: که چیرې یو سړي طهارت تام وکړي. او موزې یه په پښو کړې د مخه دا او دس تر ماتید و یـه موزې وکښې په دی سَره مَسح د موزو نه ماتیږی. ولې چې نفس نزع الخف خو حدث نه دی نو د طهارت خو پرځای دی.

**پـوهـسَـه**: چې نسبت د مَا توالی و نزع الخف ته مجازدی. بلکه ماتوونکی د مسح هَغه حدث سَابق دی چې موزې د پښو څخه منع کړی وُو، او س چې موزه وختل هغه حدث سابق و پښو ته سُرایت وکړی نو ځکه یـه غسل لازم سُو، م، وَاِنَّمَا قَالَ اکثر، ولې چې اکثر له حکم د کل دی علی الصحیح، **پـوهـسَـه**: چې حضرت الامام محمدؒ وائي چې که په موزه کښې دُونه قدر پښه پاتِه وَه چې مقدار د مسح یه پوره کاوَه مَسح نه ماتیږي. او که نه وو پاته مسح ماته سَوه، پـه کافی کی وَائي اکثر مشائخ د حنیفیانو پر دَغه روایت دي. او په شرح کښې د عَلامه مسکین هم دغه سی وَائي. او بحر الرائق د نصَاب څخه نقل کړي دی.

چې هم دغه روایت د امام محمدؒ صحیح دی. او مصنفؒ مذهب د شیخینوؒ مختاره کړی دی او
په مَراقی کی وائیٔ وَهُوَ الصَّحِیح وَاللهُ اَعْلَمُ بِالصَّوَابِ» قَالَ المُصَنِّفُ"

## وَاِصَابَةُ الْمَآءِ اَكْثَرَ اِحْدَى الْقَدَمَيْنِ فِى الْخُفِّ عَلَى الصَّحِيحِ

او ورپیږ ما توونکی د مسح د موزی رسیدل د اوبو دی وَ اکثر قدم ته په موزه کی پر صحیح روایت
په دی مسئله کی هم اکثر ته حکم د کل دی. یعنی که یوه پښه چې ټوله لنده سی په موزه کی
نو هغه بله موزه به هم کاږی او پښه به مینځی. ولی چې مسح او غسل نه سره یوځای کیږی

**فَائِدَه**: علامه طحطاویؒ په ص ۱۰۶ کی وائیٔ چې په دی مسئلی کی جوړ اختلاف
دی نوځکه په متونو د فقه شریفی د اصابت الماء فی الخف د نواقض څخه نه دی ګڼرلی.
او منشاء د اختلاف دا ده»، چې ډیر فقهاء وائیٔ چې مسح الخف د پاره د آسانی ده او عزیمت
چې غسل دی د خف سره سره مشروع دیٔ. او دی مذهب ته امام زیلعیؒ میل کړی دی. او ده دا
خبره د عامة الکتب څخه نقل کړی ده»، او برهان حلبیؒ د دی خبری تخلی کړی دیٔ. او نوح افندیؒ
هم دا خبره صحیح بللی ده. فی حواشی وو کښی د دُرر. نوځکه بناء علیٰ هذه الروایة چې هغه
یوه پښه په موزه کښی پریوله سوه لان للاکثر حکم الکل نو د هغه بلی موزی مسح ماته سوه بناء
علیٰ ما مر چې غسل او مسح نه سره یوځای کیږی. او دغه مذهب چونکه په نیز د مصنفؒ صحیح
وو نوځکه یه علیٰ الصحیح وویله»

او بعض فقهاءؒ وائیٔ چې مسح د موزی رخصت اسقاط دی یعنی سره د موزی غسل د پښی ساقط
دی. نو بناءً علیٰ هذا الرای لندیدو که څه هم د ټولی پښی وی اعتبار نه لری او نه دا غسل القدم
دی. ولی چې پټ والی د پښی په موزه سره مانع دی د سرایت څخه د حدث و پښی ته بالاجماع
نو پښه پر خپل طهارت سابقه پاته ده. او که حدث پیښ سی هغه پر موزه محصور دی او هغه
خو بیا په مسح الخف سره زائلیږی. نو دا غسل معتبر نه دی. ولی چې دی سره حدث د
پښی څخه نه دی زائل سویٔ. ولی پښه خو بیا که وَ. قال فی السراج وهو الاظهر والیه جنح بنی
مَالَ الکمال والیه المرجع والمآل »
"الی الله"





## وَمُضِىُّ الْمُدَّةِ اِنْ لَمْ يَخَفْ ذِهَابَ رِجْلِهِ بِالْبَرْدِ وَبَعْدَ الثَّلَاثَةِ

او څلورم ناقض المسح پوره والی دی د مُدی د مسح د مقیم یا مسافر که چیری دی نه بیریدی پر ذهاب
د پښی د یخ له سببه. او وروسته تر

## الْاَخِيرَةِ غَسَلَ رِجْلَيْهِ فَقَطْ

دری اخیرو دی صرف پښی پریولی

**مَسْئَلَه**: که دا مده پوره سوه او سړی په لمانځه کښی وو لمونځ یه باطل سُو نو که او به نه
وی تیمم دی وکړی لمونځ دی د سره وکړی. قَالَ الزیلعیُّ: وَهُوَالاشبه» او بعض فقهاء
وائیٔ چې لمونځ یه نه باطلیږی» قَالَ فی السراج وَهُوَالاصح. وجه یه دا ده چې که دی لمونځ
قطع کړی او اوبه نه وی چې پښی په پریولی» نو تیمم به کوی. پښی خو په تیمم کی برخه
نه لری» نو د لمانځه د قطع والی څه فائده:

**وَفِيهِ نَظَرٌ**: ولی چې پر دی تقدیر خو اتمام د لمانځه په طهارت ناقص لازمیږی.
ولی چې پوره والی د مُدی د مسح خو حدث سابق و پښی ته ساری کوی که اوبه وی او که نه وی
او په نیز د عدم الماء لمونځ نه دی روا مګر په تیمم سره. او په اجماع سره په طهارت
ناقص لمونځ نه دی روا. او دا چې مصنفؒ وائیٔ: اِنْ لَمْ يَخَفْ آه. د دی عبارت څخه ظاهرًا
داسی معلومیږی که سړی پر ذهاب د پښو په سبب د یخ بیریدی. نو مسح الخف یه نه
ده ماته» او دا غسی خبره نه ده. ولی چې په مضی او تیریدو د مُدی حلول د حدث
و پښی ته کیږی که د یخ بیره وی او که نه وی. بلکه په صورت کی د بیری د یخ څخه موزی
به کاږی او پر پښو به مسحه کوی لکه پر جبیره. د دی سوال دفع علامه طحطاویؒ په
دی ډول کړیده. چې دغه عبارت د مصنفؒ اِنْ لَمْ يَخَفْ آه متعلق په محذوف سره دی
نو تقدیر د عبارت داسی دی»، فیجب علیه نزع خُفیه وغسل رجلیه اِن لَمْ یخف ذهاب
آه قوله وبعد الثلاثة آه معنا یه دا ده چې پس له دغو درو اخیرو څخه یعنی چې نزع الخف
وی، او لندیده د اکثر قدم دی په موزه کی او تیریدل د مُدی د مسح دی موزی وکاږی
او پښی دی فقط پریولی. ولی چې نور طهارت خو پر ځای وی. او هم د دی سببه

مصنفؒ تخصیص د دوا خبرو وکړی. ولې چې اول صُورت کښې خو اودس مات سو نو تول اودس به کوی ،

**سُوال:** مصنفؒ نواقض د مسح څلور وَ بلل او سره دد ی چې مسح الخف په خرق کثیر سره هم ماتیږی چې پس له مسح څخه وجود ته راسی ۔ او د غه رنګه پر معذور سړی چې وخت د لمانځه تیر سی هم په مسح الخف ماتیږي. **جَوابْ:** خرق کثیر په حکم کی د نزع الخف داخل دی» او خروج وقت الصلوٰة للمعذور په انقضاء المدة کښې داخِل دی ، والسوال للسیدؒ والجَواب للطحطاویؒ. قَالَ المصنفؒ.

## وَلَا يَجُوْزُ الْمَسْحُ عَلٰى عِمَامَةٍ وَ قَلَنْسُوَةٍ وَبُرْقَعٍ وَ قُفَّازَيْنِ

او نه ده روا مسح پر لنګوټه . او پر خولۍ ، او پر بُغره د ښځی او پر دستکلوچي پر لاسو یرا غوندي دلیل د تولو دا دی چې مسح په حدیث مُبارك سره خلاف القیاس ثابته ده ۔ او قانون اصولی دی چی مرشی چی خلاف القیاس وی محصور دی پر ځای د سماع . په مذکوره شیا نو کی سماع نسته.

**سَوال:** په صحیح حَدیث کښې راغلی دي چې آنحضرت صلی الله عَلَیْهُ وَسَلم مسح وکړه یو وخت پر عمامه باندې. **جَوابْ:** شراح د حدیثو وائي چې رسول اللهٔ صلی الله علیه وسلم خو مسح پر سر وکړه . ورو سته یه لنګوټه پر سر سمَوله راوی د حَدیث چې دا ولید ل خیال یه دا سو چې دده مبارك مسحه پر لنګوټه وکړه . او هغه جواب چې طحطاویؒ د سراج څخه نقل کړی او مولوی اعزاز علی یه هم تائید کړی دیُ . هغه دا چې مسح پر لنګوټه هلته روا ده چې لند والی د مسح په سر ته تر لنګوټه ورووزی او مقدار د ربع د سر لوند وسی ،

او د علیه السلام مسح پر لنګوټه هم د غه شان ته وه. دَرویش وائ چی دا پیر لری جواب دی . وَلی چی لنګوټه خو خوَوَله پُر سر پیچلی وی. نو تر دی ټولو څرنګه بلل ( لوند والی ) دسیمې چې بیخی کم شئ دی و سَر ته ر سیدلای سی ، او هغه خبره چې بعض کسا نو کړی چې شاید پر سر د انحضرت صَلی اللهُ عَلیه وسَلم دی ( ر نجینه ) خولی نه وَه او مقدار د ربع د سر دی خالی وو نو پر دغه ځای یه مسحه وکړه ، غلطه خبره ده ولې چې په دی صُورت کی خو مسحه پُر





سَر شوله نه پر لنګوټه" وَاللهُ اَعْلَمُ » قَالَ المصنف په بَیان کی د جبیری وَ نحوه.

# فَصْلٌ

## اِذَا افْتَصَدَ اَوْجُرِحَ اَوْكُسِرَ عُضْوُهٗ فَشَدَّ بِخِرْقَةٍ اَوْجَبِيْرَةٍ

کله چې یری رګ خلاص کړی او یا ټپي سو پر یوه عضوه د او د اسه او یا مات سو یو اندام د سړي نو یه وتاړه هغه اندام په یوه ټکره سره او یا یه وتاړه په لرګی کی چې په ښتو » سکنده وَرته وائی او عموما سکنده پر مات اندام تړل کیږي. « قَالَ المُصنفؒ »

## وَلَا يَسْتَطِيْعُ غَسْلَ الْعُضْوِ وَلَا يَسْتَطِيْعُ مَسْحَهٗ وَجَبَ الْمَسْحُ

او طاقت یه نه وُو چې پریمنځی هغه اندام یعنی نه یه یخواوبو او نه یه تودو اوبو. او وس د مسح کولو یه هم نه وو یعنی پر خُودی ټپ یا مات ځای نو وا جب ده مسحه پر جبیره وَغیره.

## عَلٰى اَكْثَرِ مَا شَدَّ بِهِ الْعُضْوَ وَكَفَى الْمَسْحُ عَلٰى مَا ظَهَرَ مِنَ

پر ډیره حصه د هغه شئ چې ټپ یا مات وغیره یه تړلی دی. او کافی ده مسح پر هغه ځای چې ښکاره وی د بَد ن څخه د مفتصد» یعنی په

## الْجَسَدِ بَيْنَ عِصَابَةِ الْمُفْتَصِدِ

مابین کښې د پټۍ پری منځل نه غواړي

**پوه سَه:** چی د وجوب څخه د لته مراد وجوب شرعی دی چې تر فرضُو کم دی نو چونکه مسح د جبیری په حدیث نبویؐ سره ثابته ده چې هغه خبر واحد او ظنی دی نو فرضیت نه په ثابتیږی» ولې چې اصول الفقه کی وائ چې د فرضیت د اثبات د پاره دلیل قطعی غواړي لکه قرآن کریم یا حدیث مُتواتر» نو بناءً عَلی هذا که سړي مسح د جبیري پرېږ دي لمونځ یه روادئ. **فَائِدَه:** په بعض روایا تو کی راغلی دی چې مَسح د جبیری به مکروه کوی مګر نه که جبیره پر سَروه هغه دی نه مکروه وي.

**فائده:** کی په سرکښی مقدار د ربع الرأس د پټی ځخه خالی وو سر د مسح کړی د جبیرې مسح نه غواړي. او په یوه روایت کی داسی هم راغلی دی چی مسح د جبیری مُستحب ده او په بل روایت کی وائی چی مسح دَجبیری فرض ده حتیٰ کی دا مسح نه وکړه او دس یې ردی ده. او حَدیث مبارك په باب کی د مسحی د جبیری دا دی چی حضرت علی کرم الله وَجهه د لاس بند مات سو په وَرځ د اُحد یا خیبر نو رسولُ الله صَلَّی الله علیه وَسَلم ورته امر وکړی چی پرجبیره مسحه کوه.

**سنهانه فائده** په کتا بوکی د فقه شریفی وائی چی وجوب د مسح دَجبیری مَذهب دی دامام اعظمؒ او فرض والی مذهب دی دیارانو؛ دروایش وَائی چی په حقیقت کښی په مابین کی دامام اعظمؒ او دده دشاگردانو؛ اختلاف نسته. ولی مراد د حضرت الامامؒ دوجوب ځخه وجوب شرعی دی یعنی چی په دَلیل ظنی سره لکه خبر واحِد ثابت وی» او مراد دشاگردانو د فرضیت ځخه فرضیت عملی دی یعنی عمل پری لازم دی نه فرضیت اصطلاحی چی دلیل قطعی غواړي او منکر یې کافر گڼل کیږي. نو بناءً علیٰ هٰذه المحاکمة هغه چی په ایضاح کی وَائی چی فتویٰ پر قول دیارانو؛ ده احتیاطًا بیځایه خبره دَه» ولی چی فتویٰ پر یوه قول خو فرع د اختلاف د قولینو ده» وقد عرفت انه لا اختلاف بینهٗ وبینهما فی الحقیقة».

**فائده:** مصنفؒ وویل علیٰ اکثر ماشدَّ آه دلیل یې دادیٔ که سَرې تَوله پټی مسحه کوی احتمال لري چی تبې دی تاوان ورسیږی»، وَقَد قَال اللهُ تعالیٰ: مَا یُرِیدُ الله لِیَجعَل عَلیکم مِن حَرَجٍ»، وَقَال: یُرِیدُ اللهُ بِکُمُ الیُسرَ وَلَا یُرِیدُ بِکُمُ العُسرَ» او هم دغه قول د مصنف صحیح دَی»، وَفی التتمة بِه یُفتیٰ» وفی الخلاصة وعلیه الفتویٰ والیه جنح صاحب الهدایة. لکن صاحِبُ الکنز وَائی چی تَوله جبیره او پټی به مسح کوي»

**فائده:** مصنفؒ وویل وَکَفیٰ المَسحُ آه دا هم بناء پر اصح مذهب ده چی په ذخیرة او مختارات النوازل کی وَائي: دلیل یې دادی که سَرې هغه خَلاص ځای چی په مابین کی دَپټی دي منځی نو عین ممکنه دَه چی پټیٔ بـه لنده سِی. او هغه لندوالی به وتبې ته





رسیږی نو هغه به ضرر وَاخلی. وَقیل. فرض دی چی هغه خالی ځای به منځی ولی چی دا ځای خو تر پټی نه دی لاندی بلکه ښکاره دیٔ. دروایش وائی چی په دی کی لوی حرج دیٔ کما لایخفیٰ.

**مسئلة:** که چیری فرضًا مسح د جبیری هم ضرر رساوه نو مسحه دی هم پریږدی په اتفاق سره دفعًا للحرج. او بل دا چی غسل چی ساقط شو په سبب د عذر د ضرر نو مسحه په طریق اولیٰ ساقطیږی. **فائده:** په مبتغی کی وَائی که دَسرې توله سر تپی وو او پټی کړی ئی وو» لَا یَجِبُ المسحُ عَلَیهِ، یعنی مسح د سر پر هغه واجب نه ده که څه هم مسح د پټی ور ته تاوان نه رسوي. ولی چی مسح د بدل د غسل ځخه ده» والمبدل منه ساقط دی فالبَدل مثله آه. دروایش وائی چی دغه دلیل د صاحب مبتغی فاسد دی»، لِمَا فی البحر چی صواب وجوب دیٔ. د مسحی د پټی او په سر کښی مسح بَدل د غسل نه ده بلکه مسح د سر اصل بنفسه ده» وَامسَحُوا بِرُؤُسِکُم». ایة قرانی دَیٔ.

**محاکمة:** که پر سرې پر یوله د سَر فرض وه لکه په غسل کښی او سَر یې تپی وُو او پټی یې پر لگولی وَه. او مسح دَپټی تاوان نه کاوَه» سَقَط المَسح» کما فی المبتغی» نو دلیل د هغه صحیح دی. او که فرض مسح وه لکه په اودا سَر کی» لَا یَسقُطُ المسح وَیَمسح عَلی العمامة لان المسح فی الغسل بَدل وفی الوضوء اصلٌ»، وفیه نظر لا یخفی علیٰ المتأمل.

**پوښتنه:** چی چونکه په مَابین کی د مَسحی د جبیرې او د مسح د موزې فرق سته په څو وجهو. نو مصنفؒ اوس غواړي چی دَغه فرقونه بیان کړي نو وائی. قال المصنفؒ

**وَالمَسحُ کَالغَسلِ فَلَا یَتَوَقَّتُ بِمُدَّةٍ** اول فرق دادی چی د مسح د جبیرې لکه پریوله دی نو په وقت مُعین پوری نه ده مربوطه بلکه تر وقت دَجوړیدو دَتپ یا مات والده قرب الوقت او بعد» او خلاف د مسح د موزی چی هغه وخت معین لري یا یو شبا ورځ یا درې[۲] کمامَرّ: په دې عبارت کی د مصنفؒ چی کالغَسل اشاره ده ودې ته چی مَسح د جبیرې بَدل د غسل ځخه نه دَه. وَلهذا که یو لاس د سَړی مات وي او بل لاس وی پر مات به مسحه کوي او روغ به منځی» بخلاف الخف (موزه) چی مسح الخف بَدل دَی

رَوَاجِي په يوه پښه يه موزه وي پرهغې مسح وکړي اوهغه بله پښه
دغسل څخه نوځکه داسې نه ده. رَوَاجِي په يوه پښه يه موزه وي پرهغې مسح وکړي اوهغه بله پښه
چي موزه نسته باندي هغه پريمنځي لِمامَرَّ چي جمع په مابين کښي دمسح دموزي اودغسل د
بَلې پښې نا روا ده» اوددي دَوارو مسئلو دليل دادی چي مسحه د جبيرې اصل دَه لکه غسل او
قَالَ المصنفُ
مسح دموزي بدل دَی دغسله څخه»

اودوهم فرق دادی چي تړل دَجبيرې
# وَلَايُشْتَرطُ شَدُّ الْجَبِيْرَةِ عَلىٰ طُهْرٍ
په طهر سره مشروط نه دَی
برخلاف دمسحی دموزي چي هغه په پريولو پوري دَ پښو مشروط دی کمامَرَّ. قَالَ

# وَيَجُوْزُ مَسْحُ جَبِيْرَةِ اِحْدَى الرِّجْلَيْنِ مَعَ غَسْلِ الْاُخْرٰى
اودريم فرق يه دادی چي روا ده مسحه دَجبيرې ديوې پښې يعنې هغه چي پاته وي سره پريولو
دروغې پښې پرخلاف دمسح الخف کما مَرَّ اٰنفا» قَالَ المُصنفُ»

اوڅلورم فرق يه دادی چي مسح
# وَلَايَبْطُلُ الْمَسْحُ بِسُقُوْطِهَا قَبْلَ الْبُرْءِ
دَجبيرې نه باطليږي په
سبب دَسقوط دُجبيرې يعنې چي خلاص سي يا شوه سي مگرد مخه تر جوړيدو د تپ يا د مات
اندام، اوخلاف ددی دَه مسحَه دموزي که موزه وختله په قصد دَسړي يا بې قصده مسح
به باطله سوه. دليل يه دَادی چي دمسح دجبيره خوبيه سَبب عذروه. هغه عذر اوس هم باقي
**مسئله**: جنابت اوحدث په مسحه کی دَجبيرې په دی حکم کی برابردی» کذا فی م»

# وَيَجُوْزُ تَبْدِيْلُهَا بِغَيْرِهَا وَلَايَجِبُ اِعَادَةُ الْمَسْحِ عَلَيْهَا وَالْاَفْضَلُ اِعَادَتُهَا
اوپنځم فرق يه دادی چي جبيري والا ته روا ده چي دَ مخني جبيره په بله جبيره سره
بدله کړی اوواجب نه ده پرده راگرځول د مسحی پرنوې جبيره باندی. مگر
افضل داده چي راوي گرځوي» بخلاف الخف ولی چي موزه په بله موزه بدله کړه پرنوې موزه
مسح واجبه ده **مسئله**: که تپ جوړ وو مگر جبيره پر پرته وَه مسحه به باطله ده.





ولې چي عذر د مابين ولاړی» کذا قال الکرابيسي، ط، قَالَ المُصنفُ.

# وَاِذَا رَمِدَ وَاُمِرَ اَنْ لَايَغْسِلَ عَيْنَيْهِ اَوْ اِنْکَسَرَ ظُفُرُهُ
اوهرکله چي سترگو يه دمرضه اوبښکي بهيلی. اودی امرکړه سُو يعنې دَطرفه څخه دطبيب حاذق
چي مسلمان هم وو چي نه به مينځي سترگه يا سترگي، اويا مات سونوك دده.

اوواچول سوه پرهغه مات نوك دواء يا ژاولې
# وَجَعَلَ عَلَيْهِ دَوَاءً اَوْ عَلْكًا
دپاره دَدفع د ضرر داوبو

# اَوْجِلْدَةَ مَرَارَةٍ وَضَرَّهُ نَزْعُهُ جَازَ لَهُ الْمَسْحُ وَاِنْ ضَرَّهُ الْمَسْحُ تَرَکَهُ
اويا يه پروغوړ اوه پوستکي تريخي. يعنې دپسه وغيره دپاره دتداوی اويا بل پوستکی) اوده ته تاوان کاوه
الستنه کول يه. روا ده وده ته مسحه کول. اوکه مسحی هم تاوان کاوه پری دی نږدي. لکن
بايد پوه سی چي دا مسئله اتفاقی نه ده، بلکه په بنايه اوفتح القدير اوبرهان کی ذکر کړيده
اوامام حلبیؒ وائي چي مسحه کول کافی نه دی بلکه اوبه دی پرتوی کړي» لِعدم
الضرورة)
ولې دَ غوښيانو سره سره اوبه کښته نه شوه کيږي. په المنح کی وائي چي په عام کتب
معتمده وو کی حکم دَغه دی اوپه دُرر کی هم داغسی راغلی دي. ط، ص ۱۰۹. قَالَ المُصنفُ

# وَلَايُشْتَرَطُ النِّيَّةُ فِيْ مَسْحِ الْخُفِّ وَالْجَبِيْرَةِ وَالرَّأْسِ
اوشرط نه دی نيت په مسح کی دموزي اوجبيرې اوسر» **يوه مسئله**: چي عدم اشتراط
دنيت په مسح کښې د جبيرې اوسر متفق عليه دیٔ. اوامام عتابیؒ وائي چي په مسحه
کښې دموزو نيت شرط دی، لکه په تيمم کی ولې چي دَوارو بدل دی. لکن ظاهر
المذهب ما قالَ المصنفُ. ولې چي دا دړی سره طهارت په اوبو دي. بخلاف التيمم
وَاللّٰهُ اَعْلَمُ وعلمه اتقن وَاَحْكَمُ»

# بَابُ الحَيضِ وَالنِّفَاسِ وَالاِسْتِحَاضَةِ

باب دی په بیان کی دحیض، نفاس، اومرض

پوه سه: چی مصنفؒ تراوسه ذکر دهغو احداثو وکړی چی ډیر ډیر پیښیدل. اوس هغه احداث بیانوی چی قلیل الوقوع دی، اوحیض چونکه تر نفاس او استحاضت ډیر وو او نفاس تر استحاضه ډیر ډیر دی نو ځکه په دغه ترتیب راوړه.

فائده:

## دنورالایضاح دلیښتو کولو فائدی

چونکه زمونږ په افغانی جامعه کی هیڅ چا د افغانانو پښتنو خصوصًا د کندهارد علاقی دخلګو یعنی هغه عوامو او یا ښځی چی په لیک لوست د پښتو ژبی ښه پوهیږی مراعات په نظر کی نه دی نیولی" یعنی چی ودوی ته په مورنی ژبه دعقائدو اود اعمالو فرائضو واجباتو، وغیره، بیان وکړی. او نورو اقوامو لکه اردو والا، انګریزی والاو، بلوڅانو، فارسی زبانو خلګو وغیره د خپلو خپلو قومونو په مورنی ژبود دوی ډیر خدمت کړی دی چی فوق الذکر عوام په اکثر دینو مسئلو کښی د علماؤ د پښتنې ضرورت نه لری. خصوصًا ښځی مسلمانانی چی نه په طلب کی دعلم او پوهنی دکوره وتای سی. اونه ئی د مینه سره د دوی دونه علم وی. چی د دوی مشکل ور حل کړی. خصوصًا په مسائلو کی دحیض نفاس استحاضه" چی په ورته مسئلو کی که فرضًا ښځی دیوعالم کورته ورهم سی. اما د حیاء او شرم په لحاظ د هغه عالم مخ ته پوره تفصیل نه سی غوښتای. نو بناءً علیٰ هذا الاحتیاج الدینی چی زرو عوامو او ښځو کښی موجود وو. ما فقیر عاصی **محمد عبیدالله قندهاری ایوُبی** ته دا فکر پیدا سو چی دقوم دا علمی خدمت وکړم: هغه وو چی اول ما نور ظلم پښتو کړی او هغه وو چی کتاب چاپ کړه سو



په جامعه افغانیه کښی نهایت حسن قبول پیدا کړی چی تر دی اوسه پوری څو واره چاپ سو او په زرو نسخو خرڅی او هر کنج ته د افغانستان ور سیدی بلکه جرمنی، جاپان، امریکا، عربستان وغیره چیری چی افغانی مسلمانان اوسیږی دا کتاب ور سیدی او د هری خواد اَحْسَنْتَ پیغامونه را ور سیده"

او د نور ظلم د شرح رواج او قبول د عاصی همت بلند کړی. پس له هغه می د قدوری لویه شرح او ترجمه وکړه د خدای جل جلاله په توفیق سره" نو څرنګه چی د قدوری شرح په مجرد چاپیدو سره د عالم قبول په ډګر کی لوی ځای پیدا کړي. حتی په پاکستان افغانستان، عربستان، امریکا، جرمنی، لندن وغیره یعنی هغه مملکتو ته چی په هغه کښی پښتانه مسلمانان استوګنه لری ډیر لوړ مقام یه وموندی. او تر اوسه پوری تخمینًا لس زره نسخی د چاپه څخه راوتلی دی او قلمی شفاهی، ډیری نه، ډیر ښه، خبری نقیرته راسیدلی،

د دی شرحی قبول نوره همت افزائی د عاصی وکړه. نو د عاصی قصد او عزیمت وه شرحی ته د فقه اکبر پرواز وکړی. چی په هغه کښی د فقه اکبر د شرحی علاوه د سراج الامت المحمدیه حضرت امام الائمة ابوحنیفه رحمه الله تعالیٰ سوانح عمری او د ده لوړ مقام په اجتهاد کی او د ده د زهد او تقوی وغیره لویه تاریخچه په صحیح اسناد و سره درج کړه سوه د رب جل سلطانهٗ په توفیق و پای ته د تکمیل ور سیده او چاپ سوه. او ور ته مقام یه تر لاسر کړی. پس له هغه" د مرزا غالبؒ د فرمودی سره سم"

همت بلند دار که نزد خدا و خلق :: باشد به قدر همت تو اعتبار تو:

د شروط الصلوٰة شرحه می شروع کړه چی هغه په لږ موده کښی پای ته ور سیدل او چاپ سوه. هغه شرح هم مقبوله عند العوام والخواص والرجال والنساء وګرځیده له. ور وسته تر هغه په غوښتنه د **قاری محمد فضل الحق حقانی**" ادام الله همته العلیا او د بعض نورو دوستانو د عاصی قصد او اراده و شرحی او ترجمی ته د نورالایضاح و ځغلی چونکه دا کتاب په فقه شریفه کی سره د اختصار ه لوړ او د اعتماد ور مقام در لودی.

نوعاصی بیله لَبَّیک بل چاره نه درلودَه نو دهغی په شرحَه مې شروع وَکړه چې دا اوس تر لاس لاندی دَه، او ددی شرح حجم بَه ترټولو سَابقه شرحو بَالاوی، اِنْ شَاءَ اللهُ.
اَللّٰهُمَّ وَفِّقْنِی لِاِتْمَامِ هٰذَا الشَّرْحِ بِالْخَیْرِ وَالْعَافِیَةِ وَارْزُقْنِی الصِّحَّةَ وَالسَّلَامَةَ وَالْعَافِیَةَ فِی اَعْضَاءِ الرَّئِیْسَةِ وَالْمَرْؤُوْسَةِ لِاُتِمَّ هٰذَا الشَّرْحَ اَیْضًا وَمَا ذٰلِكَ عَلَی اللهِ بِعَزِیْزٍ.

## دبعض حَاسَدانو ښُخه شکایت

چشم بداندیش کہ برکندہ باد
عیب نماید ہنرش درنظر ؎

دوی وائی چې پښتو کتابونه داعتبار وړنه دي. زه حیران یم ددوی ودغی وینا تر. پښتو کتاب چې دعَربی معتمدو کتابونه اخستل سوی وی نوبه ولې داعتبار وړنه وي. لکن په عربی کی متل دی، «کُلُّ اِنْسَانٍ عَدُوٌّ لِمَا یَجْهَلُه» هر انسان دښمن دی د هغه شی چې دی نه په پوهیږی. نوته چې ای حاسده پرترجمه دعربی کتاب په فصیح روښانه ژبه چې دعَربی ټوله مضمون دی په کښې را اولې قدرت نه لری خپل عجز ومنه. دبل صحیح شرحی او ترجمی ولی بدوائی بلکه که ته انصاف ولری هغه مترجم ته به تاکوروانی ویلای. او حاسده په دی پوه سه چې یو عربی کتاب وپښتوته په صحیح ډول کوم آسان کارنه دی. بلکه دتوفیق الٰهی سره سره ډیرعرق ریزی غواړي. او په دریاب کی ډکه او غوړ غوتې وهل غواړي. ؎ نه هرکه سر بتراشد قلندری داند. وگفته اند. انجیر خوردن نه کاری هر مرغی است.
او بعض حاسدان چې سره د حسده دانصاف یوه شائبه په کښې وی نود عاصي په باره کښې وائي چې مولوی صرف دکتابونه ناقِل دی. نوخلکه په وَلی تحسین وائی زه وایم وَرورَه ددین نبویؐ مبنیٰ پر نقل دَه. دخدای؟ څخه و جبرئیلؑ ته د حضرت جبرئیلؑ څخه و آنحضرتؐ ته د هغه څخه اصحابوؓ ته او نور الیٰ یومنا هذا. او بل دا خبره دَه چې حاسدَه ته ټوله کتابونه دتفاسیرو او د احادیثو او د فقه لږ مطالعه کړه بلکه عقلی کتابونه هم وګوره چې څرنګه بارونه بارونه نقلونه په کښې. بعضې ځایونه وائی: قِیلَ، او ګاهی وائی. قَالُوا. او ګاهی وائی: کذا فی الکتاب الفلانی. او ګاهی نسبت کولو هم پرېږدی چې دَده خپل معلومات وړته وهغه کتاب ته وي.





**نوکرانه** ته لږ مهربانی وکړه دنقل دعلماوو څخه یا دکتابو څخه یو څه ناڅه بدی بیان که. او بعض حاسدان چې د حسد په دریاب کی ډوب وی هغه وائي چې عُبَیدالله سارق دی. جناب نه چې نقل ته سرقه وائي تر ډیر درانه بار دګناه لاندی سوی. ولې چې تاو اوریده چې اساس ددین محمدیؐ پر نقل دی یا قولًا یا کتابةً.

**پوښتنه:** ستاسره ولې لبعضی ملایان حسد کوي او په غتو او کشنیو ډیرو دی ولې او د غیبت بلکه د بهتان په عشو دی ښکار ه وی.

**جواب اول.** میوه داره درخت په ډبرو ویشتل کیږی. تا یو څوک لیدلی دی چې دنا جوړ درخت دی په ډبرو ولي. **دوهم:** دلته په مابین کښې دبعضی علماوو تعصبات سته. تعصب علمی، تعصب قومی، تعصب وطنی، او تر ټولو بدترین تعصب تعصب مذهبی دی. زه چونکه سُنی بحت یم او حنیفی خالص یم، نو وهابیان په نامه (موحدین) پنج پیریان، سلفیان، وَمَنْ سَلَكَ مَسْلَكَهُمْ» زما سره هر قسم تعصب کوی او قسم قسم دروغ او بهتان را باندی وائي.

**سوال.** ستا دوی په دغو بهتانو، غیبتو، بدولیو، خوابدیږی. **جواب** چې دنفس تر مقتضی تیر سم د شریعت دنکته نګاه څخه می خوابدیده لاغر کوی په خوشحاله کیږم.

**حکایت:** یو عالم د حضرة الامام الحسن البصریؒ غیبت کړی وو. او د هغه غیبت و حسن بصریؒ ته ورسیدی. نو ده مبارکؒ یوه اندازه ډیری ښی خرماوی برابری کړي او دیوچا په لاس یې هغه عالم ته ورواستولې. او خط یې داسی نوشته کړی. من جانب الحسن الی الاخ العزیز فلان. اَلسَّلَامُ عَلَیْکُمْ وَرَحْمَةُ اللهِ وَبَرَکَاتُه. اما بعد. تاسو ډیر مهربانی وکړه چې خپلی حسنات می وحسن ته را استولې. مګر حسن یو حقیره هدیه د تمرانو دروا ستوله کی قبوله کړي ډیره مهربانی به سی ستاوي. نواوس عاصی هم په دی طمع دی چې خپلی نیکی خو دونه نسته او د نیکیو په باب کی نهایت فقیر یم. نو شاید چې په حسنا تو د حاسدانو غیبت کوونکو بهتان و یونکو به غنی او سرمایه دار وګرځم. او که هر څو دوی هر څه وائي زه د هغه وظیفی څخه چې ما پرغاړه اخستی ده د ډیری زمانی څخه

یعنی پرکنا بو حاشیې، او دکنا بو پښتو کولو، عقب نشینی ونه کړم، رجاءً للثواب، من ربّ الارباب وطمعًا من الاجاب الدعاء فی حق العاصی فی جناب الحق جل جلاله بالتوفیق لکل خیر والختام علی دین الاسلام. دا وی جمل معترضه اوس بیرته په خپل مقصد شروع کوم:

## اعتذار لدفع الاعتراض

**پوهه سه**: چې په ټوله فقه شریفه کښی چې په عربي ژبه وي. بلکه په ټولو احادیثو مبارکه وو کښی. او په ټوله امکنو وکی که مسجد وی او که مدرسه حتی په مسجد نبوی او په مسجد حرام کښی، دغه لاندی الفاظ چې عربي دی بیله کنایه ذکر سوی دي او ذکر کیږی یعنی **دُبُر** چې پښتو لفظ یه کُنه دی. **ذَکَرُ** چې پښتو لفظ یه غِنړ دی، **فَرج** چې پښتو لفظ یه کُس دی. **حَشفَه**: چې پښتو لفظ یه دغنړ سر د سُنتی ترځای پوری **خُتَنَین** چې پښتو لفظ یه خُتنی دَی. **رَحِم** چې پښتو لفظ یه دعیال دقرار ځخونړ. **اِنزَال** چې پښتو لفظ یه اودس اوښتل دي. **قُبلَه** چې پښتو لفظ یه بچه اخستل دَی. **فرجین**: چې پښتو لفظ یه غنړ او کُس دَی. وهکذا نور ورته الفاظهم ستر؛

چونکه د ریښ دعربي کتاب په پښتو ژبه ترجمه کول پرغاړه اخستی دَه، نوزه چاره نه لرم چې ددغو الفاظو پښتو ترجمه کوم، بعض ناپوهان وائی چې د اسی پښتو الفاظ استعمال بی ادبی ده اوشرم دَی. **داد تعجّب خبره دَه**: چې په عربي ژبه وعربوته ذکر، فرج، دبر وغیره مثلًا بی ادبی اوشرم نه وُو. او غنړ او کُس او کُنه مثلًا وپښتنو ته ذکر کول بی ادبی اوشرم دَی، دوی دغه ځایونه اواندامونه په کنایه ذکر کوی مثلًا د ذکر په باره کی وائی، دنر بلاگی، اوفرج په باره کی وائی د ښځی د مخ دخوا بلاگی. او دُبر په باره کی وائی د نر او ښځی د شا بلاگی. او د ختنین په باره کی وائی ترښلا گی لاندی مزکی وهکذا. نوزه ویی ته وایم چې آنحضرت صلّی الله علیه وسلم ورته کنایاتی عربیه ولی نه استعمالوی. او یا فقهاءٌ په فراخه میدان کی د خپلو د کتابو د صریح ددغو الفاظو کښی کنایات





عربیه نه لټولی» قَالَ المُصَنِّفُ.

## يَخرُجُ مِنَ الفَرجِ حَيضٌ وَ نِفَاسٌ وَاِستِحَاضَةٌ

راوزی د کُسه څخه دښځی دری قسمه وینه. یعنی حیض او نِفاس او د مرض وینه.

**پوهه سه**: چې نسبت د حیض او نفاس وفرج ته کول په دی سبب دی چې دغه دوه قسمه وینه پر فرج راتیریږی. ور نه اصلی ځای یه رحم دښځی دی او استحاضه کما سیأتی، دیوه رګ وینه دَه چې منفجر سوی وی.

**منشأ د حَیض** دغنم شنه درخته ماته کړه د پاره دخوړلو. پس له هغه چې په احادیثو کښی راغلی دي چې څه وخت چې په جنت کی حواءٌ دوی څندی منع وَه. خدای پاك ورته وویله» لَاُدمِيَنَّكَ كَمَا اَدمَيتَهَا»، حتما به زه تا په وینو مبتلا کړم لکه تا چې درخته دغنم پری کړه. او او به څندی توی کړی نو کله چې حواءٌ ځمکی ته راغله حیض ورغی او دا حیض په لونړو کی د دی جاري پاتر سوالٰی یوم القیامة»

**پوهه سه**: چې مصنفٌ په مراقی کی وائی چې د حیض ډیر مشکل احکام دی.

**حیض دلو یو مهماتو څخه د دین دیُ**، ولی چې ډیر احکام په حیض پوری مرابوط دی لکه، طلاق، او اعتاق، او، استبراء، او، نسب او روا والی د وطو، او لمونځ او روژه او قرائت د قرآن یا مسه کول د قرآن. او اعتکاف او دخول ومسجد ته طواف دحج او بلوغ دښځی چې دا ټول په په خپلو ځایو کی راسی» اِن شَاءَ اللّٰهُ تَعَالیٰ» قَالَ المُصَنِّفُ

**فَالحَيضُ دَمٌ يَنفُضُهُ رِحمُ امرَاَةٍ بَالِغَةٍ** پس حیض هغه وینه ده چې په زور سره یه را باسی. رحم هغه ځای چې په هغه ځای کی نطفه قرار ونسی ولد څندی پیدا کیږی. د بلوغ اندازه دښځی لاری ۹ کاله ده پر مفتیٰ به مذهب. او بعض علماء وائی چې د پنځوکلو څخه تر ۹ کلو پوری.

**لَادَاءَ بِهَا وَلَاحَبَلَ** چې درد نه وی په سبب دهغه او نه حمل وي. ولی چې عادت الٰهی په دي سره جاري دي چې خوله

درحم په سبب دحمل بند وي، چې هیڅ وینه نه څنډی راوزی ترهغوچې ولد یا اکثر د هغه راونه وزي. **سوال** بعض ښځوته سره دحمل وینه پیداسي. **جواب** هغه درحم خوله ترخلاصه سوی وي. نوکه په دواء وغیره بند نه سي ولد په نقصان کړي؛ ویحتمل او احتمال لري چې دغه وینه دی دیوه رگ څخه راوزي. قال المصنف

**ولم تبلغ سن الایاس** اوښځه هم نه وي رسیدلې وعمرته دناامیدی دولد څخه چې هغه سن پر مفتیٰ به مذهب ۵۵ کالري

**پوهسه:** چې مصنف د رحم په قید هغه وینې وایستلې چې یا ترپزه یا ترتبل تهې بهیږي. او داغه رنگه وینه د استحاضه خارج کړه. ولې چې هغه وینه درحم نه ده بلکه دیو رگ وینه ده. او په قید د «لاداء» وینه د نفاس. ولې چې نفساء ښځه په حکم کی دمریضې ده او درد ور سره ملگري وي. او په قید د «بالغه» هغه وینه وایستله چې تر ۹ کاله دمخه یې نجلی ووینی. مولوي اعزاز علی سوال کړی دی چې دکشتی نجلی وینه درحم نه ده بلکه استحاضه دی. نو داوینه خو په قید درحم ووتله. نوحاجت وقید ته دبالغه نسته» دروښ والې: چې چونکه غالب استعمال دمستحاضه په بالغه ښځه کی کیدی. او دغه رنگه عرف دادی چې ددغی نابالغ نجلی وینه درحم څخه گڼي. او پوه سه چې مراد د «ولاداء بها» څخه دادی چې داسې درد نه وي چې وتل دوینې څنډی پیښ سی اگرچه د بله سببه درد او مرض ورسره وي. نوکه ښځه دیوه بل سببه درد منه او ناجوړه وه. او وینه ورته پیدا سوه هغه حیض دی. قاله المصنف فی المراقی. فلایرد ما اوهم. قال المصنف

**اقل الحيض ثلاثة ايام واوسطه خمسة واكثره عشرة**

کمه مده دحیض درې ورځې دي یعنی سره دشپو، او میانه موده دحیض پنځه ورځې دی» او لوړه موده یې لس ورځې ده، یعنی په نیز د حنیفیانو» امام طحطاوي وایې چې دحیض په وینو کښې همیشه والی نه غواړي یعنی چې ۳ ورځې یا ۵ ورځې یا ۱۰ ورځې به پرله پسې به بهیږي. ولې دا نهایت نادره پیښیږي. بلکه هره ورځ څه ناڅه وینه لیدل کیږي.





بلکه که په اوله کی د دغو دروموده او په اخیر کښې وینه وي په مابین کی څه هم پاکی وي تو له ورځې حیض گڼل کیږي. قال المصنف

**والنفاس هو الدم الخارج عقب الولادة** او نفاس هغه وینه ده چې راووزي یعنی د فرج دخوا څخه ور وسته تر ولادت. یعنی دکشتنی د پیدا کیدو وروسته

**مسئله:** که کشتنی د جراحی په ذریعه د نور خوا څخه راوایستی. او ترکس د دغې ښځې وینه نه راووتله بلکه تر تیپ د جراحی څخه بهیدله دا ښځه شرعاً نفساء نه ده بلکه پاکه او معذوره ده چې هر لمانځه ته به اودس تازه کوی. کذا قال الشبلی النعمانی. لکن په اوسنی زمانه کی د ولادت دپاره جراحی دکس دخوا کیږي نو وینه ور سره راوزی نو نفساء ده.

**واكثره اربعون يوما ولا حد لاقله** او اکثره موده د نفاس څلویښت ورځې ده. او اندازه نسته اقلی مودی لره

دنفاس **مسئله:** چې اکثر حصه د ولد راووزي که څه هم مړ راووزي چې بعض اندامونه یې معلومیږي نو وروسته ترهغه نفاس دئ. **مسئله:** په وضع د ولد که ښځه مطلقه وه یا یې میړه مړ وو دستی یې عده تیره سوه. **مسئله:** که ښځه مینځه وه په وضع د ولد ام الولد گرځي. **مسئله:** که ښځې ته خپل میړه طلاق معلق په لنگیدو ور کړي وو. هغه سړي حانث یعنی ښځه پر طلاق سوه. **مسئله:** که اکثر دکشتنی ژوندی نه راووت د جنازې لمونځ نه غواړي او نه غسل او نه شرعي کفن بلکه په یوه ټکره کښې دی ونغښتل سی او ښخ دی کړي.

**مسئله:** که ښځې وروسته تر ولادت هیڅ وینه ونه لیده نفساء نه ده په صحیح روایت د حضرت الامام څخه لکن په نیز د حضرت الامام دی غسل احتیاطاً وکړي. او یاران وائي چې بیله اودس پر دغه ښځه بل شئ نسته. **پوهسه:** چې په حدیث نبوی کی داسې راغلی دی، «انه وقت للنفساء اربعين يوما الا ان ترى الطهر قبل ذالك» آنحضرت صلى الله عليه وسلم معینه کړی دی نفساء ښځې ته څلویښت ورځې

مګر هغه وخت ځلوېښت ورځې نه دي که دې ولیدی د څلوېښتو ورځو پاکي

**تنبیه**: بعضې ناپوهه ښځې خواه ځلوېښت ورځې نه لمونځ کوي او نه روژه نیسي. که څه هم وینه نه وي تر شپاړس روځ بالا. دا د دوی جهالت او غلطیا ده.

## وَالْاِسْتِحَاضَةُ دَمٌ نَقَصَ عَنْ ثَلَاثَةِ اَيَّامٍ اَوْزَادَ عَلٰى عَشَرَةٍ

او استحاضه هغه وینه ده چې کمه وي تر دری ورځې یعنې چې اقله مُده د حیض ده، او یا زیات وي تر لسو ورځې

## فِي الْحَيْضِ وَعَلٰى اَرْبَعِيْنَ فِي النِّفَاسِ

یعنې چې اکثره مُده د حیض ده. دا دواړی مُدې په حیض کې. او یا زیات سي تر ځلوېښت ورځې په نفاس کې یعنې چې اکثره مده د نفاس ده» د نفاس اقله مده یه نه کړه ذکر ولې عنقریب تېره سوه چې د نفاس اقله مُده حد نه لري. قَالَ الْمُصَنِّفُ رح.

## وَاَقَلُّ الطُّهْرِ الْفَاصِلِ بَيْنَ الْحَيْضَتَيْنِ خَمْسَةَ عَشَرَ يَوْمًا

او کمه مُده د طهر چې فاصل وي په مابین کې د دوو حیضو پنځلس ورځې دی. په حدیث شریف کې چې مصنف رح په مراقی کې روایت کړې دی داسي راغلی دی» اقل الحیض ثلاثة واکثره عشرة واقل ما بین الحیضتین خمسة عشر یومًا. قَالَ الْمُصَنِّفُ رح

## وَلَا حَدَّ لِاَكْثَرِهِ اِلَّا لِمَنْ بَلَغَتْ مُسْتَحَاضَةً

او هیڅ اندازه نسته اقلی مدی لره د طهر فاصل بین الحیضین، مګر هغې ښځې لره چې بلوغ ته په رسیدو سره مستحاضه وي. نو د دغې ښځې حیض لس ورځې مقدر یږی. او طهر یې پنځلس ورځې او نفاس یې ځلوېښت ورځې. یعنې هر یوه ته اکثره مُده اېښودل کیږي.

**فائده**: اکثر لره د طهر فاصل چې مُده یې نه ده ټاکل سوې د دی سببه چې د اطهر په مزاج او ترکیب پوری اړه لري، د بعض ښځو طهر فاصل شپږ میاشتې وي او د بعضو





دا کال وي. وهٰکذا. **مسئله**: که یوې ښځې لره عادت وو په حیض کې مثلاً ۷ او ۹ ورځې. او اوس د دی وینه د عادت تر شپو تېره سوه. نو دا به لمونځ نه کوي او روژه به نه نیسي وینه پر لسو ورځې قطع سوه خو دا ټولې ورځې د دی حیض دی. یعنی عادت یه بدل سو او که وینه یه تر لسو ورځو تېره سوه. نو دغه ښځه دې وخپل عادت ته رد سي. یعنې ۷ ورځې او باقي ورځې یه استحاضه دی. نو د هغو لمونځو او روژو به قضاء راوړي او همدی قسمه څخه دی نفاس یعنې یوه ښځه وه چې په نفاس کې عادت درلودی مثلاً ۲۰ شل ورځې او دا ځلا تر شل ورځې یه وینې تېرې سوې. نو دا دې انتظار وکړي که پر ځلوېښت ورځې یه وینه ودریدله.

نو له ځلوېښت ورځې به نفاس دی. یعنې عادت یه بدل سو. او که تر ځلوېښت ورځې هم وینه تېره سوه نو دا ښځه دی عادت ته رد سي. یعنې نفاس د دی هغه څوانی ۲۰ ورځې دی او باقي ورځې ټولې استحاضه دی. **مسئله**: بعض فقهاء وائي چې دغه ښځه چې وینه یه تر عادت تېره سي لمونځ دی کوي او روژه دی نیسي. ولې چې احتمال د دی سته چې د دغې ښځې وینه به تر اکثره مُدې تېره سي نو څو د غه ورځې د استحاضه ده یعنی هغه زائد تر عادت ورځې، او پر مستحاضه خو لمونځ او روژه سته لکن هر لمانځه ته به اودس تازه کوي.

او بعض فقهاءُ وائي چې لمونځ دی نه کوي او روژه دی نه نیسي. ولې اصل په انسان کښې صحت دی او وینه د حیض دا ده صحت ده او وینه د استحاضه دلیل د ناجوړې ده. نو موږ دا سي حکم کوو. چې دغه زائد ورځې وینه وینه د حیض ده. او عادت یه بدل سو. تر هغو چې یقین کیږی چې دغه زائد ورځې استحاضه وه، یعنې تر لس په حیض کښې تېرې سي یا تر ځلوېښتو ورځو په نفاس کې»، وَالصَّحِيْحُ هٰذَا الْمَذْهَبُ كَمَا قُلْنَا سَابِقًا، رَاجِعِ اِلَى كُتُبِ الْفَتَاوٰى» قَالَ الْمُصَنِّفُ رح»

## وَيَحْرُمُ بِالْحَيْضِ وَالنِّفَاسِ ثَمَانِيَةُ اَشْيَاءَ

او حرام ګرځي په حیض او نفاس

قَالَ المصنفؒ -

سره اته شیان.

**اَلصَّلٰوةُ وَالصَّوْمُ وَقِرَائَةُ الْقُرْاٰنِ** عبادتونه پاکی دحیض اونفاس ولې چې شرط دصحت دَدغودوو
څخه ده. اوبل حرام دی تلاوت دپوره ایت دقرآن اودغه رنګه حرام دی تلاوت دتورود نورو کتابو
چې دخدای دخوا څخه نازل سوی دی لکه تورات وغیره "لان الکل کلام الله" او دغه رنګه منسوخ
الحکم ایتونه دقرآن به هم وائي. قَالَ الفقهاء ومنهم المصنفؒ "اِلَّا بقصد الذکر" مګرهغه
ایتونه ویلای سی چې په هغوکښی دعایا حمد یا شکروی په قصد ددعا او دذکر.
لکه حائضه چې دډوډی وخوړی او یا به جنبی او ووائی "اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعٰلَمِیْنَ" په قصد
دحمد نه د تلاوت القرآن. یا ووائی، "وَاغْفِرْلِوَالِدَیَّ وَارْحَمْهُمَا کَمَا رَبَّیَانِیْ صَغِیْرًا" په
نیت ددعا اودا هم اصح درو ایاتو دی. دامام اعظمؒ څخه" وَخَالَفَ الامام الهندوانیؒ و
قَالَ لَا اَفْتیٰ بجوازه. لکن چونکه قول ددغه فقیه دامام المذهبؒ څخه مخالف دی نو اعتبار
نه لري. قَالَ المُصنفؒ فِی المَرَاقی چې دکم تر ایت تلاوت دحائض ونفساء ته روادی او
که نه. بعض فقهاء وائي روا دي. ولکن منع یه مختاره دمحققین دفقهاو دَه، فالتعویل علیه

**وَمَسُّهَا اِلَّا بِغِلَافٍ** اودغه رنګه حرام دی مسه کول دیوه ایت یعنی دتهوله قرآن دا په طریق اولیٰ ناروادی. مګرنه که چیری سره دپوښ وو

**فَائِدَه:** مراددپوښه څخه هغه پوښ دی چې دقرآن شریف څخه جلاوی.

**فَائِدَه:** که سَری دقرآن شریف پر سُوَځیدلو یا په اوبو کښی دغرقیدو بیریدی
بیا یه مسه بی خلافه هم روا ده **مَسْئَلَه:** که دقرآن شریف صرف ترجمه وَه
په فارسی یا په بله ژبه ایتونه دقرآن شریف نه وو پکښی هم مسه یه ناروادَه.

**مَسَائِلِ شَتّیٰ** روادی وحائضه اونفساء ښځی ته سبق وَنه دقرآن وبل ته لکن
لکن یوه یوه کلمه. نه په قصد دَتلاوة بلکه په قصد دَتعلیم" کما
فی الخلاصة وَالبزازیة عَلیٰ قول الکرخیؒ. ط" روادی وَیل دَقرآن یو یو حرف چې په پښتو
یه ازګی بُولی.





**مَسْئَلَه:** ایت دقرآن به حائض اونُفساء نه مسه کوی که پر دیواله نوشته وی که
پر کاغذه او پر تهکره وغیره لقوله تعالیٰ "لَا یَمَسُّهٗ اِلَّا الْمُطَهَّرُوْنَ" **مَسْئَلَه:** مکروه
تحریمی دی مسه کول دقرآن شریف په لس تونړ یا په لمَن، ولی داتبع دی دلاس دپوښ
حکم نه لري" **مَسْئَلَه:** که قرآن شریف په خریطه یعنی کڅوړه کی وو مسه کول یه روادی
په روایت دصاحِب المذهب **پوهسه:** چې په اختلوکی دقرآن شریف په
لستوڼی سره اختلاف دی" هغه چې مونږ وَوَیله چې مکروه دی مذهب دمصنفؒ اود
صاحب هدایه دی" او په جامع تمرتاشی کی وائي چې مسه کول په لوستړی مکروه نه دی
ولی چې مسه خو په مباشرت دَلاس بیله حائله وی دلته خو لوستوڼی حائل دی.
او نهایه وَالاولیٰ چې دادواړه روایت دی دامام محمدؒ څخه راغلی دي" درولشن وائي چې احتیاط
په اول کی دَی.

**مَسْئَلَه:** رخصت دی اهل لره دکتب شرعیه وو لکه، هَدایه، ردمختار، بخاری، و
غیره چې په لوستوڼي وَنسی بلکه په خالی لاس هم. ولی چې ضرورت دی ځکه چې مطالعه
کوونکی دکتب مذکوره وو که طالبان وی او که مُلایان وی هرګړی اودس تازه کولو کښی
حرج دی چې مطالعه دپر وخت په بَرکی نَسی. وهو الاصح عند الامام الاعظمؒ

**مَسْئَلَه:** په کتابو کی دتفاسیرو دقرآن لکه جَلالین، بیضاوی. تفسیر کبیر وغیره کی اختلاف
دی. په اشباه والنظائر کی وَائي چې مسه کول یه بی اودسه سړي ته رَوادی. لکن صحیح
داده که دقرآن الفاظ تر تفسیر دیر وَه مسه کول یه بی اودسه سړي ته مکروه دی او که
تفسیر یه دیر وو لکه بیضاوی، روح البیان وغیره، نو یه مسه و محدث ته روا ده.
او که مساوی وَه دهغه مسه کول هم مکروه دی. اومصنفؒ په مَراقی کی وَائي چې دکتابو د
تفاسیرو دپاره مطلقًا اودس واجب دَی. **مَسْئَلَه:** مستحب دَاده چې شرعی کتابونه
دی هم په بی اودسیا نه را اخلی. نو ښه دَاده چې مطالعه کوونکی دکتب شرعیه وو
دهر کتاب دپاره یو دسمال وَلری **مَسْئَلَه:** که بی اودسه سَړي وظیفه دقرآن
شریف کوله لکن وَرَقی یه په قلم او بل داسی شی اړه ولی پروا نه لري.

**مسئله:** نابالغه کشنی ته اجازه ده چې په بې اودسیا سره قرآن مسه کی او زده ئې کوی. ولې چې کشنی هرګړی پښکی اچوی. اودهر پښکی سره په اودسامرکول حرج اومانع دتعلم القرآن دئ.

**مسئله:** روانه ده پیچل دشئ لکه چائې، بوره، دوا، وغیره په هغه کاغذکی چې هغه دفقه دکتاب وی اویا نوم د خدای جل جلاله اویا دنبی علیه السلام پکښی نوښته وي.

**تفریع:** په عصرحاضرکی داخبارو معامله ډېره لویه مسئله او ډېره مشکله ده ولې چې اکثرو اخبارو کښی آیت دقرآن مبارک یاحدیث نبوی صلی الله علیه وسلم په کښی نوښتوکړ اوخلګ دغه اخبارونه پس له مطالعې څخه پر قصابانو یا دپرچون پر دوکاندارانو خرڅوی اویا یې مفت ورکوی. او قصاب یا پرچون دکاندار په هغه اخبار کی غوښې ورکوی اویا چائې او بوره وغیره په کښی پیچي. داخو اول ناجائز کار دئ. اود غوښو رانیوونکی یا دچایو او بورې وغیره چې هغه شیان کورته یوسي. نو شیان څندی خوندی کړی. او اخبار وغورځوی. آخر الامر دغه اخبارونه دنورو مردار یو سره یوځای دلاس په ګاډی کی واچوی. او په هغه ځای کی ګاډی چپه کړي چې ټول مردار شیان ترغولو، خوشیو، وغیره پورې هلته جمع کیږي. او بیا یې حکومتی موټران ټوله ګډ وډ وړي او مرداریو په لوی مرکز کښی غورځوی. دا کار تراول ډېر ډېر ناروا کار دئ.

**دمسلمانونو بناعجبه دلاوری:** خصوصًا هغه کسان چې، روميان، انګور، سیبان وغیره د باغو او کښتو څخه په کریټو کښی ښار ته راوړی، هغه خلګ دښار څخه په منو منو اخبارونه او نور داسی کاغذونه چې لیکونه پر باندی وي. اګر که سه پارهٔ او رقوی رایرنسی. او باغو او کښتو ته یوسی اوهورې د کریټو شپږ و طرفو ته دغه اخبارونه وقایهٔ انګور وغیره وګرځوی. نو مغه کریټونه بازار ته راوړی دکانداران هغه څندی راتسی. څه وخت چې دکاندار کریټ خلاص کړی انګور وغیره څندی رواباسی اخبارونه او کاغذونه پر روډ سړک وغورځوی. پر هغو باندی خلګ لوی او کشنی ګرځی او تر پښو یې لاندی کوی» اخر الامر دکاندار یې دکاندار ددکان دمخه څخه جارو کړي. دروډ او سړک ما بین ته. چې بوده انسان،





دخرو پر تیریږی. او که څه هم آیتونه دقرآن مبارک او که حدیث درسول الله صلی الله علیه وسلم او که نومان دخدای جل جلاله وغیره وغیره تر پښولاندی پایمال کوی. یا نګی

**آیا انصاف تاسی وکړی:** چې دد غه اهانت سپکاوی ګناه کبیره به د چاپر غاړه وی ددرولیش رایه داده چې په دی ګناه کی اخبار والا، اخبارات خرڅوونکی، او کریټو والا. او دوکانداران او هغه کسان چې په دغو اخبارو کی دکوړ دباره شیان وړی ټوله او ټوله په کښی شریکان دي۔

**"تردی عجبه داده"**

چې خطیبان، واعظان، په مسجدو کښی ولې داخبره دعوامو په مخکښی په وار وار نه کوی اول خو به شاید دا آفت یو څه کم سي. او که هغه کم نسي دملایانو غاړې خو به خلاصې سي، لکن ما ملایان لیدلي دي چې د قصابه څخه غوښی، یا دپرچون فروش څخه بل شی رانسي په دغو اخبارو کی پیچلی او بیا په کور کی کاغذان غورځوی. بیت ـ دچوبنیم بن احمد دغربي. دلم سوزان نه چشم خون جاری. خدای پاک دی دافغانستان پر مسلمانانو رحم وکړي هغه په دا غسی ځایو کښی وا بالوځی یا دلی استعمالوی. نه کاغذونه او اخبارونه. **مسئله:** دخدای جل جلاله او یاد آنحضرت صلی الله علیه وسلم پاک نومان په ناروه نه پاکوی دسببه د تعظیم»

**ودخول المسجد** جنب هم وره سره داخل دی لکه په دمخه حکم کښی» لقوله علیه الصلوة والسلام، لا أحل المسجد لجنب ولا حائض» او نفساء په حکم کښی حائضی ده. اوحراموی حیض اونفاس داخلیده ومسجد ته. او په دی حکم کی

**پوهسه:** چې په مسجد کی کعبه شریفه هم داخله ده. او په صحیح روایت کی دعیدګاه دلمانځه ځای اود جنازی دلمانځه ځای حکم دمسجد نه لری. نو ودغو درو نفروته په دخول روای اوپه ژرژ کی وایئ چې حکم د منع ددخول المسجد هلته دی چې ضرورت نه وي. او که ضرورت وو چې دروازه دکور یې په مسجد کښی وه او بله خواتې دروازه نه اړول کیدل. او نه بل ځای داستوګی یې نه درلودی. نو بیا دخول دمسجد ورته روادی» لان الضرورات تبیح المحذورات

**فروع:** که سړی په مسجد کی بیده وو او جنب سو تیمم دی وکړي او سمدستی دی ووزي دد باره چې په او بو پیسی ولاړ سي. او یا په بل کار بیسی. که په مسجد کی ددننه دلمبیدو

ځای نه وُو. او که څوك جنب وو او په هيڅ په مسجد ننوتي او بيا يه جنابت ور ياد سو تيمم دی وکړي او دستی دی ووزي. او که بيله تيمم وَ هَلو ووزی هم روا دی. او که او به د باندی تر مسجد وی او په شپه کښی وَتل ده ته خطروو. تيمم دِ وکړی او هوري په مسجد کښی دی او سی څو خطر دفعه کيږی. اوبی له تيمم د ننگ په مسجد کی نا روادی، او بنا دغه تيمم دی لمونځ کوی او نه به قرآن شريف وائی» ط م ۱۹۵، قال

# وَالطَّوَافُ

وی او حرام وِی حيض او نفاس» طواف پر کعبه شريفه که څه هم نفلی طواف

**پوهسه**: چی يو حُرمت دشپی دی. نو بناءً علی هٰذا طواف کول په جنابت سره حرام دَی يعنی گناه کيږی ده مگر صحيح دی. حتیٰ چی دَ طواف فرضی چی طواف زيارت دی غاړی په خلاصيږی. مگر بدنه باندی او بنی حلالول لازم دی. او کی بی اودسه يه طواف مفروض وکړی شاة (پسه) پری لازم دی. او که طواف نفلی وُو صدقه پر لازمه ده چی کم يه نصف صاع دَه»

**مسئله**: که محدث (بی اودسه) پس له طوافه اودس وکړی. او بيا يه هغه نفلی طواف را وگرځاوه بيا هيڅ شی باندی نسته»، او يا هغه فرضی طواف يه طهارت سره را وگرځاوه لکن په ايامو کښی د نحر» قَالَ المُصَنِّفُ۔

# وَالْجِمَاعُ وَالْاِسْتِمْتَاعُ بِهَا بِمَا تَحْتَ السُّرَّةِ اِلٰى تَحْتِ الرُّكْبَةِ

او دغه رنگه حراموی حَيض او نفاس وَطی دَ مابنی او نفع اخستل ددی د بدن څخه لاندی تر نامه بيا تر لاندی د زنگانه **پوهسه**: چی نفع اخستل دَ مابينی څخه تر نامه وړی ځای سره دَ حائِله يعنی پرتوگ وَغيره روادی. او تر نامه موړی ځای لوړ يا کښته که څه هم بی حائله وی روادی که څه انزال سي. لقوله عَليه السّلام» لَكَ مَا فَوقَ الْاِزَارِ

**مسئله**: که چا مينه په حَيض کی وَطی کړه او روا يه نه بلله. مستحب ده ده لره چی په اول کی د حيض دا کار يه وکړی يو دينار دی خيرات کی. او که په اخير د حيض يه وکړی نيم دينار دی خيرات کی. او پر هغه کار دی توبه وکاږی او بيا دی نه کوي۔

**مسئله**: که چا وطی په حال کی دَ حيض وګڼلته روا بولی. نو په مبسوط او نورو کتابونو کی هم وائی چی دا سړی کافر سو. ولی د صريح قرآن څخه منکر سو» وَلَا تَقْرَبُوهُنَّ حَتّٰى يَطْهُرْنَ» او په خلاصة الفتاوی کی وائی چی نه کافر کيږی. **مسئله**: لکه سړی ته چی وَطی په حال کی د حيض نا روادی ما ينی ته هم نا روا ده چی ميړه خپل غوو لو ته په دغه وخت کی پريږدي. **مسئله**: د حائضی ښځی څخه بچه اخستل او يو ځای وړ سره بيديده بيله کراهته روا دي. او د حائضی په لاس پوړی پخول ياد دی پلاس او وړه خميره ول پر روا نه لري» ط» **مسئله**: روا نه ده ښځی لره چی حيض د ميړه څخه پټوی تا چی جماع ور سره وکړي: او دغه رنگه نه ده روا دي لره چی حائضه نه وی و ميړه ته وائي چی زه په حيض کی يم» يعنی دغو و لو څخه ځان کاږي. ط» قَالَ المُصَنِّفُ

# وَاِذَا انْقَطَعَ الدَّمُ لِاَكْثَرِ الْحَيْضِ وَالنِّفَاسِ حَلَّ الْوَطْئُ بِلَا غُسْلٍ

او که چيری قطعه سوی يعنی ودريدی وينی دَ ښځی په نيز دِ اکثری مُدی دَ حيض يعنی ۱۰ ورځی او د اکثری مُدی د نفاس يعنی ۴۰ وَرځی. روا ده ميړه لره ددی جماع ور سره کول بيله غُسل ددی دَ حيض او د نفاس څخه» **پوهسه**: چی مصنف قيد د انقطع الدم دعادت بناء وواپه ور نه چی لس وَرځی يا څلويښت وَرځی پوره سي که وينه قطع سی او که نه سی وَطی ور سره روادي وَلی تر لس ورځی بالا يا تر څلويښت وَرځی بالا حيض او نفاس نسته نو که وينه هم جاری وی وطی يه روادي. ولی چی دا وينی خو استحاض دی او استحاض مانع د وطی نه دی. **مسئله**: مستحب دا ده چی په صورة کی د انقطاع دی هم تر غُسل د مخه وطی نه ور سره کوی. په مراعات دقرائت د» يَطَّهَّرْنَ» په تشديد سره» قال المُصَنِّفُ

# وَلَا يَحِلُّ اِنْ انْقَطَعَ لِدُوْنِهِ لِتَمَامِ عَادَتِهَا

او نه دی روا وطی ددی که چيری قطع سی وينه ددی تر کم د اکثری مُدی يعنی ۱۰ يا ۴۰» پس له تمام څخه دعادت د دې. يعنی عادت ته ور سيږی بيا قطع سی لکن تمامی مُدی ته نه وی رسيدلی. نو لام فی قوله

بِتَمامٍ آه په معنیٰ د بعد دی. کما فی قوله علیه الصّلوٰة والسلام «صُوْمُوا لِرُؤْيَتِهٖ» ای بعد رؤیته یعنی وروسته تر بیدلو د میاشتی دروژې» قَالَ الْمُصَنِّفُ.

## اِلَّا اَنْ تَغْتَسِلَ اَوْتَيَمَّمَ وَتُصَلِّىَ اَوْتَصِيْرُ الصَّلٰوةُ دَيْنًا فِىْ ذِمَّتِهَا

مګرنه چې دا غسل وکړی. اویا دیو عذر په سبب دا تیمم وکړي او لمونځ هم وکړي. اویا دی په ذمه کښی یو پوره لمونځ وګرځی یعنی قضاء به پر لازمیږي بیا به وطی روا وي

## وَذَالِكَ بِاَنْ تَجِدَ بَعْدَ الْاِنْقِطَاعِ مِنَ الْوَقْتِ الَّذِىْ اِنْقَطَعَ

او هغه دا رنګه چې ښځه پیدا کړي وروسته تر قطع والی د وینود ومره وخت چې په هغه کښی

## الدَّمُ فِيْهِ زَمَنًا يَسَعُ الْغُسْلَ وَالتَّحْرِيْمَةَ فَمَا فَوْقَهُمَا وَلَمْ

ځائیږي غسل او یو اَللّٰهُ اَکْبَرْ ویل. یا بالا تر هغه او دا سړه د هغه غسل و نه کړي او که

## تَغْتَسِلْ وَلَمْ تَيَمَّمْ حَتّٰى خَرَجَ الْوَقْتُ

عذر لري تیمم ئې ونه کړي حتی چې د لمانځه وخت تیرسی نو دغه لمونځ په ذمه کښی ددی پوره دی» یعنی قضاء به ئې راوړي. نو دومره وخت چې تیرسو نو میړه ته به بې غسل کولو ددی وطی وروسته روا دي.

**فَائِدَه:** چونکه ددی ښځې په ذمه کی لمونځ لازم سو او لمونځ خود احکامو څخه د طاهراتو ښځو دی» نو وطی به هم روا دی» او که چیری وخت کم وو چې غسل او تحریمه نه په کښی ځائیدله. نو په مجرد وتو د وخت دا پاکه ده. او وطی به نه دی روا» ترهغو چې طهارت به او نه کړي اویا تیمم ونه کړي.

**فَائِدَه:** دا ټوله بیان د مسلمانې ښځې په باره کښی وو. او د سړي ماینه که کتابیه وه. یعنی یهودیه یا نصرانیه وه د هغې چې عادت و رځې پوره شي لس ورځې د هغه او وینه په قطع سی وطی به روا دی بیله غسل کولو. ولې چې دا مکلفه په غسل نه ده» ط ص۱۱۷.





## وَتَقْضِى الْحَائِضُ وَالنُّفَسَاءُ الصَّوْمَ دُوْنَ الصَّلٰوةِ

او قضا به راوړي حائضه ښځه او نفاس والا ښځه د روژې نه د لمانځه. په حدیث کی د عائشه رض راغلی دي» کَانَ يُصِيْبُنَا ذَالِكَ فَنُؤْمَرُ بِقَضَاءِ الصَّوْمِ وَلَا نُؤْمَرُ بِقَضَاءِ الصَّلٰوةِ. ترجمه وه چې موږ ښځو ته به رسیدی حیض نو موږ به امر کیدلو یعنی د جانبه څخه د آنحضرت صلی الله علیه وسلم په قضاء راوړو د روژي. او نه امر کیدلو په قضاء د لمونځو. وعلیه اجماع الامة المرحومة:

## حِكْمَتِ اِلٰهِى

چونکه لمونځ په شبانه روز پنځه واره مکرر کیږي. او په ورځو کښی د حیض او نفاس ښځی پر لمونځونه څنډی جوړیږي او ددی ټولو قضاء راوړل حرج دی نو رب العلمین ددوی ته د دغه وخت لمونځونه معاف کړه. او برخلاف د روژې چې هغه لږ پیښیږي. ولی که ښځه په میاشت کی د روژې حمل لري نو خو نه حیض سته او نه نفاس. او دغه رنګه که ښځه ممتدة الطهر وي بیا هم په میاشت کی د روژې یه حیض نسته» او ددی ټوله سر سره دو ورځو د حیض عدم کم دی په قضاء کښی حرج نسته. او نفاس خو په روژه کی ډیر نادر دی. قَالَ الْمُصَنِّفُ

## وَيَحْرُمُ عَلَى الْمُحْدِثِ ثَلَاثَةُ اَشْيَاءٍ اَلصَّلٰوةُ وَالطَّوَافُ وَمَسُّ

او حرام دی ولې او د سه ځا ته که نروی او که ښځه وی دري شیان. لمونځ او طواف پر بیت الله

## الْمُصْحَفِ اِلَّا بِغِلَافٍ

شریفی باندی چې وړاندی یه بیان تیرسو. او مسه کول د قرآن شریف که څه هم یو آیت وی مګر به پوښ کی او مراد د پوښ څخه هغه پوښ دی چې د قرآن شریف څخه جلا وي.

**پوښتنه:** چې محقق طحطاوی مناسب ددی ځای سره په ص۱۱۸ بعض مسائل ذکر کړي دی چې هغه دا دی ع۱ مکروه دی نوشته کول د قرآن آیت او یا دنامه د خدای پر داسی شی چې هغه او اریږی او یا تکیه پر کیږی لکه بالښت. ولې چې ترک د تعظیم دی ع۲ قرآن یاد خدای نوم بر درهم او یا نو ټه لیکی. چې د تعظیم خلاف دی ع۳ قرآن یا د خدای نوم د

پرمحراب یا پردیواله د مسجد نه لیکی. ولې چې رنګ به راتوی نه سی ۴ کم یو صندوق کښې چې دینی کتابونه وه پرهغه صندوق باندی نالی یا تلتك یا نورد کوراشیان ایښول خلاف الادب دی ۵ او په خلاصه کی وائې چې پښی غځول د قرآن شریف وخواته چې کښته پروت وو که برابرد پښو سره وو مکروه دی. اوکه برابرنه وو بیا کراهت نسته ۶ اوکه قرآن شریف لوړ پر تخته یا بل شئ پروت وو نو پښی غځول وهغه خواته مکروه نه دئ. ۷ ایښودل د قلم پر کتاب یا قرآن شریف د لیکو د پاره مکروه او بیله هغه مکروه دی. ۸ په یوه غالی کښې او یا په مصلی کی چې نوم د خدای نوشته وي پرهغه کښېنستل مکروه دی. او صاحب هدایه وائي مکروه نه دئ. ۹ که قرآن شریف په خونه کی په پوښو کی پروت وی په هغه خونه کی د ماینی سره جماع کول خلاف الادب دی» اوکه چیری قرآن شریف پوښ نه لودی. نو د پاره د ادب په وخت کی د جماع و دی یو ټکر پرهوار کړی

بیت ـه از خدا خواهیم توفیق ادب ـ بی ادب محروم ماند از فضل رب » قالَ المصنف رحمه الله

## وَدَمُ الْاِسْتِحَاضَةِ كَرُعَافٍ دَائِمٍ لَا يَمْنَعُ صَلٰوةً

او وینی د مرض لکه د پزی وینی چې همیشه وی نه منع کوي لمونځ، یعنی مستحاضه ښځه مکلفه په لمانځه ده **پوه سه**: چې وینه د استحاضة پر قرار د ارشاد نبوي وینه د رګ ده چې چاودلی دئ. او د رحم وینه نه ده. علامه یه داده چې د استحاضة وینه بد بوئي نه لری لکه د حیض وینه » قالَ المصنف رحمه الله

**وَلَاصَوْمًا وَلَاوَطْئًا** او نه منع کوي دم الاستحاضة روژه که نفلی وی او که فرضي او نه منع کوی وطی د میړه» ولې چې د اوښیر اذی نه ده چې په قرآن کریم کښې ذکر سوی ده» **پوه سه**: چې دم الاستحاضة پر څلور قسمه ده. ۱ چې ښځه مینده واره وی او وینه ورته پیدا سی ۲ چې ښځه تر ۹ کاله کمه وي او وینه ورته پیدا سی ۳ او چې تر اقلی مُدې د حیض چې دری ورځی دی. ۴ چې تر اکثری مُدې د حیض یا د نفاس بالا وی.

اَللّٰهم اغفر لكاتبه كتبه احقر العباد فضل الحق حقانی»





## وَتَتَوَضَّاءُ الْمُسْتَحَاضَةُ وَمَنْ بِهٖ عُذْرٌ كَسَلَسِ بَوْلٍ وَاسْتِطْلَاقِ

او اودس به تازه کوی مستحاضه ښځه او هغه څوک چې د ده سره عذر وی لکه یو سری چې بولی نه ګیری

## بَطْنٍ لِوَقْتِ كُلِّ فَرْضٍ وَيُصَلُّوْنَ بِهٖ مَاشَاءُوْا مِنَ الْفَرَائِضِ وَالنَّوَافِلِ

او یا یه نس ایله وی یعنی غُل یه سی ټینګولای د پاره د هر لمانځه فرضي. او دوی اداء کولای سی په هغه اودس چې ژره یه غواړی که فرضي لمونځ وی او که نفلي لمونځ وی،» او سُنت هم په حکم کی د نفلو دي. **پوه سه**: چې سلس البول یو مرض دی چې د ضعفه څخه مثانې یا د غلبه څخه د خنکی پر طبع د سړی پیدا کیږي.

**مسئله** په بحرالرائق کی وائې چې د معذور اودس په وخت کی هلته محفوظ دی چې بله بې اودسیا نسی وي پیښه. مثلاً که د یوه سړی تریوه سږمه وینی بهیدلی او هغه بله سږمه یه سالمه وه. نو ده اودس تازه کړی. د ستی تر اودا سه یه تر هغه بله سږمه هم وینی را وبهیدلی اودس یه مات سُو. ولې چې دانوی بې اودسیا ده. او یا د یوه سړي بولي ایله وی. دی چې اودس تازه کړي غُول یه هم ایله سی اول اودس یه مات سُو. او که چیری بولې او غُول دواړه جاري وه. او یا تر دواړو سږمو یه وینی بهیدلې نو ده اودس تازه کړی ور وسته تر اودا سه یه خوا بنده سوه اول اودس یه پاته دی.

**پوه سه**: چې عذرونه په دغو عذرو کی چې مصنف رحمه الله ذکر کړه حصر نه دي. بلکه که د یوه سړي پزه همیشه وینی کوی. یا هر ګړی بُسکی څخه وزی. او یا ټپی وي چې د ټپ وینه به د ریږی حتی په پنبه وُو وغیره سره هم نه دریږی» دا ټول کسان معذور دي.

**مسئله**: که د سړی بعض د دغو عذرو. چې په ناستي یه لمونځ کولای یا په اشاره سره دفع کیدَله. پر هغه لازمه ده چې لمونځ په ناستي یا په اشاره وکړي. چې د عذره څخه خلاص سي. **پوه سه**: چې اودس د معذور د پاره د وخت د لمانځه دی د پاره د لمانځه نه دی لکه نور امامان چې وائې. په حدیث شریف کی روایت دی چې روایت یه

سبط ابن الجوزی کړي دی د امام اعظمؒ ابوحنیفه نه دا سی راغلی دی، رسول کریم صلی الله علیه وسلم فرمائي چي مستحاضه دې اودس تازه کوی دپاره د هر وقت لمانځه. او شک نشته چي دا نور معذورین په حکم کښې د مستحاضې دې.

## مسائل شتی من هٰذالباب

**فرعه**: معذور سړي دوقت په اوداسه سره هغه قضائي لمونځ هم کولای سي چي په وخت کی د صحت پر ده لازم سوي وُو، مَراقی. **فرعه**، معذور په دغه اوداسه واجب لمونځ نکرو تر هم کولای سي او د اختر لمونځ هم په کولای سي، او مَس ده مصحف هم په کولای سی **فرعه**، په مضمرات کی داسی وَائي چي که سړي سلسلبول وو اودس یې تازه کړی. او دغه پسه سرئیه پنبه چخ کړه او بولي دې او توخته بندی سوي. او دی هم پوهیدی که پنبه نه وای بولي راوتلی. او بیایه پنبه یې اوکښه او هغه لانده وه. نو دغه گړي چي ده پنبه یې اوکښه اودس یې مات سُو. نه د مخه تر اوتود پنبې وُو. وعَلیه الفتوٰی.

**فرعه**: که دیوه سړي غوَل بهیدَل لکن چي پنبه یې په کُنه کی چیخلی وای. غالخو په نه بند یدَل لکن لړ بدَل ضرور. آیا دی د غه پنبې په کُنه چخ کړي. **جواب**: هُو دپاره د دی چي نجاسته یې لږ سی په قدر د امکان. ابن امیر الحاج وَائي چي دا چخل مستحب دی. او امام حلبیؒ وائي چي واجب دی» قَـالَ المُصنفؒ»

## وَيُبْطِلُ وُضُوءَ الْمَعْذُورِينَ بِخُرُوجِ الْوَقْتِ فَقَطْ

او باطلیږی اودس د معذرو خلگو په وتلو د وخت فقط مثلاً د سحار د لمانځه دپاره یې اودس تازه کړي وو، نو چي لمر راوخیږی. اودس یې مات سو، وَلي چي د سحار د لمانځه وخت تېرسُو. دا مذهب دی د امام اعظمؒ او محمدؒ، او په نیز د زفرؒ په دُخول د وخت اودس ماتیږی فقط یعني نه په خروج د وخت نو په صورت مذکوره کښې د معذور اودس نه دی مات، وَلي چي په لمر را ختلو سره د بل فرضی لمانځه وخت نه سو داخل، او امام ابویوسفؒ وائي چي په خروج د وخت او په دُخول په دواړو د معذور اودس ماتیږي»

«حقانی غفرلهٗ»





## فائدة الخلاف

که معذوره د څاښت لمانځه دپاره اودس تازه کړي نو په هغه اوداسه سره د امام اعظمؒ پر مذهب د ماپښین لمونځ روا دی، وَلي چي د فرضي لمانځه وخت نه دی وَتلی خلافاً لزفرؒ ولي چي دخول د فرضي لمانځه د وخت چي ماپښین دی موجود سو. وعندابي یوسفؒ کذالک. او که چیری معذور د سحار د لمانځه دپاره اودس تازه کړي د عیدگاه لمونځ نه سي په کولای باتفاق الائمة الثلاثة من المذهب. ولي چي خروج د وخت د سحار د لمانځه خو موجود سو، خلافًا لزفرؒ. ولي چي دخول د فرضي لمانځه د وخت خو نه دی راغلی د عیدگاه لمونځ خو واجب دی. قـال المُصنفؒ»

## وَلَا يَصِيرُ مَعْذُورًا حَتّٰى يَسْتَوْعِبَهُ الْعُذْرُ وَقْتًا كَامِلًا لَيْسَ

او نه گرځی معذور، یعنی سلس البول وَالا وغیره تر هغو پوري چي کښې باسي ده لره عذر وقت د کامل لمانځ چي په هغه کښې انقطاع

## فِيهِ انْقِطَاعٌ بِقَدْرِ الْوُضُوءِ وَالصَّلٰوةِ

د عذر په قدر د اوداسه او لمانځه نه پیدا کیږي یعني که لږ انقطاع هم موجود وي خو بیا هم معذور دی، او که د اوداسه او لمانځه وخت بیله عذره موجود وو بیا خو معذور نه دی» **پوښتنه**: چي استیعاب ده وخت گاهی حقیقي وي، هغه دا سي چي عذر موجود یو گړی هم نه قطع کیږي» او گاهی حکمي وي هغه دا سي چي په بعض وخت کی انقطاع د عذر خو موجود وی لکن اودس او لمونځ نه په کښې ځائیږی **پوښتنه**: چي مراد د وخت کامله څخه وقت د فرضي لمانځه دی که نو دا سوال نه پیدا کیږی که یو سړي د طلوع شمس څخه بیا تر زواله پوري وخت خالی د عذر څخه نه سی پیدا کولای باید دا سړي معذور وگڼل سي. ولي چي د څاښت وخت خو هم د لمانځه دی لکه د اختر لمونځ او یا د څاښت لمونځ، حاصل د جواب دا دی چي څاښت خو یا د واجب لمانځه وخت دی او یا د نفل لمانځه وخت دی» د فرضي لمانځه وخت نه دی. قَالَ المُصنفؒ»

## وَهٰذَا شَرْطُ ثُبُوتِهِ وَشَرْطُ دَوَامِهِ وُجُودُهُ فِي كُلِّ وَقْتٍ بَعْدَ ذٰلِكَ

او دغه استیعاب حقیقي یا حکمي شرط دی د ثبوت د عذر، یعني عذر د سړي ثابته دی. او شرط د همیشوالی

دعذر وجود ددې دهغه عذر په وخت کې وروسته ترثبوت. قَالَ المصنفؒ

## وَلَوْمَرَّةً وَشَرْطُ انْقِطَاعِهِ وَخُرُوْجُ صَاحِبِهِ عَنْ كَوْنِهِ مَعْذُوْرًا

که څه هم یو وار په وخت کښې پیدا کیږی. اوشرط دقطع والی دعُذر یعنی چې سړی د معذوریت نه وزی. قطع والی دی دهغه عذراوخالي والی

## خُلُوُّ وَقْتٍ كَامِلٍ عَنْهُ

دوقت کامل دی دهغه عُذر څخه.

## مَسْئَلَةٌ مُهِمَّةٌ

که چاته دصاحب عذر نجاست دده دعذر یعنی یا بولی یا وینې یا غول ورورسیدهغه جامه په بوله غوارې اوکنه! فقیه ابن سلمةؒ وائی چې پریوله نه غواړی، ولې چې بې د نجاست تله په باب الانجاس کې چې به راسی، اِنْ شَآءَ اللّٰهُ عفوه دی. نو دجهته دضرورت دعذر دپه هم عفوه دی. اوبل دلیل دادی چې په دغه نجاست د معذور چې اودس نه ماتیږی نوګویا دا نجس نه دی حکمًا اوبل دلیل یه دادی چې بد پریوله دهغه نجاست څخه نه غواړی نوجامه خوتې بدن اولیٰ باالطهارت نه ده. وَفِى الْبَدَائِعِ. واجب دی پریوله د زائد ترقدر د درهم کی فائده کوله یعنی چې لا څه په دوران بیا نه مرداریږي. حتی که نافع وه اوده نه پریولی لمونځ یه ورسره وکړي هغه لمونځ یه نه دی روا. اوکه فائده نه کوله نو پریوله نه غواړي ترهغو چې د معذور عذر باقي وي، قال الطحطاویؒ وهوقول مشا ئخنا وهوالصّحيح، وفتوى الفقير على هذالقول.

**پوهه سه**: چې تردی اوسه پورې مصنفؒ بیان د نجاست حکمی کاوه لکه بې اوبه دسیا جنابت اوهغه څخه دپاکی بیان یه کاوه چې اودس یا تیمم یا غسل وو. هم دا اوس بیان د نجاستِ حقیقي یعنی ظاهري لکه بولی، غول، وینې، وغیره شروع کوي.

کتاب - پښتو شرح نورالایضاح، مصنف - علامه محمد عُبیدُالله الایوبی. القندهاري.
کتابت - احقرفضل الحق حقاني. الناشر مکتبة القرآة والتجويد كانسي رود كوئته





# بَابُ الْاَنْجَاسِ وَالطَّهَارَةِ عَنْهَا

باب دی په بیان دنجسوشیانو. اوبیان دپاکوالی دبدن یا جامی دهغو څخه، چونکه د مخکنی مباحث تهوله د نجس حکمی وه نو دهغه څخه دا معلومیږی چې دلته دا نجاسو څخه انجاس حقیقي مراد دي. فلایرد چې مصنفؒ باید داسې ویلی وای باب الانجاس الحقيقة.

**سَوَال**: ولې مصنفؒ د نجاست حکمی بیان تر نجاستِ حقیقي دمخه کړي. **جَوَاب** د نجاستِ حکمی حال سخت دی تر حقیقي ددې کبله چې حکمی قدر معفونه لري، یعنی که یو سړی ډیره کښنی پسکې واچوي هم عفوه نه ده او نجاست حقیقي قدر معفونه لري. یعنی که د سړي پر جامه بولی وي چې تر قدر د درهم کمی وی هغه عفوه دی. بلکه ډیر یه هم عفوه دی په وخت کی دضرورت، کما سیأتی، که خدای کوله.

اوبل دا چې که دسړي سره نجاست حکمی یعنی بې اودسه وي. مَسح دقرآن شریف ورته نارواده. اوکه چیرې جنب مسِ دقرآن اوتلاوت دواړه ورته نارواده. اوکه سړی اودس لري مګر لالی مرداروی هغه هم مسه دمصحف شریف کولای سي اوهم یه تلاوت، **پوهه سه**: چې انجاس جمع دنجس ده په دوه زوره. اویه اصل کی مصدر دی لکن په اصطلاح کی هر عین اوذات مستقذر ته وائی لکن په اصطلاح دفقهی شریفی نجس حقیقي اوحکمی دواړو ته وائی کما مر. اولفظ د خبث په حقیقي پورې خاص دی. اولفظ دحدث په حکمی پورې خاص دی. **پوهه سه** چې د نجاستِ حقیقي په لیرې کولو کی باید سړي ډیرغور وکړي. ولې په حدیث شریف کی راغلی دی چې مضمون یه دادی، چې اول چې دمسلمان څخه پوښتنه کیږی په قبر کی هغه طهارت دی اوعام عذاب دقبر په سبب دبیباکی په باره کی دطهارت خصوصًا بولی. قال المصنفؒ

## تُنْقَسِمُ النَّجَاسَةُ اِلٰى قِسْمَيْنِ غَلِيْظَةٌ وَخَفِيْفَةٌ

ونیشل کیږی نجاست ودوه قسمه ته چې یوه ته سخته وائی اوبلی ته سپکه وائی.

**پوښتنه**: چې د نجاستِ غلیظه او خفیفه فرق په دې کې دی چې د غلیظه قدر معفو لږ دی، او د خفیفه قدر معفو ډېر دی. او په استعمال کې دا او بو یعنې پرېولو فرق نه سره لري. یعنې هر ډول چې غلیظه مینځي هغه رنګه به خفیفه هم مینځي. **فائده**: امام اعظم ابوحنیفه وائي چې د کوم شي نجاست چې په ایت یا حدیث سره ثابت وي. او بل نص مخالف نه وي په کښې راغلی، هغه نجس مغلظ دی. لکه وینه یا خمر وغیره» چې مخالف نصوص نسته په کښې نو، نو که د علماء اختلاف په کښې وي او که نه او یا عموم بلوی په کښې وي او که نه او کوم شي چې د هغه په نجاست کې هم نص یعنې حدیث موجود وي. او په طهارت کښې هم نص موجود وي، لکن سره د هغه ود لیل ته د نجاست ترجیح ورکړه سوې وي» هغه شی نجس مخفف دی» لکه بولې د هغه حیوان چې غوښه یې حلالې وي او خوړل کېږي. لکه پسه غوایي وغیره. ولې چې د داسې حیوانانو په بولو کې دوه حدیثه متعارض سته»، یو حدیث دا دی، «اِسْتَنْزِهُوا مِنَ الْبَوْلِ فَانَ عَامَةَ عَذَابَ الْقَبرِمِنه» تاسې ځان وساتئ د بولو څخه ولې چې اکثر عذاب د قبر هم د دغو بولو څخه دی»

چونکه په دې حدیث کې بولې مطلق راغلې دي یعنې که بولې د سړي وي او که بولې د حیوان مأکول اللحم وي نو مطلق بولې نجسې دي. او په بل دېر او نږده حدیث کې چې بخاري وغیره یې روایت کړې دی، چې هغه خلګو ته چې د عُرینه د قبیلې وه او مدینې منورې ته دیاره د اسلام راغلي وه او په مرض د استسقاء اخته سو، آنحضرت صلی الله علیه وسلم وهغوته وفرمائیل. چې د صدقانو د اوښانو په ګله کې ورزئ. او د اوښانو بولې او شیدې څښئ اِلیٰ اٰخِرِ الحدیث» د دې حدیث څخه دا معلومیږي چې بولې د مأیوکل لحمه پاکې دي. ولې چې د اوښ او پسه وغیره فرق نسته» نو د دې حدیث د سببه امام محمد بولې د مأیوکل لحمه پاکې بولي. لکن سره د تعارضه ترجیح ودلیل ته د نجاست ده» کما فی الهدایة وغیره من الکتب الفقهیة» او امام ابویوسف او امام محمد وائي چې هغه شی چې نجاست یې په اتفاق د علماوو وي او عموم بلوی هم په کښې نه وي هغه شی نجس مغلظ دی. او که د علماوو اختلاف په نجاستِ او طهارت کښې وو او یا عموم بلوی په کښې وه هغه شی نجس مخفف دی.





په کافي کې وائي چې د دې اختلاف اندازه په خوشیو او خرشنوکې ښکاره کیږي چونکه د دوی په نجاست کښې اختلاف د حدیثو نسته بلکه یوازې هغه حدیث سته چې علیه السلام د خوشائي په باره کې وویله چې دا «رِجْسٌ» یعنې نجس دی. نو په نیز د حضرت ابو حنیفهؒ د واړه نجس مغلظ دي. او یارانؒ وائي چې چونکه په دغو دوو کښې اختلاف د امامانو سته چې امام مالکؒ او ابن ابی لیلیؒ یې پاک بولي نو دغه دوه نجس مخفف دي» ط» او دا په مسئله کې ظاهر مذهب د امام اعظمؒ دی. ولې چې نص چې معارض و نه لري د هغه نص حکم ټینګ دی، او نص خو حجت دی اختلاف د علماوو خو حجت نه دی. قال، «وَاِنْ تَنَازَعْتُمْ فِيْ شَيْءٍ فَرُدُّوْهُ اِلَى اللهِ وَالرَّسُوْلِ» که ستاسې په یو حکم کښې نزاع پیدا سوه نو هغه حکم رد کړئ و خدای ته او و رسول ته» یعنې په قرآن شریف کې او یا په احادیثو نبویه وو کښې حکم ولټوئ.

**پوښتنه**: چې په اروانو (یوچې ښتائی) کښې د مأکول اللحم او غیر مأکول اللحم فرق نسته بلکه دواړه امام اعظمؒ نجس مغلظ بولي» او یاران یې نجس مخفف بولي. قال المصنفؒ

**كَالْخَمْرِ** لکه شراب چې نجس مغلظ دی په اتفاق د روایاتو **فائده**: خمر معنه نا پخ سوو او بوټه د انګور وته وائي چې د طول مکث د سببه په خپله جوش وکړي او د هغه لوښي څخه چې دا او به یکښې وي ځګونه راسي» **پاته سوه نور** اَشربه مسکره چې حرام هم دي لکه دا ربتو شراب. د غنمو شراب، د خرما شراب وغیره نو که څه هم حرام خو دي لکن په بعض روایاتو کې وائي چې هغه هم لکه خمر نجس مغلظ دي. او په بعض روایاتو کښې راغلي دي چې نجس مخفف دي. او بعض علماء وائي چې پاک دي. دا روایات ټول په بدائع کښې مذکور دي

**وَالدَّمُ الْمَسْفُوْحُ** او بل نجس مغلظ هغه وینه ده چې د یوه ځایه څخه بل ځای ته بهیدونکې وي، د هر حیوان چې وي. قهستانيؒ»

**پوښتنه**: چې مراد د مسفوح څخه دا دی چې د ښان څخه بهیدل وي نو بهیدونکې وینه بر ځای کلک سي هغه وینې مرداري دي» کما فی منیة المصلی» نو بناء پر دغه هغه وینه چې پر مذبح د پسه وغیره یعنې ځای د حلالیدو پاته سي هغه مرداره ده. د ابن امیر الحاج

**مسئله ډېره مهمه** پوه سه چي په ښارونو کي چي پسونه حلالیږي د هغو سرونه سره دوینو نور خلګ راتښي، اوبیا یو لوی دیګ یه باندي کړي وي چي اوبه یه جوش سي نو هغه دیګ لس یا شل دغه سرونه د هغه مردارو وینو سره وروا چوي- اوبیا یه ایشوي تر هغو پوري چي وړي یه د سره څخه تووله توی سي" او د غه مرداري اوبه د سرو په ټولو غوښو او مغزو کښي ننوزي. نو بیا داسرونه راوکاږي اوصاف یه کړي په بازار کي خرخوي یا د هوټلان والا یه رانسي. او په هوټل کي پر خلکو خرڅوي او هغه یه خوري،" چي معامله دغسي وي نو د غوسرو غوښي مرداري دي. اما په صحرا کښي د سره څخه د غه مرداره وینه یووار پریولي. اوبیا یه په نورو اوبو کښي صاف کړي. اویا هغه وینه په اورځندي وسوځي. اوبیا یه صاف کړي هغه دول پرانه لري. د سرو غوښي پاکي دي. وهذه فائدة جديدة والناس عنها غافلون"

**مسئله:** هغه وینې چي په غوښو کي پاته وي هغه مرداري نه دي. ولي چي مسفوح نه دي. او بل احتراز ځني سخت دی. **مسئله:** چي پسه وغیره حلال کي او دم مسفوح په ووزي، هغه وینه په رګو کي پاته وي هغه پاکه ده. **مسئله:** اینه، توری، زړه، کړځه هم دوینو څخه جوړ دي پاک دي"

**فائده:** په اشباه کي وائي چي وینې د زړه د پسه وغیره پاکي دي پر مذهب مختار، یعنی شی نه په مرداریږي،" وهو قول ابو یوسف"، وقال محمد نجس، اوقاضیخان او نوري هم ډېري فتا واوي وائي چي پاک دي،" ط ص۱۲۲ **مسئله:** هغه وینه د سړي چي اودس نه په ماتیږي یعني چي وموضع د طهارت ونه بهیږي پاکه ده،" حتی چي که د دغو وینو څخه لن لن په پنبه واخلی او په لن و اوبو کښي واچوي هغه اوبه نه په مرداریږي"

**مسئلة:** هغه وینه چي غوماشیه یا کیکه، یا شپږه یه بدن څخه د سړي راوباسي هغه پاکه ده که څه هم ډېره وي. **مسئله:** د ماهي وینه هم پاکه ده. پر صحیح مذهب امام اعظم او امام محمد"، ولي د ماهي وینه حقیقتاً وینه نه ده بلکه سري اوبه دي، ولي چي د موی (وینه داره شی) په اوبو کښي همیشه ژوند نسي کولای، اوبل داچي د موی شی چي مړسي او



لړي کښیږي دي توريږي. او ماهي سپینیږي، او امام ابو یوسف" او شافعي" وائي چي د ماهي وینه نجسه ده،" **مسئله:** د شهید وینې په حق کښي د ده، یعني چي د ده پر بدن وي پاکه ده، حتی که چیري شهید سره د وینو د سړي په شاوي او لمونځ ور سره وکي لمونځ یه روادی. ولي چي شهید حکماً پاک دی ځکه غسل شرعاً نه ورکره کیږي،" لکن د شهید وینه چي د ده د بدن نه څخه جلاسي نو بیا مرداري دي،" لعدم الضرورة. او نص په دي باره کي نسته نو د غه وینه د قیاس پر مقتضی پاته دي. ط، ص۱۲۳. قال المصنف

**ولحم الميتة وإهابها** او د غره نګه نجس مغلظ دی غوښې د مرداري یعني چي ذبح سوي نه وي که څه هم پسه وغیره وي. او پوستکي د مرداري. **پوهسه:** چي د مرداري څخه هغه حیوان مراد دی چي وینه لري. نو ماهي، ملخ، د دي حکم خارج دی یعني ذبح نه غواړي پاک دي. او د اِهاب څخه هغه پوستکي مراد دی چي د بغ سوی نه وي. **پوښتنه:** د میتة او د هغی د پوستکي دي نجاست څخه فائده ده. **جواب** د دي فائده داده که چیري د سړي تر مقدار د نجاست غلیظه چي وروسته به راسي" ان شاء الله، بالا ور سره وي د هغه سړي لمونځ نه دی روا" قال المصنف.

**وبول مالا يؤكل لحمه** او بولي د هغه چي غوښي نه خوړل کیږي نجس مغلظ دی. لکه خر، سپی او انسان وغیره **پوهسه:** چي بعض امامان" وائي چي بولي د هغه کشني چي تی روی او د ډوډی وغیره سنه وي خوړلی پاکي دي" لکن مصنف" مطلق بولي ذکر کړي تنبیهاً پر دی چي بولي د شیرخوره کشني هم نجس مغلظی دي **مسئله:** مصنف" په مراقی کي وائي چي بولي د موږک او به مرداره وي. ولي چي په اوبو کي ضرورت نسته. د دي سببه چي د اوبو د لوښو سرونه خلګ پټه وي. او که بیخي لږ وي هغه عفو دی. او که موږک په کالو کي یا په غنمو وغیره کښي غول وکړي هغه عفوه دی د جهته د ضرورت" **پوهسه** چي په مسئله کي د بولو د موږک ډېر اختلاف دی چي امام طحطاوي" په ص۱۲۳ کي ذکر کړي

دی، مَنْ شَاءَ فَلْيُطَالِعْ ثَمَّه، داچې مصنفؒ په مَراقی کښې ذکر کړې دی او مونږ نقل کړې
مذهَب مختار دی۔ قَالَ المُصَنِّفُ رح

**وَنَحْوُ الْكَلْبِ وَرَجِيعُ السِّبَاعِ** اوداغه رنګه نجاستِ غليظ دی دسپی غل۔ اوخوشائی د درنده ګانو۔ لکن چې د بهائِمو څخه وي۔ ولې چې د سباع الطير غوُل نجس مخفف دی» کماسيأتی»

**وَخُرْءُ الدَّجَاجِ وَالْبَطِّ وَالْاَوْزِ وَمَايَنْقُضُ الْوُضُوْءَ مِنْهُ**

اوغول دچرګ يا چرګی، اوغول دالی يا مرغابی، اوهغه چې اودس په ده سره ماتيږی چې ووزی

**بِخُرُوْجِهِ مِنْ بَدَنِ الْاِنْسَانِ** دَبَدن څخه دانسان لکه غوُل بولې وينې وغيره، لکن پښکی ددې حکم څخه خارج دَه، ولې چې پښکی که څه هم اودس خو په ماتيږی لکن دا نجس‌له پاکه دَه په صحيح روايت نوځکه
پرلانده کالي پښکی واچوی هغه کالی نه مرداريږي. **پوُهَسَه**: چې بحر رائق دبزازيه
څخه نقل کړې دی چې که اِلیٰ داسی وَه چې په هوا نسوای الوتلای» حکم دغولو یه حکم د
غولو دچرګی دی یعنی نجس مغلظ دی» اوکه په هوا الوتلای سوای نوحکم یه دکوترې د
غولودی **فَائِدَه**: هغه مُرغه چې غول په هوا کښی کوی۔ نوکی غوښی خوړل کيدلې
لکه کوتره چوغکه، وغيرهما نود هغوغول پاك دې شئ نه په مرداريږي. اوکی غوښی نه خوړل
کيدلی لکه تپوُس، خرخك باز وغيره نوغوُل يه نجس مخفف دی.

**پوُهَسَه**: چې دماتوُونکی څخه دا اوداسی هغه حقيقی ماتوونکی مراد دی» نوقهقهه په
لمانځه کی اوياخوب ددی څخه وتلی دي که څه هم اودس په ماتيږي، ولې چې دادوه جسم
نه لری چې پاك يا مردارو بو بلل سِی» **مسئَلَه**: قیٔ چې ملأُ الفم (په ډکه خوله) نه وي پاك
دی شئ نه په مرداريږی. سوادشرابو څخه چې قیٔ یه کړې هغه که څه هم بيخی لږ وي نجس مغلظ
دي۔ **مسئَلَه**: وينه چې دراوتو ترځای تيره نه سِی پاکه ده شئ نه په مرداريږی په صحيح
روايت» دطحطاوی څخه ص ۱۲۳



**وَاَمَّا الْخَفِيْفَةُ فَكَبَوْلِ الْفَرَسِ وَكَذَا بَوْلُ مَايُؤْكَلُ لَحْمُهُ وَخُرْءُ**
۸۸ چې نجاستِ خفيفه دی. چې دوهم قسم د نجس دی هغه لکه بولې د آس اود غه رنګه بولې دهغه حيوان
چې غوښی خوړل کيږی يعنی حلالی وی لکه پسه، غويَیی، اوبن وغيره
**طَيْرٍ لَا يُوْكَلُ** اوغوُل دمَرغه چې غوښی نه خوړل کيږي. لکه بانبه، تپوس، وغيره،
**پوُهَسَه**: چې دَبولو دآس خفت بناء پر مذهب مفتیٰ به دی. چې آس مأكول اللحم دی لکن
سره دهغه خوړل دغوښو يه مکروه دی » وَلی آلَة دجهاد دَه» او په نيزدِ امام محمدؒ دغه بولې پاکی
دي **پوُهَسَه**: چې مصنفؒ بولې ذکر کړې وَلې چې خرشنه دآس يا دغاطر اود، خره، او
خوشائی د غوائی، او پوُچې دپسو، نجس مغلظ دي په نيزد امام اعظمؒ ولې چې تعارض
دنصوصو په کښی نسته» او په نيزد امام ابو يوسفؒ او امام محمدؒ نجاست خفيفه دی،
الاختلاف العلماء وعموم البلوی» حتیٰ امام محمدؒ په اخر کښی دغوا خوشائی اوخرشنه پاك
بولی دي، ولې لاری په کښنړی دې او په هر کوڅه کی په کثرت موجود دي» نود دې
عام بلوی دضرورت پر بناء امام محمدؒ حکم دَطهارت صادر کړی» ط» لکن قهستانیؒ وائی چې
مونږ په دغه روايت عمل نه کوُوه
**مسئَلَه**: داوبن شخند او یادغوائی شخند اود غه رنګه شخند دَپسه حکم يه دخوشائی
باد پچو دی۔ **مسئَلَه**: نارې دغاطِر يا دخره پاکی دی په ظاهر الروايت کی وهو
الصحيح ط ص ۱۲۴ » او دمرغانو چې غوښی نه خوړل کيږی سبب ده خفة النجاست دغوُلو
په عموم ضرورت دی. بلکه امام سرخسیؒ وائی چې د دغو مرغانو غوُل پاك دی» لکن دا روايت
دعقل اونقل څخه خلاف دی» قَالَ المصنفُ»

**وَعُفِىَ قَدْرُ الدِّرْهَمِ فِى الْمُغَلَّظَةِ** اوعفوه کړه سوي دی يعنی دجانبه څخه د شارع قدر ديوه درهم
په نجاست مغلظه کښی. **پوُهَسَه**: چې قدر د درهم لعض فقهاءؒ په اعتبار د وزن
معتبره وی مطلقًا يعنی که کلك وی لکه غوُل اوکه نری وي لکه بولې چې هغه د درهم وزن

شَل قیراط دیٔ» اوبعض فقهاءؒ قدر د درهم په اعتبار د مساحت» وائي یعني دګېچې پرې

لحاظ چې ګېچه د درهم یو وُرغوی دیٔ مطلقًا. لکن فقیه هندوانیؒ د دې دوو روایتو

توفیق داسې کړې دی چې که نجس مغلظ کلک وُو، نو معتبر قدر د درهم ازروی وزن دی

اوکه نری وُو نو اعتبار مساحت لره دیٔ. او د دی توفیق تائید امام زیلعیؒ کړې دی. او امام

کمال الدین ابن الهمامؒ هم دا توفیق مَنلی دیٔ» او بحرالرائق یې هم تخلی کړې دیٔ. او پر عامو

کتابو کې د فقهې شریفې د قبول سره مخامخ سوې دی فهو الصحیح»

# دَقِیقَهُ

**پوښتنه:** چې بحرالرائق د سراج وهاج او نورو کتابو څخه داسې نقل

کړې دی چې معتاد عفود نجاست خفیفه یا غلیظه دا ده که د هغو

قدر نجاست سره سرې لمونځ وکړي لمونځ یې صرف روا دیٔ. دا معنایه نه ده چې لمونځ

یې مکروه هم نه دیٔ. بلکه مسئله دا ده که نجاست غلیظه په مقدار د یوه درهم وُو» لمونځ

سره د هغو اتفاقًا مکروه دیٔ. او که تر قدر د درهم کم وو او سړی سره د هغو نجاست

پر لمانځه ودریدی. نو دی د بې وګوري که په وقت کې فراخي وَه نو مستحب دا ده چې هغه

نجاست دې پرېمنځي او لمونځ دې د سره وکړي. او که چېري د ده څخه د نجاست د پرېولو

په سبب جماعت تېریدی نو که اوبه وي او جماعت بل ځای ور رسیدی نو بیا هم افضل

دا ده چې نجاست دِ زائل کړي او لمونځ دی په بل جماعت کی اداء کي»

اوکه چېري وخت تنګ وو او یا بل ځای جماعت ته نه رسیدی نو لمونځ دی سره د نجاست

پوره کړي. بحرالرائق زیاته کړې ده چې په اول صورت کی کراهت تحریمي دیٔ. ولې چې لمونځ

ورته پر پېښول کیږي د مکروه تنزیهي د پاره لمونځ نه پرېښول کیږي. کذا نقله المولوي اعزاز علي في

حاشیه ص۵۲. قال المصنفؒ»

---

# وَمَادُوْنَ رُبُعِ الثَّوْبِ اَوِ الْبَدَنِ مِنَ الْخَفِیْفَةِ

او د غړ هغه که عفوه دی کم حصه تر څلورمې د جامې. او د ... د بدن که نجاست خفیفه وُو.

**پوښتنه:** چې مصنفؒ په مراقی الفلاح کې د ثوب ... کامل مراد کړی ده.



او د غړ رنګه د بدن څخه ټوله بدن مراد دیٔ. مبسوط والا د غړ صحیح ګڼړلې دَه» او بعض

فقهاءؒ وائي چې مراد د ربع څخه ربع د هغه طرف د جامې ده چې نجاست ور رسیدلی

وي. لکه لمن، لستونړي، او کنړکی. او د غړ رنګه په بدن کی معتبره ربع د هغه عضو

دی چې نجاست ور رسیدلی وي» لکه لاس، پښه، وغیره. او دا مذهب صحیح هم ګڼړلی دی

صاحب د تحفې او صاحب د محیط او "المجتبیٰ" او سراج، قال صاحب الحقائق وعلیه الفتوی"

او درېیم وائي چې احتیاط هم په دغه مذهب کی دی» وهذا حاصل ما في الشامي والبحر و

الطحطاوی»، وفیها تفصیل ازید مما نقلنا،

**حاصل د مسئلې د نجاست خفیفه دا دیٔ:** چې که څلرمه حصه د جامې او یا د بدن په

نجاست خفیفه مردار وَه خو لمونځ نه دی ور سره روا په اتفاق سره» ولې چې ربع حکایت د کل

څخه کوي، لکه په مسح کښې د سر او په خریلو کی د ربع د سر په احرام کی» نو ګویا ټوله جامه

یا ټوله بدن یې مردار دي. **مسئله:** که نجاست کم تر ربعې وو لمونځ سره د کراهت

ور سره روا دی. لکن کراهت یې تحریمي دی یا تنزیهي چا تصریح نه ده یې کړې» قال المصنفؒ

---

# وَعُفِیَ رَشَاشُ بَوْلٍ کَرُؤُسِ الْاِبَرِ

او عفوه ګڼل سوي دی څاڅکې د بولو چې لکه سرونه د ستنو

یعنی که پر جامه وبا شل سي او که پر بدن» **مسئله:** که د دغه رشاش البول پر لنړو

او بو کښی ولوېږي هغه او به په مردارېږي. ولې په او بو کښې ضرورت نسته او په بدن

او جامه کښې خو ضرورت وُو. حتیٰ که د غه جامه چې رشاش البول ور رسیدلی دی په

لنړو او بو کی ولوېږي هغه اوبه مردار یږي. او بعض علماء وائي چې د دغو بولو نجاست

اعتبار چې په جامه کی ساقط سو نو په او بو کښی هم ساقط دیٔ.

لکن داخبره کفایه والا رد کړې ده. او وائي چې په جامه یا بدن کښې خو حرج وو. او په اوبو

کښې حرج نسته. او یوه روایت شاذه کښې د امام ابو یوسفؒ وائي که چېري اثر د هغه نجاست

یعني یا رنګ او یا بوی پر جامه یا بدن معلومیدی پرېولو یې واجب دی. لکن په دی روایت

هیڅ فقیه فتوی نه ده ورکړې. **فائده:** د مړي د غسل په وخت کی چې کومې اوبه

پربدن یا پرجامه دغاسل دمږي دپریوَلو داوبو څخه ولوېږی هغه عفوه دی. ولې دهغه اوبو څخه دغاسل ځان ساتنه ډیره ګرانه دَه » اوچې دَغه غسالة سره جمع شئ لیعنی دمړي څخه جلابې بیا شئ به مَردارېږی. داهَلته چې پربَدَن دمړي نجاست وي اوکه دَمړي طهارت دبدن مُتیقن وُو بیا یه غساله پاکه ده» ط صـ١٢٦ »

**مسئله**: که مردار غوړي پرجامه وَلویدَه اولاځوکه ترقدر د درهم کم وَه لکن وروسته غوړونشروکړی. اوترقدر د درهم بالا سَوله. امام مرغیناني وائي چې اعتبار وخت لره داصابت دی نوپس له انبساطه څخه هم مانع دَلمانځه نه دئ. که څه هم ترقدر معفو بالاسې. اواکثرعُلماء پردې خبره دی چې وخت لره دانبساط یه اعتبار سته. نوکې ترانبساط د مخه په هغه جامه کښې لمونځ وکړی لمونځ یه روادئ. اوکه پس له انبساط اوانتشار څخه لمونځ وکړی نه دی ورسره روا» کذا فی السراج الوهاج ـ مر صـ١٢٦ **مسئله**: که لځ بازار آب فاشی کړي ووا اوسړي پرهغه لنده ځګه تیرسُو. اوپښې یې په هغو اوبو لندې سوې لمونځ نه دی ورسره روا» لغلبة النجاسة فیہا» **مسئله**: ختې اوچکړد بازار یالاري چې نجاست هم پکښې وي. عفوه دی دجهت څخه دضرورت مګرکې عین نجاست په پښو پوری منښتی وي هغه عفوه نه دی» مر صـ١٢٦ ـ قال المصنفؒ

## وَلَوِابْتَلَّ فِرَاشٌ اَوْتُرَابٌ نَجِسَانِ مِنْ عَرَقِ نَائِمٍ

اوکه لوند سو فراش لیعنی دپریوشئ اویا خاوري چې دا فراش اوخاوري مرداري وي دخولې څخه

## اَوْ بَلَلِ قَدَمٍ وَظَهَرَ اَثَرُ النَّجَاسَةِ فِي الْبَدَنِ وَالْقَدَمِ

دبیده پرهغه فراش باندې. اویا لَندې سوې خاوری دلندوالي څخه دَپښې دتلونکی اوښکاره سو اثر د

**تَنَجَّسَا وَاِلَّا فَلَا** نجاست چې خوند اوبوی اورنګ دَئ. په بَدَن کی دپراته سړي پرفرش باندی اویا په پښو کی دَتلونکی. نو به بدن اوپښې مردارې سوي. اوکه اثر دنجاست نه سو ښکاره پربَدن اوپرپښو نو بدن اوپښې یې پاکې دي.



**پوهسله**: چې دبیده یعنی نائم څخه نفس پروت مراد دی که بیده وي اوکه ویښ وي.

## كَمَا لَايَنْجُسُ ثَوْبٌ جَافٌ طَاهِرٌ لُفَّ فِي ثَوْبٍ نَجِسٍ

لکه چې نه مرداریږی هغه جامه چې وچه وي اوپاکه وي چې وپیچل سوې غږ. وَچه پاکه جامه په یوه بله جامه کینې چې هغه مرداره وي اولنده وي

## رَطْبٍ لَايَنْعَصِرُ الرَّطْبُ لَوْعُصِرَ

اوپه داسې شان سره وي هغه لنده مرداره جامه چې اوبه نه تری وزی کی چیری څوک ونښتیږي. ولې چې مُرداری هغه وَچې جامې ته نه رسیږي. **پوهسله**: که چیری وَچه پاکه جامه په لندې مرداری جامې کښې وپیچل سي نوکه ددواړو جامو څخه په نښتیځلو څاڅکی تویَدَل نو هغه پاکه جامه مرداره سوه اوکه چیری دیوی څخه څاڅکی نه څخیدَله نوهغه پاکه جامه اوس هم پاکه دَه» دادوی مسئلې خو اتفاقی دی» اوکه دیوی څخه څاڅکی تویَدله فقط نوامام حلوانيؒ وائي چې اعتبار هغه پاکې وَچې لره دی. یعنی دهغې څخه اوبه نه څخیږی نوهغه پاکه دَه که څه هم دمرداری څخه اوبه راوزي. لکن فتوی پردې دَه چې دَنجسې جامې څخه یه نښتیځلو اوبه نه څخیږی نوهغه پاکه جامه پاکه ده» مر ط صـ١٢٦/١٢٧ ـ قَالَ الْمُصَنِّفُ»

## وَلَايَنْجُسُ ثَوْبٌ رَطْبٌ نُشِرَ عَلٰى اَرْضٍ نَجِسَةٍ يَابِسَةٍ

اونه مرداریږی هغه جامه چې لَنده وي چې اواره یې کړي هغه جامه پرداسې ځمکه باندی چې هغه مرداره وی په بولو وغیره سره چې هغه ځمکه اوس وچه وي. **فَتَنَدَّتْ مِنْهُ**» نوهغه ځمکه نمناکه سي دهغې لندې لجامی څخه یعنی هغه لنده جامه پاکه دَه. مګرهغه وخت مرداره ده که اثر دهغه نجاست په دې لنده جامه کښې معلوم سُو» قَالَ الْمُصَنِّفُ

## وَلَابِرِيْحٍ هَبَّتْ عَلٰى نَجَاسَةٍ فَاَصَابَتِ الثَّوْبَ اِلَّا اَنْ

اونه مرداریږي جامه په هغه بادسره چې دغه باد راتیر سوی وي پرنجاست که وَچ وی اوکه لُند نوهغه باد وراسیږی بوی جامی ته مګرنه هغه وخت.

هغه وخت چې اثر د نجاست په هغه ثوب کې ظاهر سي» وَالاَثَرُ

**اَنْ يَظْهَرَ اَثَرُهَا فِيْهِ** مَا اَثَرُ مِنْ رِيْحٍ وَلَوْنٍ وَطَعْمٍ» اثر هغه دري شيان دي چې تېر سوه

**مَسْئَلَه:** كه دسري پر توگ د كُنې پر برابر يه لنده كونه چې پاكه يه پريولې وه لندوواو بيا يه پر هغه لانده ځاى پُسكى واچول» شمس الائمه واني چې په هغه پُسكى نور كالى هم مرداريږي. لكن فتوي پر هغه ده چې د مخه هم تېر سوه چې پُسكى پاكه ده» قَالَ المُصَنِّفُ

**وَيَطْهُرُ مُتَنَجِّسٌ بِنَجَاسَةٍ مَرْئِيَّةٍ بِزَوَالِ عَيْنِهَا وَلَوْ بِمَرَّةٍ**

او پاكيږي مردار شئ يعنى كه بدن وي او كه جامه وي او كه لوښى، په يوي مرداري سره يعنى كه غليظه وي او كه خفيفه وي. چې هغه نجاست په سترگو معلوميږي لكه وينې، او غوَل وغيره، په زائليدو د ذات د هغه نجس كه څه هم په يو وار پريولو سره دى **عَلَى الصَّحِيْحِ** پر صحيح روايت، **پوهسه:** د صحيح په لفظ كښې اشاره د اختلاف ته ده هغه داسې چې فقيه ابوجعفر طحاوي وائي چې پس له زواله څخه د عين دوه واره نور پريوله غواړي لكه غير مرئيه نجاست چې يو وار پرې مينځل سي دوه واره نور پريوله غواړي. او فخر الاسلام وائي چې وروسته تر زوال د عين دري واره نور پريوله غواړي.

**مَسْئَلَه:** كه يو ځاى وينې وكښې او پر هغه ځاى يه دري لا ندى تو كړان چې پاكونكى وه تير كړه نور پريوله نه غواړي. **پوهسه:** چې نجاست مرئيه هغه نجاست دى چې په سترگو معلوميږي پس له وچ والي. لكه غوَل، وينى، وغيره. او غير مرئيه هغه نجاست دى چې پس له وچ والي په سترگو نه معلوميږي لكه بولي: قَالَ المُصَنِّفُ

**وَلَا يَضُرُّ بَقَاءُ اَثَرٍ شَقَّ زَوَالُهُ** او ضرر نه رسوي و پاك والي ته پاته والى د هغه شي چې سخت وي زوال د هغه لكه رنگ د نجاست يعنى سره د بقاء د اثره هم جامه پاكه ده» **پوهسه** چې سخت والى د اثر د نجاست هغه دى، چې ايشولو او بو ته ضرورت لري او يا صابون وغيره ته ضرورت ولري»



**مَسْئَلَه:** كه يوه جامه په مردار رنگ يه رنگ كړې وي. نو هغه جامه چې دو نه پر ينځي او بيه صافى سي پاكه ده، او بعض فقهاءؒ چې پس له صاف والى دا و بو دري واره بيه پر ينځي. **مَسْئَلَه:** صابون كه مردار سو يعنى د ظاهرو خوا څخه نو چې پرې مينځي نو ه مينځي چې هغه نجاست څندى و لاړسي پاك دى» ط»

**مَسْئَلَه:** كه غوړي مردار سوه نو كه يخى وه نو هغه د نجاست ځاى دى غار كړي استه دى كې هغه نور غوړي پاك دي. او كه غوړي ويلى وه. نو او بيه دي پر اچوي چې پر غوړي رسيږي او سره وړدي سپوروى او بيادى او به كرار كرار څندى توى كړي دري واره چې د غسې وكړي نو غوړي پاك سوه» م، ط، ص ١٢٧» **مَسْئَلَه:** عسل كه مردار سوه نو او به دى ور واچوي او جوش دى وكړي چې او به يه هوا سي. او عسل پاته سي دري واره دى د غسې **مَسْئَلَه:** نوي لوښى د خاوره كه مردار سوي دري واره دى پر ينځي چې په هره پلا كې څاڅكى و دريږي نو پاك دي.» او زاړه لوښى په مطلق پريولو سره پاكيږي

**مَسْئَلَه:** هغه شئ چې ښوى وي او مردار سي لكه انداره، شيشه، هغه دى په څڅله پوري و موږي پاك سو. او نور لرگى كه مردار سو بيرته دي رنده پر تيره كړي. او زاړه لرگى په پريولو پاك كيږي.

**مَسْئَلَه:** كى په مردار و او بو كښې غوښې واچولې په ديگ كښې او بيا يه غوښې په هغو او بو كې جوش كړې. بيا ورته معلومه سوه چې او به خو مرداري وې. نو غوښې هنوز او مى وې او به دى څندى توى كړي او غوښې دې پرې مينځي. او كه غوښې په مردارو او بو كې پخې سوي بيا هغه غوښې ابدًا نه پاكيږي. او د امام ابويوسفؒ څخه روايت دى چې غوښې دى دري واره په پاكو او بو كښې جوش كړي او بيا دى ښوروا توى كړي غوښې پاكې دي» والفتوي على الاول وهو قول ابي حنيفهؒ» ط» **مُهِمَّه مَسْئَلَه:** كى چرگه يه حلاله كړي وه. د مخه تر نس څيرلو او مرداري ايسته كولو يه جوش كړه او بو ته ور واچوله چې بڼركى څندى وشكوي. او بايد لرى چې پريولې يه نه وُو د غه جوش كړه او بو ته واچوله. او د وه زمانه يه جوش ور كړي چې او به يه ور داخل ته د غوښو ور سيدلې. نو هغه د چرگي غوښې يا لري ابدًا نه پاكيږي.

مکتبه القراء ت والتجوید کوئٹه

الا عندَ ابی یوسفؒ کما مر» او کی دونه زمانه په جوش او بو کښی پرېښودله چې صرف او صرف ظاهر پو ستکی یه گرم شو او بنر کی سُستی سوی او بیا یه را وکښله. په دری واره بې ویلو سره یه غوښی پاکیږی» کذا حققه الکمال» ط ص۱۲۸ قَالَ المُصنفؒ»

## وَغَيْرُ الْمَرْئِيَّةِ بِغَسْلِهَا ثَلَاثًا وَ الْعَصْرِ فِي كُلِّ مَرَّةٍ

او پاکیږی غیر المرئیه نجاسَت یعنی پس له وَچیدو څخه چې په سترگو نه معلومیږی» لکه بولی په پرېولو سره دری وَاره. او پـه نښتیځلو سره دری وَاره. **پـوه سَـه**: چې اصلاً خو اعتبار غلبة الظن ته دغاسِل دی» لکن چونکه په دري وَاره پرېولو سره د زړه اطمنان حاصلیږی نو ځکه فقهاؤ دری واره شرط وگرځول **مسئله**: په پس خورده کښی دسپی چې په لوښی کی اوبه وَڅښی چونکه اختلاف دی د مذاهبو نو ځکه دری وَاره پرېولو د هغه لوښی واجب دی او اووه واره سره دخاورو وَهَلو مندوب دی» م»

**پوه سَه**: چې نښتیځل دری وَاره ظاهر الروایة دی» او بعض فقهاؤ وائی چې یو وَار نښتیځل کافي دی» وهَذا ارفق بالناس» **مسئله**: کی هَغه مُرداره جامه یه جاری اوبو کښی کښېښوَل بیا نو دری وَاره والی او نښتیځل نه غواړی. **مسئله**: که دیوه سړي جامه خومرداره وه لکن دده څخه یـه محَل او ځای د نجاست هیر شو نو ده یو ځای دهَغی جامی پرېولی که غور وکړی او که نه هغه پاکه سوه لمونځ ورسره روادی. لکن که پس له لمانځه ورته معلومه سوه چې هغه بل ځای وو» نو هغه دی پریمنځي او لمونځ دی را وگرځوی **فـائِدَه**: په دریم وار نښتیځلو کی دی هغه کوشش وکړي چې دجامی څخه نور څاڅکی نه را وزي. او معتبر قوت دغاسِل دی نه د بل چا. نو یوه کمزوره سړي چې جامه و نښتیځل او څاځلی کی بند سوه لکن که بل چا یو قوی هغه سړي دا جامه نښتیځلی وای نو ر څاځکی څند تویېدله نو دَغه جامه واوَل سړي ته پاکه ده نه و هغه قوي سړي ته» کذا فی الدر المختار»

**مشکل** د نرو کالی چې مردارسی او هَغه کالی چې وکښل پـه ښځویه منځي نو ښځه خو یه په خپل قوة سره و نښتیځی. لکن کی نرو نښتیځي نوري اوبه څندی تویږی نو دغه جامه وَ نر ته نه پاکه ده نه یه لمونځ په کښی روادی،



**علاج** ددی مشکل علاج دادی، چې د نر دجامې چې یو ځای مردارسی. نو دی دې هغه مردار ځای پخپله پرې منځی او بیا دې خیرې لیری کو لو د پاره ښځې ته ورکړي چې پرې یه منځي.

**فـائِدَه**: مشهوره داده چې کمبل یا سترنجي وغیره چې مردار سی یه جاری اوبو کښی دی یوه شپه ایږ دی. لکن دا تقدیر صرف او صرف ددفعي وسوسی دپاره دی ورنه مختاره داده چې هغه مردار کمبله وغیره په جاری اوبو کښی کښېږدی او به پرې بهیږی او سړي غالب گمان داوی چې نجاست څندی ولاړی هغه کمباه وغیره پاکه ده» ط ص۱۲۹ قـال

## وَتَطْهُرُ النَّجَاسَةِ عَنِ الثَّوْبِ وَالْبَدَنِ بِالْمَاءِ وَبِكُلِّ مَائِعٍ

او پاکیږی نجاست که مرئي وی او که غیر مرئي (لیدُنکی او نه لیدُنکی) د جامی او د بدن څخه یه اوبو سره» په ماء (اوبو) مطلقو سره خو اتفاقًا پاکیږی

## مُزِيلٍ كَالْخَلِّ وَمَاءِ الْوَرْدِ

او یَه مستعملو اوبو سره بناء پر صحیح چې مستعملی اوبه پاکی بولي. او د غه رنگه پاکیږی بدن او جامه لیعنی پر صحیح روایت یه هر هغه تری شی سره لکه اوبه، لکن چې هغه مائع پاکـوی، کما فی الهدایة وَالمَراقی» چې هغه مائع مزیل د نجاست وی نو پـه غورو او شیدو سره نه پاکیږي. ولې چې هغه پخپله نه وزی د بدَ ن او جامی څخه نو نجاست به څه رنگه وَباسی لکه سرکه، او دگل اوبه» **پُـوه سَـه**: چې دامام ابو یوسفؒ څخه روایت دی چې نجاست د بَدنه څخه بیله او بونه دی رَوا» نو ځکه مونږ صحیح و ئیله **پوه سَـه**: چې نجاست حکمی لکه بی او دسیا، یا جنابت بیله او بو یه بل مائع سره نه دی روا» **مَسئله**: که جامه نرمه وَه او غاسِل په خپل قوت سره وَنه نښتیځل چې خیرې به سی قاضیخان وائي چې نه پاکیږی. لکن فتوا پردی ده چې پاکیږی په سبب د ضرورت» دا مذهب د بحرالرائق او نهرفائق دی. **مسئله**: که د ښځی بَرتن کښی قی وواهی» نو د هغه کښی په نار و سره چې دری وَاره یه وَروی تَی پاک سُو. **مسئله**: که د سړي خوله په شرابو سره مرداره سوه. نو ناړي یه پرشونډانو او خوله تیري کړي او هغه یه نس ته شوه کړي خوله او شونډان یه پاک سوه» م ص۱۳۰

## وَيَطْهُرُ الْخُفُّ وَنَحْوُهُ بِالدَّلْكِ مِنْ نَجَاسَةٍ لَهَا جِرْمٌ وَلَوْ كَانَتْ رُطَبَةً

اوپاکیږی موزه اومثل دهغی لکه گوټ، چوټه، وغیره، په منبوَلو سره یعنی یا پر ځمکه یا پرخاوره د هغه نجاست نه چی هغه صورت لري. که څه هم دا نجاست لوندوی صورت وَالا نجاسَت هغه دی چی پس له وچوالی پرظاهر دموزی یا نه ویږ لکه غُول، او وینی اوکی پس له وچوالي اثرئه معلومیدی هغه نجس ذی جرم نه دئ. **پوهسه**: چی مصنف دعبارت معنیٰ دانه ده چی خُف وغیره بیله دَلکه (منبوَلو) نه پاکیږی بلکه معنیٰ یه داده چی په پریَولو په اوبُویا بَل مائع خو پاکیږی. بلکه په دَلک (منبوَلو) هم پاکیږی. او پرخلاف دموزی دی جامَه، اوبدَن، چی هغه په دلک نه پاکیږي» او د غه رنگه موزه وغیره د غیرذی جرمَه نجاست څخه بیله پریَولو نه پاکیږي.

**مسئله**: کی پرموزه وغیره بَولی وی او هغه لنده وَه سره خاوری پروا چولی نو هغه بَولی به جرم وَالا کی حساب دی چی په منبوَلو سره مثلًا پاکیږی. بحرائق **پوهسه**: چی په لاندی نجاست کی اختلاف دئ. د حضرة الامام الاعظمؒ څخه روایت دی چی لوند نجاست ترهغو چی وَچ نسی په منبوولو په ځمکه پوری نه پاکیږی»، وَلی چی منبوَول خو نجاست ډیره وی لیری کوی خو پیه نه. لکن اکثرمشائخ پردي دي چی لوند نجاست هم په دَلك سره پاکیږی. وهو المختار للفتوٰی. لکن په دلک کی دا شرط دی چی اثر دَ نجس به ورکیږی مگرنه کر متشکل وُو» والدلیل علی المختار قوله علیه الصّلوٰة والسّلام» اِذَا وَطِئَ احدکم الاذی بخفیه فطهورهما التراب» ترجمه: که چا لاندی کړی ترموزو نجاست لیعنی کهَ وچ وی اوکه لوند پس پاکوالی دموزو خاوری دی»، وَقوله علیه السّلام: چی خولے ورسی و مسجد ته نو د وگوری که چیری په چوټو پوری مرداری وَه هغه دی په ځمکه پوری وموږی او لمونځ دی په کښی وکړي» **پوښتنه**: نن صباولی خلك په بوټو او چوټو کښی لمونځونه کوی او سره دد ي چی دا فعل په کرا تو مَرا تو د آنحضرت صلی الله علیه وسلم څخه صادر سوی دی حتی په دی زمانه کی که څوك د بوټو سره بی ضرورته لمونځ وکړی خلك په بد نظر ورته



**جواب** چونکه په اوسنی زمانه کښی په اکثرو مساجدو او جامع گانو کښی مفروشات موجود دی لکه مسترنجی او یا غالی وَغیره. نو د هغو د چټل والی د سَببه خلګ د ګوتو و غیره سره لمونځ نه کوي. **مسئله**: په طحطاوی ص ۳ کښی وَائی چی مستحب دی لمونځ کول په پاکو چوټو کښی مثلًا» قال المصنفؒ.

## وَيَطْهُرُ السَّيْفُ وَنَحْوُهُ بِالْمَسْحِ

اوپاکیږی توره او مثل د توری لکه چاره، چاقو، زندان، او غوړ لوښی، او ځراد سوی لرګی او نوك. په مسح کولو سره په خاورو یا په ټکر. ولی چی په دغو شیانو خو نجاست نه ننوزي. نو پس له مسح نه پاتیږی مگر لږ د هغه نجاست او هغه ته اعتبار نسته»

**اِخْتِلَافُ الْعُلَمَاءِ**: بعض علماء وائی چی دغه شیان پس له مسحی څخه حقیقةً یعنی واقعی پاك سوه. نوکه په هغه چاره یا توره، خټکی یا هندوانه، وغیره مات کړی خوړلے یه روادئ. واختاره الاسبیجابیؒ. او بعض فقهاء وائی چی په مسحه کولو سره نجاست لږیږی نود هغو مذکوره شیانو خوړل حرام دی. او دا روایت مختاره د قدوری دئ، او روایت اول لائق بالاعتباردئ. ولی چی متونو د فقه شریف لوله پرهغه دي. وَالاحتیاط فی مذهب القدوریؒ. قال المصنفؒ فی المراقی چی فرق نه لري که نجاست لوندوی اوکه وچ وي. اوکه بولي اوکه غوَل. علی المختار للفتوٰی» ولی چی صحابؓ وو به کفار په تورو وژل او بیا بي په تورو یا خاورو مسح کړی. او لمونځ بی ورسره کول. او بعض علماء وائي چی دغه شیان د مسح کړی په لنده جامه که نجس وچ وُو» قال المُصنفؒ

## وَاِذَا ذَهَبَ اَثَرُ النَّجَاسَةِ عَنِ الْاَرْضِ وَجَفَّتْ جَازَتِ الصَّلٰوةُ عَلَيْهَا دُوْنَ التَّيَمُّمِ مِنْهَا

اوکه ولاړ سی اثر د نجاست چی بوی او رنګ دئ. د ځمکی څخه او ځمکه وچه سوه لمونځ پر روا دئ. پر دی ځمکه نه تیمم دد ي ځمکی څخه **پوهسه**: چی د ځمکی قید د دی د پاره

دی چې کالي اوبدن اوبوریاء، وغیره. په نمنځ چیدو سره نه پاکیږي. او هغه ځمکه چې وچه سوه نو لمونځ پر روادئ. لقوله علیه الصلوٰة والسّلام «اَیّمَا اَرضٍ جَفَّت زَکَتْ» یعنې هر ځمکه چې وچه سوه پاکه سوه» او تیمم نه دی روا پر هغه ځمکه روا» ولې چې خدای جل جلاله وائي: فَتَیَمَّمُوا صَعِیدًا طَیِّبًا، ای طاهِرًا، او بعض علماءٌ وائي چې تیمم هم پر روادی» او په صورت کښې دشك تیمم بلاشبهه روادی» ولې دطهارت د ځمکی اصلي حال دئ.

**مَسئَله**: که چیری یو ځا ځمکه په ډېرو یا په ښځو خښتو فرش کړي وه او هغه فرش مرداره سو هغه حکم د ځمکی لري یعنی په وچیدو باره د لمانځه پاك دی. او که چیری خښته یا ډېره په ځمکه کښی نروه نصب سوی هغه پر یوله غواړي په جفاف (وچوالی) نه پاکیږي كذا فی القهستانی، ومنیة المُصلی وشرحها للحلبیّ وابن امیر الحاج، ط ص۱۳۱.

**مَسئَله**: که چاقو یا توره، زنګ زده وه. او یا نقشونه په کښی وه هغه خواه مخواه پر یوله غواړي. **سَوال**: قدوری وئیلی دي چې دغه مذکوره شیان چې په لمر وچ سي نو پاك دي. او مصنفٌ مطلق وچ والی وایه **جواب**: د قدوری قول بناء پر عادت دی چې ددغو شیانو په وچیدو کی لمر دی. او په حقیقت کښی که دغه شیان په اور مثلاً وچ سی هم پاك دي. قَالَ المُصنفُ.

## وَيَطْهُرُ مَا بِهَا مِنْ شَجَرٍ وَكَلَاءٍ قَائِمٍ بِجَفَافِهٖ

او پاکیږی هغه شئ چې په ځمکه کښی وي» ددرختی څخه او کلاء یعنی واښه، شپیشتی شوتل وغیره چې په ځمکه کی ولاړ وي په وچیدو سره دهغو. **پوهَسَه**: چې مراد وچیدو څخه وچیده دهغه نجاست دی. یعنی چې لندوالی د هغه نجاست نه وي پاته» دامراد نه دئ چې هغه درخت یا واښه به وچیږي. او دا هم شرط دی چې اثر د هغه نجاست به هم نه وي پاته» دا مذهب مختار دی چې ددې شیانو حکم د ځمکی دئ. او بعض علماء وائي چې دغه شیان پر یوله غواړي»

اللهم اغفر لمؤلفه ولکاتبه ولوالدیهما وقد کتبه بیده فضل الحق حقانی غفرله



## وَتَطْهُرُ نَجَاسَةٌ اِسْتَحَالَتْ عَيْنُهَا كَاَنْ صَارَتْ مِلْحًا اَوْ اِحْتَرَقَتْ بِالنَّارِ

او پاکیږی هغه نجاست چې تغیر وخوري ذات د هغه لکه چې وګرځي مالګه او یا خاوری. او یا وسوځي په اور یعنی ایری سي. په دلیل د دې چې حقیقت د نجاست بدل سوا او هم دغه صحیح دی. او د دی مثال دا دی چې او به د انګورو په منګی کښی شراب سي. نو خو مردار دی» بیا چې مالګه دوه واچوي او سرکه وګرځي پاك دی» ولی چې حقیقت یه بدل سو»

**مَسئَله**: که دغولو خونې، تمتی، مکان، بخار وکړي چې څاڅکی څندی را لویدل او یاد حمام د بام څخه په سبب د بخار څاڅکی راتویږ دله. هغه مردار نه دی استحسانًا. او که ځیله د نجاست څاڅکی را تویږه دله هغه مردار دی» م» او د هغه مرغه چې غوښی یه مرداری وي. هګی یه خوړك وائي حلال ده. او بعض وائي مرداره ده» **فائِدَه**: د نجاست حقیقت چې بدل سی پاک دئ. غرض په کښی دا دی چې بیا نفع پر اخستل روا دئ. وهذا قول محمد وعلیه الفتوی، ط ص۱۳۲ خلافًا لابی یوسفٌ. قَال المصنفُ.

## وَيَطْهُرُ الْمَنِيُّ الْجَافُ بِفَرْكِهٖ عَنِ الثَّوْبِ وَالْبَدَنِ وَيَطْهُرُ الرَّطْبُ بِغَسْلِهٖ

او پاکیږی منی یعنی محل د منی، چه وچه وي، که ده نروی او که د ښځی، په ګروولو سره په لاس باندی چې متفرق سي دجامی څخه یعنی که څه هم نه وي ویږ. او د بدنه څخه، وهذا ظاهر الروایة» او که منی لنده وه بیا په پریولو پاکیږی» لقوله علیه السّلام اغسله رطبًا وافرکیه یابسًا» **پوښتنه**: دغه حدیث په دغو الفاظو سره په ثبوت نه دی رسیدلی ځکه کمالٌ وائي الله اعلم بصحته. **جوابٌ**: روایت د حدیث په معنی سره روادی کما فی اصول الحدیث. نو دغه حدیث هم معنی په صحیح حدیثو کی راغلی دی. په بخاری او مسلم کی راغلی د عائشه رضی الله تعالی عنها څخه چې دی به پریوله منی د جامی څخه د رسول الله صلی الله علیه وسلم، او په مسلم کی د عائشهؓ دا سی روایت هم راغلی دئ

لَقَدْ رَاَیْتَنِی وَاِنِّی لَاَحَلَّهُ مِنْ ثَوبِ رسولِ اللهِ صلی اللهُ علیه وَسلم یَابِسًا بِظُفُرِیْ،
ترجمه: ما ځان لیدلی دی چې ما به ګرووَل مَنی دجامی ځنځه دعلیه السلام چې وَچې به وَه په نوکه سره. او ورته روایت بزار او دارقطنی هم کړی دی. او هم زمونږ د مذهب سره امام مالکؒ او امام احمدؒ موافق دی» ط ص ۱۳۲ **مسئله:** دغه جامه چې مَنی ځندی وګرووَل سَوَل بیاکه په اوبو لنده سول څه حکم یې دی **جواب**» بیا هم پاکه ده، وَلی چې یو پاك شئ چې اوبه دی د بل پاك شی سره مَلاقی سی چې هغه جامه ده چې مَنی ځندی ګرووَل سوی ده نه مرداریږی لکه مرداره ځکه چې وَچه سی او پاکه سی او بیا لَنده سی نه مرداریږی، او بیا مردار پوست چې په لمر سره پوخ سی او بیا لوند سی نه مرداریږی

## حضرت ایوبی ته»

دافغان خدمت دی وکړ ایوبي
بیله شکه چې وارث یه د نبي
افغانان نن تړول په تا باندی ویاړکاندې
پرافغان، پرپاکستان پرجرمني.
تل دعادی د صحت دخدایه غواړی
شاګردان دی پرمسجد نبوي
چې دی دین وافغانانو ته آسان کړ
داخدمت دی رب قبول کړ کندهاری
داتاریخ به دی وی تل زمونږ پیاته
مؤلف، مصنفه، جهاني
زما شمله دسر اوچته ستا په مهر
داحسان دی تل ممنه حقاني



# فصل

## یُطْهَرُ جِلْدُ الْمَیْتَةِ بِالدِّبَاغَةِ الْحَقِیْقِیَّةِ کَالْقَرْظِ وَبِالْحُکْمِیَّةِ

پاکیږی پوست د مرداری - په حقیقی ښځولو سره لکه په باړکو، چې خلک غرکی او ژی په ښځوی او دغه رنګه په حکمی ښځوالی سره هم پاکیږي

**کَالتَّتْرِیْبِ وَالتَّشْمِیْسِ** لکه چې خاوری پر واچوی او وچ یې کړی. او یا په لمرتی کښیږدی او وَچ سي. **پوه سه:** چې دَفیل په پوستکی کی اختلاف دی لکه بحرالرائق چې وائی چې امام محمدؒ فیل نجس العین بولي لکه سرکوزی. نو په دباغ سره نه پاکیږی. او حضرت الامام الاعظمؒ امام ابویوسفؒ وائي چې حکم د پوست دَفیل حکم لکه د پوستو د نورو درنده ګانو دی لکه لیوه، پړانګ ګیدړه، او نور چې په دباغ ښځولو سره پاکیږي. وَقد افتیٰ بمذهبهما الفقهاءُ. او هم ودغه مذهب مصنفؒ په مراقی کی ټللی دی. او دلیل یه هم داوئیلی دي. چې آنحضرت صلی اللهُ علیه وَسلم سرا و بیږ مبارکه ږ منځول په داسی ږ منځ چې د فیل د هډوکی ځنځه جوړی سوی وَه.

**مسئله** : سَپِی د بعضی علماؤ په نیز نجس العین دی. لکن بحرالرائق دوهبانیه ځنځه نقل کوی چې سپی نجس العین نه دی. قال الطحطاویؒ وعلیه الفتوی» قال المصنفؒ

**اِلَّا جِلْدَ الْخِنْزِیْرِ وَالْاٰدَمِیِّ** منګر نه پاکیږی پوست د سرکوزی او ده انسان ولی د سرکوزی ذات نجس دی» او د انسان پوست په سبب د کرامت نه پاکیږی د استعمال د پاره، **پوه سه:** چې پوست د سرکوزی نه پاکیږی او نه استعمال روا دی. او پوست د انسان خو پاکیږی لکن استعمال یې روا نه دی په سبب د کرامت» وَلَقَدْ کَرَّمْنَا بَنِیْ اٰدَمَ» نو د دې ایت په مقتضی د کافر انسان د پوست هم دغه حکم دی. **سوال:** مصنفؒ ولی خنزیر تر آدمی د مخه ذکر کړی **جواب** چونکه دا ځای د اهانت وو نو ورسته او اول د آدمی ډیر زیبا دی.

**پوه سه:** چې استثناء دخنزیر او آدمي په یوه ډول (سبب) نه ده بلکه استثناء دخنزیر په سبب د نجاست او د عدم جواز د استعمال ده. او استثناء د آدمي په سبب ثاني سره نه په اول سره، ولې چې د تکریمه سره د آدمي منافات لري» نقله الطحطاوي عن الزیلعي في شرح الکنز»

## وَتُطَهِّرُ الذَّكَاةُ الشَّرْعِيَّةُ جِلْدَ غَيْرِ الْمَأْكُولِ دُونَ لَحْمِهِ

او پاکوي ذبح کول چې پر شرعي ډول وي پوست د غیر مأکول اللحم لکه ګیدړه، لیوه، پړانګ، وغیره نه غوښې یې پر اصح مذهب چې فتوی پرې

## عَلَىٰ أَصَحِّ مَا يُفْتَىٰ بِهِ

کول کیږي. **پوه سه:** چې مصنف قید د ذکاة شرعي وَوایه» په دې سره یې ذبح د مجوسي او تارك التسمیة عمدًا او ذبح د محرم سره د ښکار شي لره، یعنې هغه په ذبح کیدو نه پاکیږي» **فائده:** بحر الرائق د مجتبی او قنیه څخه نقل کړي دي چې ذبح د مجوسي او تارك التسمیة عمدًا طهارت پیدا کوي یعنې که د سره د هغه حیوان غوښې موجودې وي لمونځ ورسره روا دی» که څه هم خوړل کیږي نه» لکن په تنویر کې وائي چې شرط والي د ذکات شرعي هو الاظهر» هم د دې سببه مصنف وویل علی اصح ما یفتی به» قال المصنف»

## وَكُلُّ شَيْءٍ لَا يَسْرِي فِيهِ الدَّمُ لَا يَنْجُسُ بِالْمَوْتِ كَالشَّعْرِ

او هر هغه شئ یعنې د اجزاء څخه د حیوان ماسوا د خنزیر څخه چې جریان په هغه کښې نلري وینه

## وَالرِّيشِ الْمَجْزُورِ وَالْقَرْنِ وَالْحَافِرِ وَالْعَظْمِ مَا لَمْ يَكُنْ فِيهِ

هغه جزء په مرګ سره که څه هم بې ذکات شرعي وي نه مردار کیږي. لکه ویښته او هډوکي چې **دَسَمٌ** پرې پرې سوي وي» او ښکر، او نوك د حیوان او ډوکي چې چربي نه وي پکښې او د غر رنګه مشوکه د مرغه او یا نوکان د مرغانو، **پوه سه:** چې بوڼکه که د بېخ او با سي نو بېخ یې نجس دی، نو مصنف د دې سببه مجزور وویله» مر» ص ۱۳۵





**فائده:** مصنف په مراقي کې علت د طهارت د دغو شیانو، عدم وجود الدم په دغو شیانو کښې وئیلی دی» او صاحب هدایه عدم نجاست د دغو شیانو په سبب د دې نولي چې دغه شیان میتته نه دي. ولې چې میتته په عرف کې د شرعي شریف په حیوانانو کې هغه شي ته وائي. چې حیوة او ژوند یې زائل سي نه په فعل د بندګانو. او یا په فعل د بنده په وجه غیر مشروع باندې. او په مذکوره شیانو کې ژوند نسته نو نجس هم نه دي. قال المصنف

## وَالْعَصَبُ نَجِسٌ فِي الصَّحِيحِ

او پله د حیوان غیر مأکول نجسه ده، یعنې لمونځ نه دی ورسره روا. په صحیح روایت کې. ولې چې په دې ژوند په کښې سته چې د ژوندي حیوان څخه یې قطعه کوي خوږیږي. او بعض فقهاء وائي پاکه ده. دوی وائي چې پله د قسمه څخه د هډوکي ده چې سختته نه ده» قال المصنف، **وَنَافِجَةُ الْمِسْكِ طَاهِرَةٌ**

او هغه پوستکي چې په هغه کې په الهي قدرت سره مشك جوړیږي پاك دي که څوك لمونځ ورسره وکړي لمونځ یې روا دی» لکن مرداریږي په رسیدو د اوبو، مر» قال المصنف

## كَالْمِسْكِ وَأَكْلُهُ حَلَالٌ

لکه خودی مشك چې حلال دی اتفاقًا او خوړل د مشکو هم حلال دي

**سوال:** چې مشك حلال دی نو خوړل یې معلوم دي حلال دي نو څه حاجت دی و دې قول ته د مصنف چې» وَأَكْلُهُ حَلَالٌ» **جواب:** د املا زم غلطه ده ولې چې خاوري پاك دي او خوړل یې حرام دي. **تنبیه:** بعض ښځې یا نور د اولیاء کرامو وقبرو ته ورځي او د قبر خاوري یې خوري د احرام کار دئ. قال المصنف»

## وَالزُّبَادُ طَاهِرٌ تَصِحُّ صَلَوٰةُ مُطَيَّبٍ بِهِ

او زباد پاك دی او صحیح دی لمونځ د هغه سړي چې د زباد خوشبوئي یې په ځان پوري مښلي وي. ولې چې زباد د خپل طبیعت څخه او ښتی ده لکه چې مشك په اصل کې وینه ده **پوه سه:** چې زباد پروزن د سحاب دی» صاحب القاموس وائي چې زباد یوه خیره ده لاندې تر لکي د پیشي، یا د میش خرما» او د اخیره پر

برمخرج د غولوسره بیره پیدا کیږی چی رفته رفته ډیره سی. نو هغه حیوان ډیره بنوری نسو وروسته د هغه خیره په قدرت د خدای جل جلاله خوشبوئي وګرځي. بیا یه نو خلك په ټوکره کړا، کړا ، ځندي ټوله کړي او ځان او ځای په خوشبویه کوي» قاموس»

درویش باګناه محمد عبید الله ایوبي قندهاری نقشبندی سلیمانخیلی غفرله الباري والدیه چی مصنف کتاب الطهارات» پردی ځای پای ته ورساوه. او درویش حسب الطاقت د هغه شرح او ترجمه وکړه. همدا اوس مصنف په مقصود اصلي چی لمونځ دی شروع کوي» درویش عاصي د لوی دربار څخه غواړي چی وده ته د کاملی ترجمی او شرحی د باقی کتاب ورکړي» وما ذالك على الله بعزيز» او درویش د باري عزوجل د دربار څخه د ښه صحت او عافیت غوښتونکی دئ

## مناجات اقباسی

از محمد عبید الله ایوبی قندهاری. حضور جناب رب العزت الباری

الهی یا الهی ندارم جز امیدت تکیه گاهی ۲ زکن موجود کردی جمله عالم ترا باشد همیشه بادشاهی.
۳ بحق و حرمت ذات کریمت. مرا از ذنب خود کن عذرخواهی ۴ گناه من اگر از حد برون است نباشد پیش لطفت برگ کاهی.
۵ چنین مگذار حیرانم خدایا. بدرگاه تو آوردم پناهی ۶ ندارم توشهٔ راه قیامت بجز شرمندگی و روسیاهی.
۷ ز خواب غفلتم بیدار گردان. که شد عمرم در غفلت تباهی. ۸ فتادم در میان چاه غفلت برونم کن از این تاریک چاهی
۹ خلاصی ده ز شر نفس و شیطان. بسوی خویشتن بنمای راهی. ۱۰ ندارم طاعت مقبول درگاه بجز اشک ندامت آه و آهی
۱۱ بپوشان عیب این عاصی بغفلت. بحق آنکه شاهان را تو شاهی. ۱۲ دم آخر که جان از من برآید بکن از لطف خود سویم نگاهی
۱۳ بحق و حرمت قرآن اعظم. مکن شرمنده ام در حشر گاهی. ۱۴ شفیع آورده ام روی محمد کرم کن بر من گم کرده راهی

عبید گوید که چون فضلت عمیم است
بدان فضلت ببخش عاصی را گناهی.

اَللّٰهُمَّ اغْفِرْ لِمُؤَلِّفِهٖ وَلِشَارِحِهٖ وَلِمُتَرْجِمِهٖ وَلِكَاتِبِهٖ وَلِوَالِدَيْهِمْ اَجْمَعِيْنَ اٰمِيْن ثُمَّ اٰمِيْن

کتبه احقر العباد فضل الحق حقانی غفرله.





# كتاب الصلوٰة

دا کتاب دی په بیان کښی د لمانځه یعنی هر لمونځ چی وی که فرضی وی که نفلی وی.

**مقدمه: پوهه:** چی لمونځ هغه عبادت دی چی هیڅ شریعت د هغه څخه خلاص نه دی راغلی، او په هیڅ شریعت کی دا پنځه لمونځونه بل نبي ته نه دي جمع سوی نو دا مجموع پنځه لمونځونه د خواصو څخه د آنحضرت صلی الله علیه وسلم دي. او د غه رنګه اذان او اقامت او شروع د لمانځه په تکبیر سره او د غه رنګه رکوع په لمانځه کی او حرام والی د خبرو په لمانځه کی د خواصو څخه د امت مرحومه دی» قاله جماعة من المفسرین ط» وهکذا قال السیوطی فی انموذج العلوم» او امام طحاوي په شرح معانی الآثار کښی د عبید الله بن محمد او هغه د عائشة د اسی حدیث نقل کړی دئ. چی توبه څرنګه د آدم په وخت کښی د سپید و قبوله سوه نو ده دوه رکعته لمونځ وکړئ. نو دا صلوٰة الصبح سو:

**د لمونځو د اوقاتو تعین:** او څه وخت چی اسحق د حلالیدو څخه په فدیه خلاص سو او وخت ماپښین وو، نو ابراهیم څلور رکعته وکړه دا صلوٰة الظهر سو، او څه وخت چی عزیر پس له سل کاله د خوب څخه بیدار سو هغه وخت مازدیګر وو. نو ده څلور رکعته لمونځ وګذاره دا صلوٰة العصر سو، او د داؤد توبه په وخت کښی د ماښام قبوله سوه، نو ده څلور رکعتو لمانځه نیت وکړی د خدای پاك په قدرت د جهته څخه د ډیری ژړا د څلورم رکعته څخه عاجز سو نو په دري رکعته سلام وګرځاوه. دا صلوٰة المغرب سو، او اول چی د ماختن لمونځ سره دامت کړي دی هغه آنحضرت صلی الله علیه وسلم دئ.

**پوهه:** چی صلوٰة په لغت کی دعا ته وائي او په شرع شریفه کی دغو افعالو ارکانو مخصوصه وو نوم دی. **فائده:** لمونځونه په شپه د معراج کی چی لیلة الاسراء په بولي فرض سوی دي. دا مذهب دی د لوئی ډلی د محدثینو او د مفسرینو او د فقهاؤ او د متکلمینو دی، وهو الحق قاله القاضي عیاض ط» او معراج د آنحضرت صلی الله

علیه وسلم تر هجرت د مخه یو کال واقع سوی ده ،، قاله النووی اوابن حزم دا اجماع خبره بولي ،، او تاریخ د معراج یو جماعت د علماؤ وائي چې د لمړی خور ۲۷ شپه ده ،، لکن په بولوبنا رو کښې عمل پر دی دی چې د معراج نیټه ۲۷ د رجب ده ،، او په دی سره یقین کړی دی امام نووی ،،

**حکمت الٰهی**: لمونځ خدای جل جلاله په داسی وخت کښې فرض کړی دی چې د آنحضرت صلی الله علیه وسلم زړه مبارک په اوبو د زمزم سره پرې وله سُو او وی مبارک په حضرت مقدسه الٰهی کښې تراو وآسمانونو پورته سُو، لمونځونه په اول کښې پنځوس وه او بیا په دغه شپه کښې پنځو ته راسوه. په لار سو وند د حضرت موسیٰ علیه السلام تفصیل د دې موضوع په حدیث کښې د بخاری او د نورو محد ثینو په کتابو کښې موجود دی . نو د موجوده وخت او مکان په سبب د لمونځو د پر لوی فضیلت معلوم سُو. قال السعدی الشیرازی ؒ ــ چنان گرم در تیه قربت براند :: که در سدره جبریل ازو بازماند. بدو گفت سالار بیت الحرام :: که ای حامل وحی برتر خرام :: بگفتا فراتر مجالم نماند :: بماندم که نیروی بالم نماند. اگر یک سری برتر پرم :: فروغ تجلی بسوزد پرم :: . قال علیه السلام: ثم زج بي في النور فخرق بي سبعون الف حجاب آه والتفصیل فی روح البیان فی تفسیر قوله تعالیٰ سبحان الذی اسری بعبده الآیة

**پوهسه**: چې وتر واجب دی د پنځو فرضو څخه علاحده دی او د فرضو او واجبو ترمابین فرق هغه دی چې په اصول الفقه کی بیان سوی دی . یعنی چې په عمل کښې دواړه سره برابر دی چې پریښوونکی یــه مرتکب د ه کبیره گناه دی لکن پــه اعتقاد کښې فرق سته یعنی منکر د فرضو کافر دی او منکر د واجبو کافر نه دی.

**پوهسه**: چې د پنځو لمونځو یوه فائده شکر د منعم حقیقی رب جل وعلا دی. او بله فائده یه بخښنه ده لکه چې په حدیث کښې راغلی دی چې آنحضرت صلی الله علیه وسلم وی خلکو ته وویل چې تاسی خبر راکړی چې که چیری یوه واله په دروازه کښې دیوه ستاسی بهیږی او دی غسل په کښې کوی هره ورځ پنځه واره آیا د هغه سړی پر بــدن به خیره پاته سی خلکو ورته وویل یا علیه السلام ورته وویل چې دغه دی حال د پنځو لمونځو چې خدای محو





کوی په هغو سره گناهونه . **پوهسه**: چې اصلی سبب د لمونځو خطاب الٰهی دی. لکن سبب ظاهری په دا پنځه وختونه دی. قال المصنف ؒ،،

## وَيُشْتَرَطُ لِفَرْضِيَّتِهَا ثَلَاثَةُ أَشْيَاءَ الْإِسْلَامُ وَالْبُلُوغُ وَالْعَقْلُ

او شرط دی د پاره د فرض والي د لمونځو یعنی چې بنده پرې مکلف کیږی. دری شیان؟ یو اسلام دی ولی چې په عملی شیا نو هغه وخت سړی مکلفه کیږی چې مسلمان وی او بالغ والی دی یا په احتلام او یا په عمر. ولی چې کچنی مرفوع القلم دی یعنی مکلف نه دی. او بل عقل دی یعنی لیونی به نه وی ولی چې تکالیفی الهیه په عقل پوری تړلی دی.

**تنبیهانه فائده**: امام طحطاوی ؒ په ص ۱۳۸ کښې وائي چې مختاره خبره داده چې آنحضرت صلی الله علیه وسلم د مخه تر نبوت په شریعت د هیڅ نبی مکلف نه وو. ولی چې دی مبارک د مخه تر رسالت په مقام او رتبه کی د نبوت وو او د هیڅ نبی امتی نه وو. لکن په الهام صادق او په کشف لائق به وده مبارک ته بعض اعمال د شریعت ابراهیمی کشف کیدله او په هغه به یه عمل کاوه ،، قال المصنف ؒ:

## وَتُؤْمَرُ بِهَا الْأَوْلَادُ لِسَبْعِ سِنِينَ وَتُضْرَبُ عَلَيْهَا لِعَشْرٍ بِيَدٍ لَا بِخَشَبَةٍ

او امر کړه کیږی به په لمونځو سره اولاد که نر وی او که ښځې پر اوو کاله یعنی چې اوه کاله یه عمر سی. او وهل کیږی به پر لمونځو یعنی پرته کولو چې د لسو کالو سی. لکن په لاس یعنی په چپلاخه یا په سوک نه په لرگی یا لکړه وغیره د وهلو په لاس سره سبب دا دی چې زجر سی د ترک څخه د لمانځه او د بیلما نځی سره عادت نه سی. او په لرگی چې نه وی رفقا وشفقة علیهم ،، او تر دری ضربی بالا دی ،، وهي وفی الحدیث الصحیح، قال علیه الصلوٰة والسلام: مُرُوا أَوْلَادَكُمْ بِالصَّلوٰةِ لِسَبْعٍ وَاضْرِبُوهُمْ عَلَيْهَا لِعَشْرٍ وَفَرِّقُوا بَيْنَهُمْ فِي الْمَضَاجِعِ " تاسی امر کوی اولاد ستاسو ،، په اوه کلنۍ کښې او تاسی وهی دوی پر لمانځه کولو باندی ،، په عمر کی د لسو کلو. او دوی سره جلا کړی په

ځایوکی دېریوتو **پوه سه**: چې دا اوهل یه واجب دی کما فی تنویر الابصار" ط ، قال

## وَاسْبَابُهَا اَوْقَاتُهَا وَتَجِبُ بِاَوَّلِ وَقْتِهَا وُجُوْبًا مُوَسَّعًا

او اسباب دَدغو پنځو لمونځو د پنځه وختونه دي. او واجبېږي لمونځونه په اول دوخت سره مگر وجوب یه فراخه دئ. یعني تر اخیر پورې دَ وخت، حتیٰ چې په اول، دوهم، دریم وخت کی اداء نه کړي دَ تارك الصلوٰة قدر گناه یه نه ده، مطلب دا دی چې تر اخیره دَ وخت یه ځنډول روادی. لکن په اخیرکی دَوخت اداء احتمالاً لازمه ده چې تاخیر تر هغه گناه کبیره ده"

**فائده**: په نورالانوار او نورو معتبرو کتابو کښې وائي چې اکثر مشائخ د فقه او اصولو بردی دي. چې سبب ده لمانځه هغه جزء دی دَوخت چې په هغه پورې اداء جوړت سی مطلقاً که اول وی او که دوهم، وغیره. نو که سړی دَ دخول سره دَوخت فی الحال لمونځ وکړي نو هغه جزء اول سبب دده دَ لمانځه دی. او کی په اول جزء کښې اداء نه کړي نو سببیت وه دوهم جزء ته نقل کیږی ثم وثم الی اخر الوقت. نو بیا اخیر دوخت سببیت ختم سو حتماً به لمونځ اداء کوي. او کی فرضاً په اخیر وخت کښې هم نه کی اداء او وخت وَوَتی بیا د قضاء دَ پاره ټوله وخت سبب دَیٔ.

**ددی فائدی تعریفات**: که څوك په اول کښې دوخت لیوني وو او یا بیهوشه وو او په اخیر کښې دوخت پرسد سو. هغه لمونځ پر لازم دی، ولی چې سبب یه موجود دی. او ښځه حائضه یا نفساء وه او په اخیر کښې دوخت پاکه سوه لمونځ پر لازم دی. او که نابالغه کشنې بلوغ ته ورسیدی په اخیرکی دَوخت. او دَغه رنگه که مرتد مسلمان سو په اخیر کښې دوخت ، که څه هم په دی ټولو صورتو کښې اخیر د وخت ناقص لکه د ماز دیگر وخت په نیز د ټولو والي دلمر، نو په دی ټولو صورتو کښې که سړي لمونځ اداء کړي ذمه فارغ سوه. او کی نه کی اداء د قضاء دَپاره یه ټوله وخت سبب دی. د دې نتیجه دا ده که دَغو خلگو د ماز دیگر لمونځ په وخت مکروه کښې اداء کړي غاړې خلاصی دی بیله کراهت.. او که ما سوا دَغو خلگو د ماز دیگر لمونځ وځنډه وی بیله عذره تر وخت مکروه پورې





او بیا یه په وخت مکروه کښې اداء کړي خلاصی دی لکن سره د کراهته. او که دغه نوم ورځی د ماز دیگر لمونځ قضاء کړي. نو د هغه قضاء په بل وخت کی به په کامل وخت کښې او کړي ولی چې وخت وونږی بیا خو سبب د قضاء ټوله وخت دی او ټوله وخت د ماز دیگر خو کامل دی په اعتبار د اکثر اجزاء، نو د غه لمونځ کامل واجب دی لازم سو، نو په وخت ناقص کښې قضاء نه ده صحیح" **پوه سه**: چې مراد د اخیر څخه وخت په نیز د اکثر فقهاؤ په دغو مسئلو قدر دیوی تحریمی دئ. وقیل غیر ذالك والتفصیل فی کتب الاصول"

**فائده**: که څوك تارك الصلوٰة وو. او باك یه نه په کاوه. فاسق دی حکومت اسلامی دی بندی کړي څو پر لمانځه استقامت کوي. قاله السید وقال الامام المحبوبیؒ یضرب حتیٰ یسیل منه الدم" تر هغو دی وهی چې وینه ځندی ولاړه سی، او په لمانځه کښې نیابت یعني وکالت نسته" قال المصنفؒ

## وَاَوْقَاتُهَا خَمْسَةٌ وَقْتُ الصُّبْحِ مِنْ طُلُوْعِ الْفَجْرِ الصَّادِقِ

او وختونه د پنځو لمونځو پنځه دي. یعني اول وخت د سهار د لمانځه دی د ابتداء څخه د راختو د صادقو سپیدو. بیا تر نږدې د مخه د راختلو د لمر -

## اِلٰی قُبَیْلِ طُلُوْعِ الشَّمْسِ

" **سوال**: مصنفؒ باید اول د ماپښین وخت بیان کړی وای. ولی اول لمونځ چې جبرئیل و آنحضرت صلی الله علیه وسلم په جماعت ورکړئ. هغه دَ ماپښین لمونځ وو کما فی البخاری وغیره. **جواب**: هو لکن مصنفؒ چې د سهار د لمانځه وخت دَ مخه کړي په دې سبب چې په اول او اخیر کښې د هغه اختلاف نسته بخلاف الصلوٰة الأخر" کما سیأتی" ویمکن الجواب: په دی سره چې آنحضرت صلی الله علیه وسلم چې اعرابی ته دَ لمونځو وختونه و، ښوول شروع د سهار د لمانځه دوخت څخه وکړه "کذا فی البنایه" والاحوط فی الجواب" دا ده چې د سهار لمونځ اول د پنځو لمونځو دی په فرض والی کښې" په اتفاق د علماوو ولی چې هغه د سهار لمونځ دَ لیلة الاسراء دی" لکن علیه السلام د هغه قضاء نه راوړه ولی چې وجوب الاداء موقوف دی پر علم دَ کیفیت او د کیفیت

علم ورسُول الله صلی اللهُ عَلیه وَسَلم ته په امامت د جبرئیل علیه السلام حاصِل سُو.

**پُوه سَه**: چې صبح صادق هغه نُور دئ چې په کناره کی د اسمان نشرسی په پساره" او صبح کاذب هغه نړاده چې تر افق لوړه پیدا سِی او بیا بیرته ورکه سی. **مسئله**: په مجمع الروایات کی د امام حلوانیؒ څخه نقل کړی دئ چې اعتبار په حق کښې د لمانځه او روژی اول لره د ظهور د رڼا دئ. او د حضرت الامام محمّد څخه روایت دئ. چې اولی لمعته اعتبار نسته بلکه معتبر انتشار فی الافق دئ. لکن احتیاط په قول اول کی دئ. او په قول ثانی کښې وسعت دئ" وَالله اعلم وَعلمه اتقن وَاحکم"

**پوه سه**: چې اهل الریاضی لکه تصریح او شرح چغمینی وَالا وائی چې صُبح کاذب او صادق ده تاثیره څخه د نړدی والي د لمر دئ وافق شرقیه ته" او امام همام فخر الدین رازیؒ سره د دی چې په ریاضی وو کښې یدطُولیٰ لري "داسِی وَائی چې صُبح یو نُور دی چې خدای جَل جلاله په پیدا کوي. په دغه وخت مخصُوص کی او نه دئ د غه نور د تاثیر څخه د لمَر او نه هم د جنس څخه د نور د لمر دی" قهستانی" **پوه سه**: چې امام طحطاویؒ ساعات د ورځې په دغو نومانو یاد کړی دی. یعنی د عُرفی وَرځی"، الشروق، البکور، الغدوة، الضحیٰ، الهاجرة، الظهیرة الرواح، العصر، العصیرة، الاصیل، العشاء، الغروب، او د شپې د ساعتو نومان یه په دی دَوله اوړی دي، الشفق، الغسق، الغدوة، العتمه، السدفة، الجنح، الروبة، الزلة الهُبی، السحر، الفجر، الصبح، فعلیك بالتقسیم علی اللیل والنهار" قَالَ المصنف"

## وَوَقتُ الظُّهرِ مِنْ زَوَالِ الشَّمسِ اِلیٰ اَنْ یَّصِیرَ ظِلُّ کُلِّ شَیٍٔ

او دوهم وخت د مَا بینین دی چې هغه د زوال څخه د لمر ما بین څخه د اسمان شروع کیږی، بیا تر هغه وخته پورې

## مِثلَیهِ اَوْمِثلَهٗ سِوَی ظِلِّ الْاِستِوَاءِ وَاختَارَ الطَّحَاوِی اَلثَّانِی

چې سایه د هر شی دوه مثله د هغه شی ګرځي او یا یو مثل د هغه

## وَهُوَقَولُ الصَّاحِبَین

پر دواړه تقدیره ما سوا د هغه سایه څخه چې په وخت کښې





د زوال د لمر موجوده وي. **فائدَه**: چونکه ډیره آباده محکه د خط استواء څخه شمالی واقع ده" نو په وخت کښې د رسید او مختاره کړې طحاویؒ دوهم منهب او د اقول د صاحبینو ۲ دئ ۱۲ د لمر و نصف النهار ته څه ناڅه سایه موجوده وی د غی سایې ته فـیٔ الزوال وَائي، او دا سَایه په شهور شمسیه وو کی په طول او قصر سره مختلفه کیږی" کما فی کتب الریاضی"

## دَزوال آسانه ښوَونه

اول محکه حسب الطاقت ښه بَرابره کړه" او بیا یو سم لرګی په هغه محکه کښې ښخ کړه. نو وګوره چې سر د سائ د لرګی چیرې دی په هغه عَلامه وکړه. او بیا یو وار وګوره که سایه د عَلامی د خوا څخه د لرګی و خواته مخ په کمیدو وه نو لمَر و مابین ته د اسمان چې نصف النهار ورته وَائي نه دی رسیدلی او زوال هم نه دی سوی. او چې چیری سَایه حسب الظاهر و دریده. دا وخت د استواء بولي او قیام الظهیره یه هم بولی. او رسیده وَنصف النهار ته یه هم بولي. بَاره د سَایه پر سَر علامه وکړه او د هغی علامی څخه خط کش کړه تر بیخ د لرګی و د غی سَایې ته فيء الزوال وَائي او سایه اصلی یه هم بولي.

بیا چه سَایه د هغه خط څخه د مشرق و خواته وَلاړه" لمَر زوال وکړی او اول وخت د مَا بینین داخِل سُو" کذا فی الظهیر، والبحر الرائق، والطحطاوی. وشرح الجغمینیٔ وغیره." **پوه سه**: چې دَغه بیان د پاره د آسانی پر مسلمانانو دئ. ورنه حقیقت علم د استواء او د زوال په خدای جل شانه پورې خاص دئ" په صحیح حدیث کښې رَاغلی دی چې یو وخت جبرئیل امین علیه السلام په وخت کښې د غرمي په مجلس انور کښې د رسُول کریم صَلی اللهُ عَلیه وَسَلم حاضر وو. علیه السلام پوښتنه څنډی وکړه چې لمَر زوال کړی دی که نه! جبرئیل علیه السلام ورته وَوَیل لا نعَم، یَا هُو. علیه السلام و دی جواب ته حیران سُو. پوښتنه یه څنډی وَکړه. جبرئیل علیه السلام ورته وو یـل چې په وخت کی د تلفظ د" لَا "، لمر زوال نه وو کړی. چې زه د دَغه لفظ څخه فارغه سوم، لمر زوال وکړی. نو د دې وَجهی څخه متصل په" لَا " پوری مې نَعَم" وو ایه.

اَللّٰهُمَّ اغفر لمؤلفِهٖ وَلکاتبِهٖ وَلوالدَیهما اٰمین"

**بنهانه فائده** : یوه سه چې دامام اعظمؒ څخه په اخیروخت کې د ماپښین دوه روایته راغلي دي. اول روایت دا دی چې اخیروخت د ماپښین تر هغه وخته پورې دی چې سایه دشي د هغه ویوه مثل ته نژدې سي. یعنې پر یوه مثل با ندې سې سوا د فئ الزوال د ماپښین د لمانځه وخت ختم سُو. د مازدیگر اول وخت شروع سُو" په دې روایت سره امام ابي یوسفؒ. او امام محمدؒ احسته کړې دی یعنې فتوا یې په ورکړېده او امام ابوجعفر الطحاویؒ چې اعلم د خلګو دی په مذهب د ابوحنیفهؒ وائي: وبقولهما نأخذ» او په قول د یارانو مونږ عمل کوو. وفی البرهان قولهما وهو الاظهر»

اوبل روایت د حضرت امام اعظمؒ څخه چې روایت یې حسن بن الزیادؒ کړې دی داسې راغلی دی چې اخیروخت د ماپښین ترنژدې پورې ددې ده چې سایه د شي دوه مثله د هغه شيُ ګرځي بیله سایه اصلي اتردی. یعنې چې سایه دوه مثله ته ورسیده د ماپښین وخت تیرسُو د مازدیګر وخت داخل سُو. مصنفؒ په مَراقی الفلاح کې داسې وائي: وهو الصحیح وعلیه اجل المشائخ والمتون» یعنې دغه روایت صحیح دیُ او پر دغه روایت باندې ډیرمشائخ دی او متون کتابونه د فقهي حنیفي دي. او مصنفؒ په د صحت دا دلیل وئیلی دی» لتعارض الادلة» یعنې په اخیروخت کې د ماپښین احادیث نبویه متعارض دي. هغه تعارض داری چې په یوه حدیث کې چې روایت یې امام بخاریؒ او مسلمؒ کړې دی داسې راغلی دي» اَبْرِدُوا بالظهر فان شدة الحر من فیح جهنم» ترجمه: تاسې په خُنکۍ کې کوئ د ماپښین لمونځ ولې چې سخت ګرمي د جوشه څخه د جهنم ده» یعنې وبدن ته د سرې تاوان رسوي. او په دې کې شک نسته چې سخته ګرمي د عربو په وطنو پر یوه مثل باندې ده. او په بل حدیث کښې چې متفق علیه دی. او اوبن د حدیث دی چې جبرئیل علیه السلام ته د لمونځو وختونه ورښوول په اوله ورځ کې چې سایه تر یوه مثل تیره سوه دستي د مازدیګر لمونځ ورکړ نو چون دغه دوه حدیثه متعارض دي. او دا قانون شرعي دی چې یو شيُ چې په یقین سره ثابت سي په شک سره نه باطلیږي. نو بناءً علی هٰذا د ماپښین د لمانځه وخت خو پس له زواله په یقین او اتفاق سره داخل وو او دیک چندی سره وپای ته په رسید و کښې شک پیدا سو





شک سره وخت نه ووزی نو وخت تر دوچندی ته قریب باقي دیُ.

**ګرانو مسلمانانو** : که څوک غواړي چې زما د ښین لمونځ او د مازدیګر لمونځ په اتفاق د ائمهؒ وو د مذهب صحیح سي. نو داسې دی وکړې چې د ماپښین لمونځ دې یک چندی کښې اداء کړې. ولې چې امام اعظمؒ خود ماپښین لمونځ په یک چندی کښې باالکل صحیح بولي. او یاران خو یې صحیح بولي چې بولي. او بیا دې د مازدیګر لمونځ وروتردوچندی وکړې. ولې چې وروسته تردوچندی خو مازدیګر لمونځ په اتفاق روادیُ.

**بشارت** ، په اکثرو ښارو کښې د افغانستان د علماوو خدای جل جلاله پردوی رحم وکړې رواج همدا عِنبی دي. **شِکایت** : چونکه په حرمینو شریفینو کښې د مازدیګر لمونځ متصل د یک چندی په تیریدو سره اداء کوي. هغه کسان د حنیفیانو څخه چې سخت دریږه دي حتیٰ بعض عُلماء د دغه د مازدیګر لمونځ په دغه لوی جماعت کښې چې په لکو مسلمانان په کښې حضور لري» په جماعت نه کوي دویُ وائي چې دا خو د ماپښین وخت دی نو د مازدیګر لمونځ نه دی په کښې روا »

**دَرویش وائي** : چې که دغه د مازدیګر لمونځ په دغه وقت مذکور کې حاجیان صاحبان اداء کړې یک لخته د مذهب څخه وتل دي. ولې تاسې د څخه واورېدل چې دامام اعظمؒ څخه دوه روایته موجود دي. نو څه حَرَج او ګناه ده که سړی په مُراعات د فضیلت د دې لوی جماعت او بیا د حرمینو په مسجدینو کې. په روایت دامام ابویوسفؒ او امام محمد بن الحسن الشیبانيؒ عمل وکړيُ. ترڅو چې بیرته خپل وطن ته راځي. دا خو د درویش خپله نظریه وه نور د خلګو خوښه ده» وَ لِلنّاسِ فیما یَعْشَقُونَ مذاهبُ» د تعصب لار نه ده» لکه یو کتاب فروش چې په باره کښې د شهادة الحسنین چې د فقیر تصنیف دی دغه د تعصب لار خپله کړه. او دونه دروغ او بهتانونه یې په درویش وئیلی دی» چې هر عالِم په هغه پوهیږي. دده خیال خو دا و چې زه به په دې بهتانو سره خپل نوم لوړ کړم. لکن هم دا اوس دلویه څجالت سره او پښیماني سره مخامخ دی" ولې چې درویش د خپل کار تفویض و خدای جل جلاله ته کړې. او کوي یې. او د ښمنانو څخه خپل مکافات

نه غواړي. بلکه د مکافات وکیل یه هم رب جل سلطانه دئ. او د دغه کتا بفروشۍ خجالت او شرمندګۍ چې د طالبانو او نورو مخلصانو د خوا پرده تیره سوې یا به تیریږي د بیان وړ نه ده. وَعَذَابُ الْاٰخِرَةِ اَشَدُّ وَاَبْقٰى» قَالَ المصنفؒ.

## ووَقْتُ الْعَصْرِ مِنْ اِبْتِدَاءِ الزِّيَادَةِ عَلَى الْمِثْلِ اَوِ الْمِثْلَيْنِ

او ابتداء د وخت د مازدیګر د ابتداء څخه د زیاتوب د سایه د شئ ده پر یوه مثل او یا دوه مثله یعنې پر اختلاف د مذهبینو بیا تر وخته پورې د لویدو

## اِلٰى غُرُوْبِ الشَّمْسِ

د لمر. ولې چې په صحیح حدیث کښې راغلی دی» مَنْ اَدْرَكَ رَكْعَةً مِنَ الْعَصْرِ قَبْلَ اَنْ تَغْرُبَ الشَّمْسُ فَقَدْ اَدْرَكَ الْعَصْرَ» او هغه چې د حسن ابن الزیادؒ څخه روایت دی» چې لمر ژړ سود مازدیګر وخت خارج سو هغه محمول پر وخت د اختیار دی یعنې مختاره او بنه وخت یه تیرسو.

**پوښتنه:** چې مراد د غروب څخه د لمر لویدو د ټوله ټیکی د لمر ترافق دي. لکن په حس کی. ولې چې غروب د لمر ترافق په واقع کی په علم کښې د خدای ده جل جلاله. «والتکلیف بحسب الوسع والطاقة» وعلامة ذالك اقبال الظلمة من جانب المشرق کما فی التحفة»

**مسئله:** که یو سړی پر ډیره لوړه مناره ناست وو. او لمر یه لیدی او د ښکته خلګو څخه لمر پټ سو نو مناری والا ته روژه ماتول نه دی روا او لاندی خلګو ته روا دی» کذا فی الخلاصة»

**مسئله:** که لمر ولویدی او بیرته خرق العاده راپورته سو. د مازدیګر وخت راګرځی او که نه!

**جواب:** هو راګرځی کما فی الدر المختار» په دلیل د هغه حدیث چې آنحضرت صلی الله علیه وسلم» یوه ورځ مازدیګر چې لمونځ کړی وو. په وخت کښې د نزول د وحی سر یه پر ورانه د حضرت علی کرم الله وجهه ایښی وو او حضرت علیؓ د مازدیګر لمونځ نه وو کړی. څه وخت چې علیه السلام بیدار سو حضرت علیؓ عرض ورته وکړ چې ما د مازدیګر لمونځ نه دی کړی او لمر راسه ولویدئ. علیه السلام په دغو الفاظو دعا وکړه: اَللّٰهُمَّ اِنَّهُ كَانَ فِي طَاعَتِكَ وَطَاعَةِ رَسُوْلِكَ فَارْدُدْهَا عَلَيْهِ فَرُدَّتْ عَلَيْهِ حَتّٰى صَلَّى الْعَصْرَ» یا الله





په تحقیق سره علیؓ په طاعت کی ستا او په طاعت د رسول ستا وو لیس را وه ګرځوی لمر بیرته راوختئ حتی چې علیؓ د مازدیګر لمونځ وکړئ» او دا حدیث طبرانی په سند حسن سره روایت کړی دی» او امام طحاویؒ هم صحیح بللی دئ. او قاضی عیاضؒ هم د صحت تاثه پر لګولی ده: نو سبط ابن الجوزیؒ خطا وتلی دی چې دا حدیث یه په موضوعاتو کښې راوړی دی» کذا فی النهر»

**خدای لره دی حمد وي:** ګرانو ورونړو د رولیش هغه خبره چې په دغه عنوان یه وکړه. ګرانو مسلمانانو آه ډیره په وار خطایۍ او بیره سره هغه وخت وکړه ولی چې د فقیر دا خیال وو چې دا د ده نظریه ده» لکن وروسته فقیر روایت د اسدؒ چې ملبسوط نقل کړی دی ولیدی چې د هغه عبارت دا دئ. اذا خرج الوقت بصیرورة الظل مثله لا یدخل وقت العصر حتی یصیر ظل کل شئ مثلیه فبینها وقت مهملٌ فالاحتیاط ان یصلی الظهر قبل ان یصیر الظل مثله والعصر بعد مثلیه، لیکون مؤدیًا بالاتفاق، انتهی. و اختاره الکرخی وقال شیخ الاسلام انه الاحتیاط کما فی السراج» ط» قَالَ المصنفؒ.

## وَالْمَغْرِبُ مِنْهُ اِلٰى غُرُوْبِ الشَّفَقِ الْاَحْمَرِ عَلَى الْمُفْتٰى بِهِ

یعنې اول وخت د ماښام د غروب څخه د لمر دی بیا تر نږدی پورې د لوید و د سره شفق پر هغه مذهب چې په هغه سره فتوی ورکړه کیږي. **پوښتنه:** چې په احادیثو مبارکه وو کی لفظ د شفق راغلی دی، لکن شفق په لغت کی هغه سرخی ته هم وایې چې پس له غروبه څخه د لمر په افق کښې د مغرب ښکاریږي. او هغه سپین والی ته هم وایې چې وروسته تر شفق احمر په افق مغرب کښې لیدل کیږي» اذا عرفت هذا، نو...

**پوښتنه:** چې حضرت الامام الاعظمؒ وایې چې د ماښام د لمانځه وخت تر نږدی پورې د شفق ابیض د لوید و اوږدی دئ. او هم دا قول دی د ابوبکر الصدیقؓ او د عائشهؓ صدیقی او د انس بن مالکؓ او د معاذ بن جبلؓ او د ابی هریرهؓ او یو روایت د ابن عباسؓ څخه هم دئ او د غه ته عمر بن عبدالعزیزؓ او امام اوزاعیؒ او داؤد الظاهري تللی دئ.

اود اهل لغتو څخه المبرد او ثعلب هم تللی دی. او شفق احمر مذهب د صاحبینو دی، وهو روایة عن الامام الاعظم ایضًا. او په بعض کتابو کښی وائي چې حضرت الامام وقول ته دیا رانو رجوع کړی ده، او مصنف په قول دیا رانو فتوی ورکړیده. حتی په مراقی کی وائي: وعلیها الفتوی، وقال وهو مروی عن اکابر الصحابة رض. لکن سره د دې بحر رائق وقول ته دا امام اعظم ډیر کلکه ترجیح ورکړیده: فارجع الیه،

او کمال الدین بن الهمام هم وقول د حضرت الامام الاعظم په ډیر او بدده عبارت ترجیح ورکړیده. او حضرت الامام الطحطاوی هم د مذهب د امام اعظم طرف دار معلومیږي. حتی پر دی قول د مراقی « وهومروی عن اکابر الصحابة رض » یې رد کړی دی په دے الفاظو سره، قد علمت ان مذهب الامام مروی عن اکابر الصحابة رض نساءً ورجالًا، او پر دې قول د مراقی، وعلیه اتفاق اهل اللسان، یې داسی رد کړی دی. قد علمت ما اختاره المبرد وثعلب وهما من اکابر اهل اللغة، او پر دې قول د مراقی چې وائي: و نقل رجوع الامام الیه داسې رد کړی دی چې دا صیغه د ضعف ده. پس پر رجوع د امام یقین نشته، قال المصنف

## وَالْعِشَاءُ وَالْوِتْرُ مِنْهُ اِلَى الصُّبْحِ

او ابتداء د وخت د ماخستن د لمانځه او وترو د غروب څخه د شفق احمر یا ابیض دی علی الاختلاف الذی مر ذکره، بیا تر نن دی پوری د صبح یعنی صبح صادق **پوه سه**: چې په ابتداء کی د وخت د ماخستن د لمانځه خو اختلاف سته. مګر پای د وخت یې په اجماع سره قبیل الصبح دی.

**پوښتنه**: په حدیث کی د امامت د جبرئیل علیه السلام داسی راغلی دي چې په دوهمه شپه جبرئیل علیه السلام د ماخستن لمونځ په ثلث اللیل کی و انحضرت صلی الله علیه وسلم ته په امامت ور کړی. او مصنف وخت د ماخستن د لمانځه وخت تر سپیده پوری بولي. مراقی د دی پوښتنی په جواب کی داسی وائي: وحدیث امامة جبرئیل لاینفی ماوراء وقت امامته، یعنی حدیث د جبرئیل دا نه نفی کوي چې وروسته تر وخت د امامت د ده دی نور وخت هم وي. ولې چې اجماع الامة المرحومة بیان تاو اوریدی.





او دلیل د وجوب د وترو هغه حدیث دی چې آنحضرت صلی الله علیه وسلم فرمائي ان الله قد زاد کم صلٰوةً الا وهی الوتر فصلوها بین العشاء الاخرة و الصبح. او په دې حدیث سره تعیین د وخت د وترو هم وسو. یعنی چې تر ماخستن تر لمانځه د مخه نه دي روا فلذا قال المصنف

## وَلَا يُقَدَّمُ الْوِتْرُ عَلَى الْعِشَاءِ لِلتَّرْتِيْبِ اللَّازِمِ

یعنی نه د مخه کړه کیږي صلٰوة الوتر پر لمانځه د ماخستن په سبب د ترتیب لازم په مابین کښی د دغو دوو لمونځو یعنی چې د ماخستن لمونځ پر وترو د مخه دی. لکه چې مذکور حدیث دلالت پر کوی.

**فائده**: د وترو لمونځ واجب یعنی فرض عملی دی په نیز د امام اعظم او سُنت مؤکد دی په نیز د یارانو، او په نیز د یارانو وتر د ماخستن د لمانځه سره په ابتداء کی نه دی شریک بلکه اول وخت د وترو پس له ماخستن د لمانځه څخه شروع کیږي. نو وتر د دوی په مذهب کی لکه دوه رکعته سنت د ماخستن دي،

**د دی اختلاف فائده**: که دیو سړي د ماخستن لمونځ هیر وو او ده چې ویل ما کړی دی نو وتر یې وکړه نو وروسته یې د ماخستن لمونځ ور په یاد سو نو هغه یې هم اداء کړي، نو په نیز د امام اعظم هغه د مخه وتر کافي دی. او ترتیب په سبب د عذر د نسیانی ساقط سو. او په نیز د یارانو وتر به بیرته راو ګرځوي. ولې تبعه د ماخستن د لمانځه دی او وخت یې هم ور وسته د ماخستن تر لمانځه داخلیږی نو هغه د مخه تر وتر قبل الوقت دی اداء کړي، قال المصنف،

## وَمَنْ لَّمْ يَجِدْ وَقْتَهُمَا لَمْ يَجِبَا عَلَيْهِ

او که چا نسوای پیدا کولای وخت د ماخستن د لمانځه او وقت د وترو نو د ماخستن لمونځ او وتر پر هغه سړی نه دی واجب. ولې چې سبب د وجوب د لمانځه وخت دی او دې سړي وخت نه کی پیدا د دغو دوو لمونځو، دا ځای د بلغاریا په نامه یادیږی چې د صقالیه وو ښار دی. او قطب شمالي ته ډیر نژدې دی. او ډیر

یَخ ځای دئ. ولې چې پرڅی باندې په میاشتو میاشتو شپې په زمانه کښې لمرنه راخیږی اودوی په ذمې ترڅکه لاندې په حماموکې ژوند کوې. نوپردغوخلکو باندې په کوتاه شپوکې دکال یعنې داول سرطان څخه ترځلوېښت ورځو پورې. لمر پردوئ ښکاره وی ۲۳ تخمیناً ساعته او صرف یوساعت تخمیناً غروب کوې. نوپردوی په دغوورځوکې دشفق دلویدو نه یایوځای صبح صادق راځوی نو دماخستن دلما نځه اووترو وخت نشته.

**یوه سئله**: چې په شرح چغمینی کې وائی. چې په وخت کښې دسپیدو لمر تر افق ۱۸ درجې کښته وی او په اخیر د شفق هم ۱۸ درجې لاندې وې ۱۸ درجې تخمیناً په یوه ساعت او ۱۳. دقیقه کې لمر قطع کوې په حرکت د فلك الافلاك چنانچه (۳۶۰) چې ټوله دوره د فلك دی چې پرڅلیروېشت[۲۴] چې ساعتونه دشبانه روز دې تقسیم کړې. ۱۵ درجې نو حصه دیوه ساعت ۱۵ درجې ده. او دری درجې چې په اتلسو[۱۸] کې بالادی تخمیناً ۱۳ دقیقې کیږي. دایو ساعت او ۱۳ دقیقې د صبح کاذب څخه حسابول کیږي.

**مسئله**: که ورځ دومره اوږده وه لکه کال یامیاشت یاهفته خلك به څنګه لمونځونه کوي لکه د دجال د ظهور ورځې چې مسلم ده نو اوس بن سمعان وائی او ده یو روایت کړې دې چې آنحضرت صلی الله علیه وسلم د دجال ذکر کاوه اووی فرمایل چې د دجال اوسیده به په مځکه کښې څلوېښت[۴۰] ورځې وی یوه ورځ به لکه یو وخت کال اوبله ورځ به لکه دیو وخت میاشت اوبله ورځ به لکه دیو وخت هفته اونوری ورځې به د بخوا پر شان دې خلکو یعنی صحابه وو پوښتنه وکړه چې په دغه ورځ کې چې لکه کال وی ایا دیوې ورځې لمونځونه کافې دی یعنې نځه لمانځه آنحضرت صلی الله علیه وسلم ورته ووېل لا، بلکه وختونه به حساب کوې. یعنې یا په اټکل یا په نورو آلاتو لکه په دی زمانه کښې ساعتونه:

## وَلَا يُجْمَعُ بَيْنَ فَرْضَيْنِ فِيْ وَقْتٍ بِعُذْرٍ

اونه جمع کیږی دوه فرضې لمونځونه په یوه وخت کې یعنی جمع حقیقی د دوو لمونځو فرضونو په یوه وخت کښې نارواده که جمع د تقدیم وی. ولې چې هغه مقدم لمونځ قبل الوقت ناجائز





دی او که جمع د تاخیر وي. ولې چې هغه مؤخر لمونځ بعد الوقت اداېږي نوسی کیدلای په هیڅ عذر. سره لکه باران، یامرض، **سوال**: په حدیث شریف کښې چې روایت په بخاری او مسلم دواړو کړې دی داسی راغلی دي چې آنحضرت صلی الله علیه وسلم په سفر کې جمع د ظهر او عصر کړې ده یعنی جمع تقدیم او جمع د مغرب او عشاء یې کړې ده یعنی جمع د تاخیر، او په یوه بل حدیث کښې راغلی دي چې آنحضرت صلی الله علیه وسلم ومسافرته اجازه د جمع کولو د لمونځوو کړې ده **جواب**: مراد د جمع سی په دغو حدیثو شریفو کې راغلی ده جمع صوری او ظاهري او عملی ده، یعنې اول لمونځ لکه ماپښین ده مبارک تر اخیره دوخت وځنډه وی. نوځه وخت چې هغه لمونځ به اداکړی دوهم لمونځ لکه مازدیګر چې وخت داخل سې په اول وخت کښې اداکړې په سفر کښې داسې کول آسانی ده چې دوه واره قطع د سفر نه غواړې.

او دلیل پر دې خبره هغه حدیث دی چې روایت یې بخاری او مسلم چې شیخان یې بولې دواړو کړې دی د عبد الله بن مسعود رضی الله عنه څخه چې داسی وائی: وَالَّذِي لَا إِلٰهَ غَيْرُهُ مَا صَلّٰى رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صَلٰوةً قَطُّ إِلَّا لِوَقْتِهَا إِلَّا صَلٰوتَيْنِ جَمَعَ بَيْنَ الظُّهْرِ وَالْعَصْرِ بِعَرَفَةَ وَبَيْنَ الْمَغْرِبِ وَالْعِشَاءِ بِجَمْعٍ" ترجمه: قسم په هغه خدای دی چې نشته خدای بیله ده چې نه دی اداء کړی رسول الله صلی الله علیه وسلم لمونځ هیڅ وخت بیله خپل وخته مګر دوه لمانځه چې جمع یې وکړه د ماپښین او مازدیګر یعنی جمع تقدیم په عرفات کې او جمع یې کړه د ماښام او د ماخستن یعنی په جمع تاخیر په جمع یعنی په مزدلفه کښې".

**ګرانو ورونړو او خوندو**: داوو مذهب د حنیفیانو او حضرت الامام الشافعیؒ جمع حقیقی د لمونځو په سبب د عذر د سفر یا باران وغیره روا بولې. هم تقدیم د لمانځه تر وخت او هم تاخیر، او بعض خلك خصوصاً حاجیان چې وائی مونږ په سفر کښې د امام شافعیؒ په مذهب عمل کوو که څه هم مونږ حنفیان یو هغه غلط کاردی. مګر هغه وخت صحیح دی چې ټول مذهب د امام شافعیؒ پرځان

لا زمروگرځوي. یعنې په امام پسې چې ولاړوی قرائت دالحمد الله به کوي، اوکه ذکرسر کړي اودس به مات بولي. کې ما ينه مسر کړه یا په نجه ځندی واخسته اودس به مات بولي. وغیرذالك من مذهب ذالك الامام. او په اجماع دڅلورو سرواماما نو دا غلط کاردی چې په څلورو مذهبو کښې تلاش کوي چې هر کار چې آسانه وی په هغه عمل کوي. اوچې په هرمذهب کې گران حکم وي. هغه پرېږدي. دې ته حکم ملفق وائي او هغه باطل دی کما فی دیباجة الدر المختار، وهو الاصح من مذهب الامام مالك وغيره "قال

## الاللحاج فى عرفة بشرط الامام الاعظم

مگر د حاجیانو دپاره یعنی نه د بل چادپاره. دعرفات په میدان کښې یعنی نه په بل ځای کې. په شرط ددې چې حاجي په عرفات کې لمونځ په جماعت دلوی امام سره اداکوي. چې بادشاه دوخت دی او یا یې نائب وي. نو که په عرفات کې لمونځ یوازی کاوه که څه هم حاجي وی جمع ورته ناروا ده. او یا یې په خیمو او طاقو کښې په بل امام پسې په جماعت لمونځ کاوه هم جمع ورته ناجائزده.

## والاحرام

او بل په شرط داحرام یا په حج او یا په عمره. نوکه سرې دمکې شریفې مثلاً اهلي سړی وو او احرام بنده نه وو. پس که څه هم په عرفات کې وي. او د امام اعظمؒ سره لمونځ په جماعت کوی جمع د لمونځو ورته جائز نه ده"

**پوهه سه:** چې داڅلور شرطه د صحیح والي د جمع د لمونځو مذهب دی دامام اعظمؒ ابو حنیفهؒ. او یاران وائي چې منفرد ته هم جمع رواده. په برهان کښې وائي چې مذهب د یارانو اظهر دی. لکن عام متون او د فتاواو وکتابونه پر مذهب دامام اعظمؒ دي. قال

## فجمع بين الظهر والعصر جمع تقديم

پس جمع دی وکړي حاجي په ما بین کښې دما پښین د لمانځه او د ماز دیگر لمانځه په جمع سره د تقدیم یعنی دماز دیگر لمونځ دی تروخت دمخه کړی. او په اول وخت کښې دما پښین دې اداء کړي.

**مسئله:** دادوه لمونځونه حسب العادة القديمة په مسجد نمره کښې د عرفات ادا





کیږی. او یو اذان دوه اقامته غواړي. تا چې خلك په دوهم اقامت سره پوه شي چې بل لمونځ شروع کیږی. او د دی دوو لمونځو په ما بین کښې دی هیڅ فصل نه وړکوی نه په نفلو حتی نه په دوه رکعته دما پښین د سنتو هم، قال المصنفؒ

## وجمع بين المغرب والعشاء جمع تاخير بمزدلفة

او جمع والی دی وکړي حاجي په ما بین کښې د ما ښام د لمانځه او د ماخستن د لمانځه جمع د تاخیر یعنی د ما ښام لمونځ دی وځنډوي تر وخته پورې د ماخستن. او دا جمع په مزدلفه کښې کیږی چې د یو ځای نوم دی چې د عرفات څخه تخمیناً ۳ درې میله فاصله لري. **مسئله:** په دې جمع کښې د مزدلفه یو اذان او یو اقامت غواړي. **مسئله:** د دی جمع دپاره صرف مکان شرط دی. چې مزدلفه ده او احرام شرط دی. او جماعت او امام اعظم شرط نه دی.

**مسئله:** د دې دوو لمونځو تر ما بین به هم نفل او سنت او بل کار نه کوي، او که چیري نفل یا بل کار وکړی اقامت به راگرځوي. او په نیز د امام زفرؒ آذان به هم راگرځوي، قال

## ولم تجز المغرب فى طريق مزدلفة

او نه دی روا د ما ښام لمونځ په هغه لاره کې چې د عرفات څخه مزدلفې ته راځي کی چیری د ما ښام لمونځ په لار کښې وکړی بیرته بی په مزدلفه کښې راگرځوی. په حدیث شریف کښې راغلی دی چې یو سړي د ما ښام لمونځ په لار کښې کاوه. رسول الله صلی الله علیه وسلم ورته وویل، اَلصَّلٰوةُ اَمَامَكَ، یعنی ځای د دغه لمانځه په مخ کی دی چې مزدلفه ده. **مسئله:** که سړي د ما ښام لمونځ په عرفات کی وکړي هم نه دی روا. نو قید د طریق اتفاقی دی.

**استدراك:** درویش په جمع کولو کی د ظهر او عصر داسي وویل چې سنة الظهر به هم نه اداکوی دا ظاهر المذهب وو. کما فی النهر، لکن علامه ملا مسکینؒ د سنة الظهر په باره کښې وائي چې هغه دی اداء کوي. **سوال:** چې ظاهر المذهب هغه اول وو نو دی استدراك ته ضرورت وو، **جواب:** حاسدان ډیر دي وهره خبره ته گوته نیسي وائي چې

عبید الله په فلانی مسئله کښې خطاوتلې دی. دوی ظاهر المذهب او روایات شاذه نه سره بیژنی. ولنعم ماقیل ـه چشم بداندیش که برکنده باد ـ عیب نماید هنرش در نظر ـ
ـه هم یحسدونی وشر الناس کلهم: من عاش فی الناس یوماً غیر محسود

**پوهسه**: چې مصنف چې اصلی وختونه د ښځو لمونځونو بیان کړو. هم دا اوس وخت مستحب د دغو لمونځونو پر مذهب د امام اعظم بیانوي. قال المصنف

**وَيُسْتَحَبُّ الْإِسْفَارُ بِالْفَجْرِ** او مستحب دی تورنړا پورې ځنډول د سحار د لمانځه. بعض امامان د اسفار په اوبدلی وی نود سحار لمونځ د اسې وخت کوی چې د لمر د راختو سره بیخي شو غالي وي، داسې کول مکروه دي. **بلکه اندازه د اسفار داده**، چې که چیری په اخیر ناسته کې فساد د لمانځه ښکاره سي، بیرته داغه لمونځ د سحار لمونځ په قراءت مسنونه سره تر لمر ختو مخ راګرځولای سي، قال رسول الله صلى الله عليه وسلم: اسفروا بالفجر فانه اعظم للاجر، وفي حديث اخر: نوروا بالفجر يبارك لكم، او علاوه پردې وخت د سحار د لمانځه چونکه وخت د خوب او غفلت دی نو په اسفار کښې ډیروالی د جماعت دی. او فقیه ابوجعفر الطحاوی په شرح کښې د معانی الاثار په اسناد صحیح سره د ابراهیم نخعی څخه روایت کړی دی. او وائي چې نه دی اتفاق کړی اصحابو د آنحضرت صلى الله عليه وسلم پر هیڅ شی دومره لکه چې اتفاق یې کړی دی پر تنویر د فجر په لمانځه کښې» یعنی په رڼا کښې کول. **پوهسه**: چې ظاهر الروایة دادئ. چې په اسفار کې بشروع په لمانځه کوی، وقیل، چې دخول په لمانځه کښې به په غلس یعنی تاریکه کښې وی او اتمام به په اسفار کښې وی په رڼا کې ولو د قرائت او ترتیل په قرائت. لکن په دی کښې پر هغو ضعیفانو، مریضانو، سپین ږیرو، لوی حرج او تکلیف دئ.

**بشارت او زیری**: دانس څخه روایت دی، قال قال رسول الله صلى الله عليه وسلم چې آنحضرت وفرمائیل: من صلى الفجر في جماعة، که چا ادا کړې د سحار په جماعت سره ثم قعد يذكر الله تعالى، او بیا کښیناستی ذکر د خدای جل





شانه په کاوه. یعنی هر ذکر چې وی که تسبیح وی که تهلیل وی که تکبیر وي. وغیر ذالك من انواع ذکر الله تعالى، حتى تطلع الشمس، تر هغو چې لمر راوختی.

**پوهسه**: چې مجرد طلوع د لمر نه ده مراد بلکه چې وخت مکروه تیر سی. یعنی لمر یو نیزه یا دوی نیزی را پورته سی، ثم صلى ركعتين، او بیا یې اداء کړه دوه رکعته نفل. چې ودی ته صلوة الاشراق وائي او د لمونځ د ضحی یعنی د څاښت د سنتو څخه علاحده دی. ولی چې د څاښت د لمانځه وخت ډیر وروسته دی. تخمیناً دوه یا دری ساعته، كانت له كاجر حجة تامة وعمرة تامة، ده لره دی دغه کار مجموع یعنی ثواب د هغه لکه ثواب د حج پوره او عمره پوره. **پوهسه**: چې مراد د حجه څخه حج نفلی دئ او تامه. تامه په وبیلو سره. آنحضرت صلى الله عليه وسلم تو هم د هغه چا دفع کړی چې د احادیث په صرف د یاره د ترغیب وي. او په حقیقت کې دومره ثواب نه وي. محدثینو دا حدیث حسن ګڼرلی دی. او په یو بل حدیث شریف کښې راغلی دي: قال عليه السلام: من مكث في مصلاه بعد الفجر الى طلوع الشمس، که چادرنګ وکړی په ځای کښې د لمانځه پس له سحاره د لمانځه یعنی سره د شغل په یو ذکر د اذکارو څخه. او یا نفس د رنګ مراد دی. كان كمن اعتق اربع رقاب من ولد اسمعيل وي بر د دغه سړي ثواب لکه د هغه چا چې څلور مریان ازاد کړي د اولاد څخه د اسمعيل عليه السلام یعنی د عربو څخه. **پوهسه**: چې حضرت امام شافعي مریتوب د عربو روا بولي. نو د عتق څخه حقیقت عتق مراد دئ. او مذهب د امام اعظم دا دی چې په عربو کی، رق، نسته. نو عتق په بناء پر فرض و لو د رق دئ. وقال عليه الصلوة والسلام: من مكث في مصلاه بعد العصر الى غروب الشمس، او که چادرنګ وکړي په ځای کښې د لمانځه پس د ماز دیګر د لمانځه تر لویدو پورې د لمره كان كمن اعتق ثمان رقاب من ولد اسمعيل، دو نه ثواب به دی لکه چې څوک ازاد کړی اته نفره د اولاد څخه د اسمعيل عليه السلام **پوهسه**: چې زیاتوالی د ثواب د ماز دیګر د رنګ پر ثواب د سحار د رنګ په سبب د دې دئ. چې د ماز دیګر د رنګ د پاره

د فرضي لمانځه د مابنام دئ. او په فجر کښې د پاره د نفلو د اشراق دئ. **مسئله:** اسفار د سحار د لمانځه مستحب دی په سفر او حضر کې او که ژمی وی او که دوبې وي، که یوازې کوي لمونځ او که امام وی او که مقتدی وي. م، ط، لکن اسفار په فجر سره "**للرّجال**" د نرو د پاره. او د ښځو د پاره تغلیس مستحب دئ. همیشه. لِان التغلیس اقربُ اِلیَ السترِ" مګر د سحار په لمانځه کښې ښځې دو مره د انتظار کوي. چې نر د جماعت څخه فارغ کیږي.

**مسئله:** اسفار په صبح کښې خو مستحب دئ مګر هغه ورځ چې حاجیان په مزدلفه کښې وی هغه ورځ به دوی لمونځ د سحار پس له سپیدو څخه په تاریکه کښې اداء کوي. د پاره د فراغ و وقوف د مزدلفه او دعا کا نو کولو ته د مخه تر، اختود لمر چې دا ځای یو مهم ځای د اجابت او قبلولو د دُعا وو دئ.

په حدیث صحیح کښې راغلی دی چې رسول کریم صلّی الله علیه وسلم په عین وخت کښې د دعا د مزدلفه پر غره د مزدلفه ناخاپه وخندل خلک وه سبب ته د خندا په حال کښې د عجز او د عاد علیه السّلام حیران سوه. نو یه پوښتنه د سبب د خندا ځندی وکړه رسول الله صلی الله علیه وسلم ورته وویل چې ما پر ابلیسٌ خندل چې د غم څخه د عمومي بخښنې د خدایٔ حاجیانو ته ابلیس پر سر په د غه شیله کی خاورې باد کړې. قال المصنفؒ

**وَالاِبرَادُ بِالظُّهرِ فِي الصَّيفِ** او په ځنګی کښې دی کوی د ماپښین لمونځ په دوبې کښې **مسئله:** دا حکم په هغو وطنو کښې دی که ګرم وی او که ساړه او که شدت حروی او کړنه. **مسئله:** د جمعې د لمانځه حکم د ماپښین د لمانځه دئ. **مسئله:** په حکم کې د ابراد الظهر منفرد او امام برابر دی.

**پوښتنه:** چې اندازه د ابراد (یخ والې) بعض علماء والئ داده "چې خلک چې مسجد ته ځي په سایه کی د دیوالو تللای سي" کما فی نور الایضاح، او سراج والئ چې اندازه د ابراد داده چې ماپښین لمونځ د اختلاف موتلی وی د مخه تر رسیدو د سایه یو مثل ته د شئ. او په خزانه کښې والئ چې وخت مکروه په ماپښین کی دا دی چې د ماپښین لمونځ تر اختلاف د امام اعظمؒ او د یارانو راسی.



**پوښتنه:** چې ابراد د ظهر دا دی چې تر یک چندی د مخه بې کوی نو د حضرت الامام الاعظمؒ مذهب غیر فائده سوه. **جواب:** د حضرت الامام الاعظمؒ په نیز تر دو چندی پورې تر دی د ماپښین لمونځ روا دئ. او یارانؒ والئ چې تر یک چندی وروسته د ماپښین روا ندی. او په استحباب کی د دوی ترمابین اختلاف نسته.

**شکایت:** بعض مُلایان د عصر حاضر صرف دا یه او ریدلې ده چې حضرت الامامؒ ابراد باالظهر مستحب بولې په دوبې کی. نو دوی پر ۱۲ بجو چې تخمیناً د استواء وخت دی په کور کښې بنده یا بل د غرمې شی یخ کړې وی و په خوری او سلاته او شلومې هم ورسره ملګرې کړې. او کرار بیغمه بیده او پر دری بجې یه په مسجد کښې اذان کیږي لمونځ نوکورچې خم وخت کوي. غالبًا پر دری نیمی بجې بو کوی. دا وخت یک چندی خوځبه کوي د دو چندی د رسید و خطر سته. نو د حضرت الامام الاعظمؒ او د یارانو پر دواړو مذهبو د المونځ مکروه دی. بلکه دو چندی ته ور سیدی په اتفاق نا جایز دی، والی الله المشتکی من صنیع هؤلاء"

**وَتَعجِيلُهُ فِي الشِّتَاءِ** او وختی دی کوی د ماپښین لمونځ په ژمي کې. **پوښتنه:** چې مصنفؒ پسرلی او منیٔ هم د شتاء د جملې څخه بللی دئ "بحر الرائق" په حدیث شریف کی راغلی دی چې رسول الله صلی الله علیه تعجیل د ماپښین د لمانځه کاوه په ځنګلی کی

**اِلاَّ فِي يَومِ غَيمٍ فَيُؤَخِّرُ فِيهِ** مګر نه په ورځ کښې د وریځې د سببه د دی چې قبل الوقت اداء نه سی نو په ورځ د وریځې چې لمر پټ وی د ماپښین لمونځ دی وځنډوي یعنی استحبابًا" مراقی د دی وجه دا سی وئیلی دی" اِذ لا کراهة فِی فیه فلا یضرتاخیره، د کرولش والئ چې دا خبره د مصنفؒ د تحقیق د خزانې څخه خلاف ده. کما مرّ عنقریب. وَاللهُ اعلم بالصّواب"

**پوښتنه:** په عصر حاضر کی چې د هرچا په جیب یا تر لاس ساعتان موجود دي" نو هغوته خود ماپښین د دخول وخت معلومیږی" که څه هم وریځ او لمر پټ وی **جواب** د قدیم فقهاوو" په عصر کښې خو ساعتان هیڅ نه وه نو دوی څکه دا عنی حکم کاوه په یوم الغیم کښې" لکن دا حکم په سبب د وجود د ساعتو تغیر نه خوری څکه اکثر او عمومًا بادیه نشینان

او ما الدار انو نه د آ اله کمه پیدا کیږی ،، فیجعل اهلُ البلدان تبعًا لهم فی هذ الحکم، وَ اللّٰهُ اعلمُ

**وَتَاخِیْرُ الْعَصْرِ مَا لَمْ تَتَغَیَّرِ الشَّمْسُ** او مستحب دی ځنډول د ماز دیگر د لمانځه یعنی په دولې اوږدو ورځو کښې لکن تر هغه وخته پورې چې لمر تغیر نه وی کړی. ولې وروسته تر تغیر د لمر د ماز دیگر لمونځ مکروه دئ. **پوښتنه**: چې تغیر د شمس په صحیح مذهب دا دی چې رڼا یې کمه سی حتی سترګې نه پر بریښی. وَقیل غیر ذالکَ ، قال المصنفؒ فی المراقی: وَالتاخیر الی التغیر مکروه تحریمًا ،، قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صلی اللّٰهُ علیه وَسلم: تِلکَ صَلوٰةُ المنافِقِیْن ثلاثًا یَجلسُ احدُکُم حتی اذا اصفرت الشمسُ وکانت بینَ قرنی الشیطن یَنقُرُ کنقر الدیکِ لَا یَذکر اللّٰه اِلَّا قلیلًا ،، ترجمه: علیه السّلام دغه چې راځی لمونځ د منافقانو بالا او دری وار یې دغه خبره وکړه. هغه داسی چې ناست وی یو تا سی شخص حتی چې لمر زیړ سی او په مابین کی د دوو ښکلو د شیطان سی نو دی مشو که ځنډ وی یعنی چابک چابک رکوع و سجده وغیره کوی لکه چې چرګ د خوراک دانی چابک چابک ټولوي ، قَالَ المُصنفؒ ،

**وَتَعْجِیْلُهُ فِیْ یَوْمِ الْغَیْمِ** او مستحب دی وختی کول د ماز دیگر د لمانځه په ورځ کی د وریځی یعنی چې لمر پټ وی. لکن دا هلته چې د سړی یقین وی چې د ماز دیگر وخت داخل سوی دئ. سبب د استحباب د تعجیل په دا دئ چې د تاخیر په صورت کښې نه بایده چې په وخت مکروه کښې به اداء سی ،

**شِکَایَت** په قریو او په صحراوو کښې حال داسی دئ. چې د وښو او انګورو یا د انځرو یا د انارو وغیره په موسم کښې امام المسجد او مقتدیان ټوله یا د غوا په وښو او یا د میوو په راوړو پسی ګښتو اوی یا غوته تللی وي. نو ماز دیگر د اسی وخت راوړ سیږی مسجد ته چې تغیر د لمر خو لا پریږده بلکه یوه ځنډه د لمر پټه سوی وي نو چابک چابک ملا صاحب او مقتدیان د ،، نقرُ الدیکِ لمونځ وکړي. قَالَ المُصنفُ

**وَتَعْجِیْلُ الْمَغْرِبِ اِلَّا فِیْ یَوْمِ غَیْمٍ فَیُؤَخَّرُ فِیْهِ** او مستحب دی وختی کول د ماښام د لمانځه یعنی په ټولو فصلو کی د کال مګر نه په ورځ کی د وریځی نو په هغه ورځ دی تاخیر





کوی په دغه لمانځه کی ، درویش والی چې دا حکم هم بناء دی پر عدم د آلاتو لکه ساعتونه بلکه په عصر حاضر کښې علماء حضراتو په پاکستان کښې کوښښ کړی چې د هر ښار د پاکستان او د هغه ښار د نن دی قریو د پاره یې دګرده عمر د پاره په صحیح نقشی جوړي کړي دي. چې په هغو کی د سپیدو د لمرختو او د لمرلویدو او نورو وختونه په ساعتونو د قیقو په قوی میاشتو او نورو کی پوره معلوم کړي دي. او دا نقشی په تجربه سره صحیح ثابتی سوي. شکر اللّٰهُ سَعیَهُم، وَجزاهم اللّٰهُ احسن الجزاء ، عه

**مسئله**: په مابین کی د اذان د ماښام او د اقامت دې فصل نه کوی مګر په قدر د دری ایاتو ویلو او یا په جلسه خفیفه سره. او فصل په مقدار د کولو د دوو رکعتونفلو مکروه دی ،، ط ، **پوښتنه**: چې اهل ظاهر الحدیث او حنبلیان دوه رکعته نفل په مابین کی د اذان د ماښام او د اقامت کوي. دلیل د دی مسئلی دا دی چې په حدیث کښې د امامت د جبرئیل علیه السلام په بخاري کښې موجود دی. داسی راغلی دی. چې جبرئیل علیه السلام د ماښام لمونځ په دواړو ورځو کښې د امامت په یوه وخت کښې ورکړی.

او په صحیح حدیث کی راغلی دي: آنحضرت صَلَّی اللّٰهُ عَلیه وَسلم وائی: اِنَّ اُمَّتِی لَنْ تَزَالوا بخیرٍ مَا لَمْ یُؤَخِّرُوا الْمَغْرِبَ اِلی اشتباک النجوم ، ترجمه: په تحقیق سره زما امت به همیشه په خیر کی وي تر هغو چې نه ځنډوي د ماښام لمونځ تر ښکاره والی د ستورو په آسمان کی. لکه د شیعه ګانو چې دا عادت دئ ،، او د بعض کسانو چې ځان صوفیان بولي په میاشت کی د روژې. **مسئله**: په عذر سره د سفر او یا د مرض او یا د مرض یا د روژه مات د روژې. تا خیر د مغرب روا دئ چې مسافر یا مریض جمع صوری د ماښام د لمانځه د ماخستن د لمانځه وکړي. او د روژه نیوونکی لږ څه حرارت د لوږي کم سی

**تنبیه**: په بعض مساجدو کښې د روژې په میاشت کښې د روژه مات د پاره با قاعده ستر خانونه آوارسی او د هر کوره شخص حسب القدرة یا غورمه ، یا بنډې او ښلومبې هم ور سره کښینښول سی. او بیا لا ذانه ورته وجوړیږی. او تر یږی پورې ځانونه ماړه کړي

عه د بنده هم ان شاء اللّٰه اراده ده چې د ټول افغانستان داسی نقشه جوړه کړم ،، احقر فضل الحق حقانی

اومُلا صاحب هم ورسره حاضر وی او وائی خوری یا ستی چی دَ روژه مات دخوړلو حساب نسته. حتیٰ چی بالیقین د ماښام وخت پرې توښی»، دا فعل مکروه دیٔ.

**مسَئله**: په مَراقی او طحطاوی کی وائی چی بې عذره ځنډول د ماښام لمونځ ترقدرِ مذکور مکروه تنزیهی دی. او تر اشتباک دستورو مکروه تحریمی دیٔ. **مسَئله**: که په وخت کښی د ماښام جنازه حاضره سوه. افضله دا ده چی اول دی د ماښام لمونځ اداء کړي. وَلی چی هغه فرض عین دی تر فرضِ کفایئ اولیٰ دیٔ. او بیا دی د جنازی لمونځ اداء کړي او بیا دی د ماښام سنت وکړي.

قَالَ المُصنفؒ

**وَتَاخِيرُ العِشَاءِ اِلىٰ ثُلُثِ اللَّيلِ** او د غه رنګه مستحب دی ځنډول د ماخستن د لمانځه تر دریمی پوری دَ شپی»، دا روایت دی د کنز. او په قدوری کی داسی وائی اِلیٰ مَاقبلَ الثلث» **پوښتنه**: چی مصنفؒ په تاخیر کښی دعشاء قید د دُوبی او ژمی نه دی وَئیلی. نو دَ ده مذهب دا دی چی دا تاخیر دَ عشاء په دوبی او ژمی کښی تر ثلث اللیل پوری مستحب دیٔ. لکن په فتاوای خانیه»، او محیط الرضوی او البدائع کی داسی وائی چی دا استحباب دَ تاخیر تر ثلث اللیل پوری په ژمی کښی دی چی شپی اوږدی دی. او د خلګو خوب پوره کیږي. او د سحار وجماعت ترهم بیداره کیدای سی. او په دوبی کی دَ ماخستن لمونځ وختی. وَلی چی خلګو پر ثلث اللیل جماعت کول دَ نیږی په سبب دَ خوب او بَل د سحار لمانځه تَه هم په جُماعت نه سی سره رسولای. چی شپی ډیری کښنی دی.

**فائِدَهٔ**: په تاخیر کی دَ عشاء تر ثلث اللیل پوری ډیر صحیح حدیثونه راغلی دی او دا هم مذهب دا اکثر اهل العلم دیٔ. من الصحابهٔ وَالتابعینْ. په صحیح حدیث کی راغلی دی چی آنحضرت صَلی اللّٰهُ عَلیه وَسلم وائی. لَولَآ اَنْ اَشُقَّ عَلیٰ اُمَّتِیْ لَاَخَرتُ العِشَاءَ اِلیٰ ثُلُث اللیل اونصفه» یعنی وجوبًا وَلی چی استحباب خو یهٔ ثابت دیٔ.

او په بَل حدیث کښی چی روایت یه امام احمدؒ او یو جماعت د محدثینو کړی دی په روایت دابی برزهؓ: اَنّ النَّبِیَّ صَلی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلم: کَانَ یَستحب ان یؤخرالعشاء وکانَ یکرہ النوم قبلها والحدیث بعدهَا: یعنی نبی عَلیه السلام خوښ وو ځنډول د ماخستن دَ لمانځه





او بَد یه بوَلَله بیدَه والی د مخه دَ ماخستن تر لمانځه یعنی دَ جهته دَ خوف د قضاء. او بدیٔ بللی خبری وروسته تر لمانځه د ماخُستن. یعنی ماسِوا دَ خبرو څخه چی په علم کی وي او یا د ضرورت له کَبَله وی. لکه د عوامو چی دَ غسی خبری عادت دیٔ. وَلی چی په داسی خبرو کښی ګاهی غیبت ګاهی نوری بیکاره خبری رائحی. او بَل دا چی داسی مجلسُونه ګاهی ډیر اوږده سی او سَړی بَدخوابه سِی نو د سحار جماعت ځندی فوت سِی»

**مسَئله**: ځنډول دَ ماخستن د لمانځه تر ثُلث اللیل خو مستحب دی. او تر نصفُ اللیل پُوری مباح دی او تر هغه وروسته مکروه دی تحریمًا «م، ط»، قَالَ المُصنفؒ.

**وَتَعجِيلُهُ فِى الغَيمِ** او مستحب دی وختی کول دَ ماخستن د لمانځه په شپه دَ وَریځي. او دا هم ظاهِر الروایة دی» علت یه دا دیٔ چی په تاخیر سره جماعت لږیږی وَلی خلګ د باران څخه بیریږی. او د ډیری تاریکی څخه هم» قَالَ المُصنفؒ

**وَتَاخِيرُ الوِترِ اِلىٰ اٰخِرِ اللَّيلِ لِمَنْ يَّثِقُ بِالْاِنْتِبَاهِ** او مستحب دی ځنډول دَ وترو تر اخیر پوری دَ شپی یعنی تر اخیر د شپی لږ د مخَه یعنی وروسته د تهجد تر لمانځه وه هغه چا ته چی پر ځان یه اعتماد وی چی زه په سدس اخیر کښی دَ شپی بیداره کیږم» فِی الحَدیث الصحیح: قَالَ عَلیهِ الصَّلوٰةُ وَالسَّلام» مَنْ خَافَ اَنْ لَا یقومَ اٰخِرَ اللیل فلیوتر اوله وَمَن طَمَع اَن یقومَ اٰخِرَ اللیل فلیوتر اٰخِرهُ فان صَلوٰةَ اللیل مشهُودَةٌ» ترجمه: عَلیه السلام وائی که څوك بیریدی چی په اخیر کی دَ شپی به بیدار نه سَم. نو هغه سړي دي وتر په اول کی دَ شپی وکړي. او که دچا طمع وه یعنی غالب ګمان یه وُو چی په اخیر کښی دَ شپی بیدارم کیږم. نو وتر دی په اخیر کښی دَ شپی وکړي. ولی چی دَ شپی وَ لمانځه ته مَلکی دَ رحمت حاضریږی او دا هم افضل کار دیٔ.

**کِنَایَةٌ**: قالَ فی الکنز والهدایه «وَنُدِبَ تعجیل مَا فیه عَینُ یومَ غَیْنٍ» ای الصلوٰة التی فی اولها لفظ العین کا العَصر وَالعشاءِ» په هغه ورځ کی چی غین په کښی وي یعنی الغیمْ

**فائِدَة**: طالبان چی چی پس له لمانځه د ماخستن کتابونه مطالعه کوی نو ګاهی چی

ستړي سی یا خوب غلبه پرو کړي نو بیا بله خبري شروع کړي. نو که دَغه خبرې مباح خبرې وی او یا مذاکره د علم وي نو دا سَمَر منهي عنه نه دئ، او که مسخري ټوکې ټا کې او قهقهه خندا وي په کښې وی نو دا سَمَر منهي عنه دئ،،

داهلِ علمِ تجربه،، که یو سړی دَ تهجد د لمانځه سره کمالِ محبت لري ، او ذوق قلبی په کښې وینی. او که یو وخت ځندی پاته سِی. نو په ډیر خفه وی او پرېشانه وي. نو هغه سړي چې دَ ده محبّت و رب جَلّ سلطانه ته معلوم دی ، نو هغه ته کله وخت چې دَ تهجد لمونځ په کښې اداکیږی هم دَغه سړي بیدار کوی که څه هم لږ وخت د مخه بیده سوی وي. وَاللهُ عَلٰی کُلِّ شَیْءٍ قَدِیْرٌ وبکل احوال عباده خبیرٌ،

**مسئله:** که سړي د دی سره چې د تهجد د لمانځه سره یه محبّت د راوړی مگر یوه شپه ځندي قضاء سُو. په حدیث شریف کښې د دَغسی سړي په باره کښې آنحضرت صَلی الله علیه وَسلم فرمائیلی دي. چې دغه سړي که هغو مره رکعتونه وکړي د څا ښت په وخت کی د صلوٰة اللیل ثواب خدای پاک ورکوي.

**فائده:** که سړي د صلوٰة اللیل د پاره وخت معلوم کړي یعنی مثلاً چې زه به نیم ساعت نفل کوم نو هغه لره لنډ لنډ سُورتونه ویل پکاردئ. تاچې په دَغه نیم ساعت کی ډیر رکعتونه او ډیری سجدی وکړای سیُ ، او که چیری د تعداد رکعتو معلوم کړي وُو مثلاً ۸ رکعته نو هغه دی په هر رکعت کښې اوږد قرائت وَوائی ثواب په ډیردئ.

**پوښته:** چې آنحضرت صَلی اللهُ عَلیه وَسلم (۴) رکعته تهجد بیله وترو هم کړي دی او (۶) رکعته بیله وترو هم ثابت دی. او (۸) رکعته بیله وترو هم ثابت دي. لکن دغه عدد په اکثرو اوقاتو کښې ثابت دي. او په بعض روایاتو کښې (۱۰) رکعته بیله وترو هم راغلی دي.

بیت سه هردم از ما صد درود و صد سلام ؛ برروان پاک آنحضرت مدام ؛ بیت : صبا مدینے میں مصطفٰے سے ہم غریبوں کا سلام کہنا نہیں ہے کوئی بجز تمہارا بس میرا اتنا پیام کہنا ؛ بیت سه الٰہی بحق بنی فاطمہ ؛ کہ برقول ایمان کنم خاتمہ .

سه د دعا په طمع زه عُبید الله یم ؛ هغه چا ته چې لوستونکی د کتاب دئ.

اللّٰهم اغفر لمؤلفه و لکاتبه و لوالدیهما.





# فصل

## یعنی فی بیان الاوقات المکروهة،

**ثَلَاثَةُ اَوْقَاتٍ لَا یَصِحُّ فِیْهَا شَیْءٌ مِنَ الْفَرَائِضِ وَالْوَاجِبَاتِ** درې وختونه دی چې نه صحیح کیږی په دوئ کښې هیڅ شئ د فرضو لمونځو او د واجباتو

**اَلَّتِیْ لَزِمَتْ فِی الذِّمَّةِ قَبْلَ دُخُوْلِهَا** هغه فرائض او واجبات چې په ذمه کښې دَسړي لازم سوی وی د مخه تر دخول د دغو وختو.

**پوښته:** چې مراد مکروه څخه د لفظ متعارفه د هغه مراد نه دَه بلکه معنای لغوی مراد ده نو مفسد وخت ته هم شامل سُو.

**فائده:** مُراد د عدم څخه عدم صحت دَ اداءً و قضاءً. د واجباتو مثال ، صلوٰة الوتر ، نذر مطلق ، دوه رکعته د طواف او هغه نفل چې شروع په هغو کی په وخت صحیح کښې کړي وي. او بیا یه فاسید کړی وي او هغه سجدهٔ تلاوت دی چې ایت د سجدی یه په وخت صحیح کښې وئیلی وي. بحر الرائق نقل کړي دی د محیط څخه چې سجده سهو لکه سجدهٔ تلاوت دَه ، حتی پر یو چا سجده سهو وَه. او پس له سلامه څخه وخت مکروه داخل سُو ، دی به سجده سهوه نه کوی بلکه ساقط سوه وَلې چې دا سجده پر ده په وخت کامل کښې لازمه سوی. نو په وقت ناقص کی اداء صحیح نه ده ،،

**مُهِمّه خبره** لعض عَوام تر لمانځه وروسته یوه سجده کوی. دا سُجده مکروه ده. بالاجماع. وَلې چې د عوامو خیال دا دی چې دا سجده واجبه یا سُنت ده او سجده شکر مشروع ده مثلاً یو چا ته به خوشحال کوونکی خبر چاو راوه. نو دی د شکر د پاره یه سجده وکړي . نو ځکه په قنیه کی وائی چې سجده شکر مکروه ده په هغه وخت کی چې نفل په کښې مکروه وي. قَالَ الْمُصَنِّفُ ؒ اَلْاَوَّلُ،

**عِنْدَ طُلُوْعِ الشَّمْسِ اِلٰی اَنْ تَرْتَفِعَ** اول په وخت کی د راختو د لمر حتی چې پورته راسی په قدر د یوی نیزی

یادوو، چې علامه یه داده چې د لمر رڼا او نور سپین سی، **پوښتنه** بعض عوام هم د غه وخت مکروه کی د سحار لمونځ کوي. نو بايد سړي ئې منع کی او که نه؟ **جواب** خوك دی نه منع کوی ولې چې دوی یه بیا قضاء هم نه راوړي. نو د غه لمونځ په قول د بعض مجتهدینو خوړ وادی نو کول یه اولیٰ دی تر ترک بالکلیه» م» قال المصنف»

**وَوَقْتُ اِسْتِوَائِهَا اِلٰى اَنْ تَزُوْلَ** او دوهم هغه وخت چې لمر وسط السماء یعنی نصف النهار ته ورسیږی بیا تر وخت د زوال. په شامی کی وائي چې تعبیر د استواء اولیٰ دی تر هغه عبارت چې په بعض کتابونو کښی د فقه لیدل کیږي. قال المصنف»

**وَعِنْدَ اِصْفِرَارِهَا اِلٰى اَنْ تَغْرُبَ** او دریم وخت دی د زیړوالي د لمر بیا تر غروبه پورې، په حدیث د عقبه بن عامرؓ راغلی دي. ثَلَاثَةٌ نَهَانَا رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَنْ نُصَلِّيَ فِيْهَا وَاَنْ نَقْبُرَ مَوْتَانَا. عِنْدَ طُلُوْعِ الشَّمْسِ حَتّٰى تَرْتَفِعَ وَعِنْدَ زَوَالِهَا حَتّٰى تَزُوْلَ وَحِيْنَ تَضِيْفُ لِلْغُرُوْبِ حَتّٰى تَغْرُبَ» رواه مسلم» عقبه بن عامرؓ روایت کوي چې درې وختونه چې مونږ رسول الله صلى الله عليه وسلم نهی کولو چې مونږ په هغو کښی لمونځونه وکړو او یا مونږ مړی په دغه وختونو کی ښخ کړو. **پوښتنه**: چې مراد د ښخیدو نه د مړو صلوة الجنازه دی. ولې چې ښخول د مړی په دغو وختو کښی روا دی. او په بل روایت کی د دغه حدیث صراحة راغلی دا سی: وَاَنْ نُصَلِّيَ عَلٰى مَوْتَانَا. او مراد د زوال نه استواء ده کما مَرَّ. **فائده**: دامام ابو یوسفؒ نه روایت دی. چې د سحار لمونځ په دغه وقت مکروه کی روا دی. چې څنګه ول د لمانځه تر دغه پورې قصدًا نه وي.

**فائده مهمه**: پوهه سه چې درود بر علیه السلام یا تسبیح وغیره په دغو اوقات مکروهه وو کښی افضل دی تر تلاوت د قرآن عظیم الشان» ولې چې تلاوة القرآن خو رکن د لمانځه دی او لمونځ خو مکروه دی» فَالْاَوْلٰى تَرْكُ مَا كَانَ رُكْنًا لَهَا قاله فی البحر» ط»

**مسئله** که سړی د سحار په لمانځه کښی وو او لمر پس راوختی بعض فقهاء وائی چې





لمونځ یه یک لخته باطل دی یعنی نه فرضی دی او نه نفل، نو بناء پر دغه مذهب که څوك په دغه لمانځه کی قهقهه خندا وکړي او دس یه نه په ماتیږي. ولې چې د لمانځه نه خارج دی. او بعض فقهاء وائي چې دغه لمونځ نفلی ګرځید ه ده. او د فرضی لمانځه قضاء پر لازمه ده، نو که چیری دی په دغه لمانځه کښی وخاندی او دس یه ماتیږي» قال

**وَيَصِحُّ اَدَاءُ مَا وَجَبَ فِيْهَا مَعَ الْكَرَاهَةِ** او صحیح دی اداء د هغه عبادت چې واجب سی پر سړي په د غو اوقات مکروهه وو کښی. او دا هم ظاهر الروایت دی. او کراهت یه هم تحریمی دی. او بعض علماء وائي چې کراهت په کښی نسته» قال المصنف»

**كَجَنَازَةٍ حَضَرَتْ وَسَجْدَةِ اٰيَةٍ تُلِيَتْ فِيْهَا** لکه یو جنازه چې حاضره سی په دغو مکروهو وختو کی، او یا سجده تلاوت کول د هغه ایت د پاره چې په دغه وخت کی تلاوت سی» لکن بحر الرائق او تحفه والا او په تبیین او په ایضاح کی وائي چې د جنازی لمونځ دی نه څنګه وی او په دغو مکروه وختو کی هم. او هم په دغو وختو کی کول تر نه کولو افضل دی د دی معنیٰ دا ده چې صلوة جنازه په دغو وختو کی مکروه نه دی. بلکه څنګه ول یه مکروه دی لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلٰوةُ وَالسَّلَامُ» ثَلَاثٌ لَا يُؤَخَّرْنَ، جَنَازَةٌ اَتَتْ، وَدَيْنٌ وُجِدَتْ مَا يَقْضِيْهِ. وَبِكْرٌ وُجِدَ لَهَا كُفُوٌ» قال المصنف»

**كَمَا صَحَّ عَصْرُ الْيَوْمِ عِنْدَ الْغُرُوْبِ مَعَ الْكَرَاهَةِ** لکه چې صحیح دی کول د ماز دیګر د لمانځه د دغې ورځی په نیږدې غروبه سره د کراهته» **پوهه سه**: چې د الیوم فائده دا ده چې د پرون د مثلاً قضائی د ماز دیګر لمونځ د ننی ورځی په وخت مکروهه کی صحیح نه دی ولې چې د ماز دیګر لمونځ چې قضاء سی نو تیول ه وخت په سبب د قضاء دی او تیول ه وخت د ماز دیګر خو په اعتبار د ټیر اجزاء کامل دی نو دغه قضائی لمونځ کامل لازم دی. نو په ناقص من کل وجه کی کول روا نه دی. کذا فی نور الانوار والهدایه وغیرهما.

**مسئله**: که چیری جنازه په وخت کامل کی حاضره سوه؛ وه او نخلگو تر وخت مکروه پوری وځنډول او بیا یې په وخت مکروه کښې اداء کړل. او یا سجدهٔ تلاوت په کامل وخت کی لازمه سوې وه او تر وخت مکروه پوری وځنډول نو نی لمونځ د جنازې صحیح دی او نه ئې سجدهٔ تلاوت صحیح دَه بلکه دواړه به بیرته را اگرځوي. بحر، رائق، لکن اسبیجابي وائي چې د جنازې لمونځ سره د کراهته صحیح دی را گرځیده یې نسته او سجدهٔ تلاوت دی را اوگرځوي» ط» قَالَ المصنفُ،

## وَالْأَوْقَاتُ الثَّلَاثَةُ يُكْرَهُ فِيهَا النَّافِلَةُ كَرَاهَةَ التَّحْرِيمِ

او په دغو دریو وختو کښې مکروه دي نفلي لمونځونه په کراهتِ تحریم سره» قَالَ،

## وَلَوْ كَانَ لَهَا سَبَبٌ كَالْمَنْذُورِ وَرَكْعَتَيِ الطَّوَافِ

که څه هم دغو نفلو لره سبب وي لکه چې سړي نفلي لمونځ دوه یا څلور رکعته پر ځان نذر کړي وي. او یا په طواف پر بیت الله شریف کړي وي چې هغه سبب دی د دوو رکعتو کولو د پاره دی خو بیا هم مکروه تحریمي دی. **پوه سه**: چې په د " غو نفلو لمونځو چې سړي په دغو اوقاتو مکروهه وو کښې شروع وکړي قطع یې پر لازمه دَه. او بیا یې اداء په کامل وخت کی وکړي. په ظاهر الروایة کی. او بعض فقهاءٌ وائي چې نفل په دغو وختو کښې گرسره صحیح نه دي داسی نه ده چې مکروه دی وي. **فائده**: د غه رنگه مکروه دی دوه رکعته نفل تحیة الوضوء او یا تحیة المسجد. او یا دوه رکعته د کسوف سنت لمونځ. او د غه رنگه مکروه دي دوه رکعته سنت د سحار په وخت کښې د طلوع د لمر. او د حضرت الامام ابویوسفؒ څخه روایت دی چې نفل په وخت کی د استواء د جمعې په ورځ روا دي ط

## وَيُكْرَهُ التَّنَفُّلُ بَعْدَ طُلُوعِ الْفَجْرِ بِأَكْثَرَ مِنْ سُنَّتِهِ

او مکروه دی نفلي لمونځ کول پس له راختو څخه د سپیدو بالاتر دوو رکعتو د سنتو.





قال رسول الله صلى الله عليه وسلم: لِيُبَلِّغْ شَاهِدُكُمْ غَائِبَكُمْ أَلَا لَا صَلٰوةَ بَعْدَ الصُّبْحِ إِلَّا رَكْعَتَيْنِ.. ترجمه: یعنی ودې رسوي حاضر ستاسي وغائب ستاسي ته چې آگاه و وسئ چې نسته لمونځ پس له سپیدو څخه مگر دوه رکعته» قال **وَبَعْدَ صَلٰوتِهِ**: او د اغه رنگه مکروه دی نفل تېسله فرضي لمانځه څخه د سحار **فائده**: په حدیث شریف کی راغلي دي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم د سحار په سنتو کښې قُلْ يَا أَيُّهَا الْكٰفِرُونَ، او قُلْ هُوَ اللّٰهُ أَحَدٌ. وایه او د علم تصوف بعض اکابر علماءٌ لکه امام غزاليؒ وائي که چا همیشه توب وکړي د سحار په سنتو کی په اول رکعت کی پټ" اَلَمْ نَشْرَحْ لَكَ» سورت باندي» او په دوهم رکعت کی» اَلَمْ تَرَ كَيْفَ سورة باندي کافي ده ده لره د شر څخه د دښمنانو» او د درد ناکه ناجوړیو څخه. قَالَ المصنف

## وَبَعْدَ صَلٰوةِ الْعَصْرِ

او د غه رنگه مکروه دي نفل ورو سته تر مازدیگر د لمانځه که لمر تغیر کړي وي او که نه: لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلٰوةُ وَالسَّلَامُ على ما رواه البخاري ومسلم: لَا صَلٰوةَ بَعْدَ صَلٰوةِ الْعَصْرِ حَتّٰى تَغْرُبَ الشَّمْسُ وَلَا صَلٰوةَ بَعْدَ صَلٰوةِ الْفَجْرِ حَتّٰى تَطْلُعَ الشَّمْسُ» یعني نسته هیڅ لمونځ پس له لمانځه څخه د مازدیگر تر هغو چې لمر لویږي او نه هیڅ لمونځ سته وروسته تر لمانځه د سحار تر هغو چې لمر راخیژي» قَالَ المُصنفُ

## وَقَبْلَ صَلٰوةِ الْمَغْرِبِ

او مکروه دی نفل کول د مخه د ماښام تر لمانځه: لقوله عليه الصلوةُ والسلام: بَيْنَ كُلِّ أَذَانَيْنِ صَلٰوةٌ إِلَّا الْمَغْرِبَ یعني په مابین کی د هرو دوو اذانو یعني اذان او اقامت لمونځ سته یعني نفل مگر د ماښام د لمانځه د اذان او اقامت تر مابین.

**پوښتنه**: علماءٌ وائي چې لږ ځنډول د ماښام د لمانځه روا دی او مکروه نه دئ. نو که سړي دوه سپک رکعته نفل وکړي څه پروا لري: **جواب**: ابن الهمامؒ وائي چې مراد د هغه تاخیر څخه دا دی چې تر دوه رکعته کم تاخیر وي: قَالَ ابن عمرؓ مَا رَأَيْتُ أَحَدًا عَلٰى عَهْدِ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُصَلِّيهِمَا: یعني ما نه دی لیدلی هیڅ څوک د اصحابوؓ په زمانه کی د رسول الله صلى الله عليه وسلم چې دغه دوه رکعته نفل دي کوي او ابراهیم نخعيؒ وائي چې دغه دوه رکعته کول بدعت دئ. ط»

قَالَ المصنفؒ **وَعِنْدَ خُرُوْجِ الْخَطِيْبِ حَتّٰى يَفْرَغَ مِنَ الصَّلٰوةِ**

او داغه رنګه مکروه دي نفل کول په وخت کښې د راوتو د خطيب د ځپل ځای نه يعنې د ياره د خطبې تر هغه وخته پورې چې د جمعې لمونځ ادا کيږی» او داغه حکم دی دا خترو د لمونځو او د حج د خطبو په عرفات کې.

**پوښتنه**: چې د خروج الخطيب لفظ بناء پر عادت قديمه دی چې خطيب به په جامع مسجد کې يو خلوت د رلودی چې په هغه خلوت کښې بې ځپل سُنت وکړه چې وخت د خطبې به سو نو به د خلوت نه راووتی» زمونږ په زمانه کښې په اکثرو ځايو کې خطيب د مخه په جامع مسجد کې موجود وی. او پس له اذانِ اول نه سنت هم دالته په مسجد کې کوی» نو پر دې عادت بناء هغه وخت نفل مکروه دی چې دی د منبر و خواته ولاړ سي.

**مسئله** که پر سړي باندی قضائی لمونځ واجب الترتيب لازم وُو. د هغه قضاء راوړل هم په د غه وخت کښې مکروه دي. کمافی الدرالمختار ط» **فـائِـدَه**: که سړی پر نفلو ولاړ وو يا پر سُنتو د جُمعې د مخه ۴ رکعته يه کول چې امام الجمعة منبر ته وختو نو حکم دا دی چې نفل وَالا خو دی پر دوه رکعته سلام وګرځوی کې څه هم نيت د څلورو رکعتو کړی وي. او د اخيری دوو رکعتو قضا نسته باندی چې شروع يې نه ده په کړي او سنت والا دی ځپل څلور رکعته پوره کړي. لکن په تخفيف سره. د ليل د دی مسئلې د متن دا دی چې اوريدل د خطبو فرض دی. حتی چې امر بالمعروف په دَغه وخت کښې حرام دی په روايت کښې د بخاری او مُسلم راغلی دي. إِذَا قُلْتَ لِصَاحِبِكَ أَنْصِتْ وَالْإِمَامُ يَخْطُبُ فَقَدْ لَغَوْتَ» که ته ووايه وبل سړي ته چې هغه خبرې کولې. پټه خوله سه» او امام خطبه ويله نو تا هم لغو کار وکړی نو دا خو امر بالمعروف وو او نهی عنمنکر راغلی» نو نفل خو په طريق اولی حرام دي»

**سنهانه فائده** په کتابو کښې د فقهې شريفې وايي چې څه وخت چې خطيب پر مابين کښې د دوو خطبو جلسه خفيفه کوي هم د غه وخت د اجابت د دعا دی





نو خلک کولای سی چې بيله لاسو پورته کولو يوه سپکه دعا وکړي څو چې امام د دوهمې خطبې ته ولاړ سي. فقط» قَالَ المُصنفؒ

**وَعِنْدَ الْاِقَامَةِ اِلَّا سُنَّةَ الْفَجْرِ** او مکروه دي نفل په وخت کښې د اقامت د مؤذن د پاره د لمانځه پر فرضی لمونځ چې وی مګر نه سُنت د سحار چې هغه د اقامت په وخت کښې به هم کوی. لکن دا په يقين وي چې زه سُنت کوم جماعت نه راسره تيريږی او که جماعت تيريدی بيا دی سُنت پريږدي.

**پوښتنه**: چې افضل د سُنتو د پنځو لمونځو سنت د سهار دی. په صحيح حديث کښې راغلی دي. رَكْعَتَا الْفَجْرِ خَيْرٌ مِنَ الدُّنْيَا وَمَا فِيْهَا» يعنی دوه رکعته سنت خير دی تر دنيا او چې پر دنيا کښې څه شيان دي.

او په بل حديث کښې دا سې راغلی دي. صَلُّوْهُمَا وَاِنْ طَرَدَتْكُمُ الْخَيْلُ» تا سی دوه رکعته سُنت د سحار کوي. که مو څه هم آسان تر پښو لاندی کوي. او د جماعت په لمانځه کښې بيا پر حديث د وعد او وعيد راغلی دی. چنانچه په صحيح حديث کښې راغلی دي» صَلٰوةُ الْجَمَاعَةِ تَفْضُلُ صَلٰوةَ الْفَذِّ بِخَمْسٍ وَعِشْرِيْنَ دَرَجَةً» وَفِيْ رِوَايَةٍ بِسَبْعٍ وَعِشْرِيْنَ دَرَجَةً» او نور هم احاديث مبارکه ښيځي ډير دي. چې د تهولو اوړل د لته ګران دی. او ان شاء الله په ځپل ځای کې به راسي» حتی چې دابن عباسؓ نه چا پوښتنه وکړه چې يو سړي دی چې د شپې تهجد کوی او د ورځې نفلی روژی نسی لکن لمونځ په جماعت نه کوی قَالَ هُوَ فِي النَّارِ» نو د دې سببه که څوک د سحار د لمانځه د اقامت په وخت کې سُنت الفجر وکړی او بيا جماعت ته هم ورسيږي نو د دواړو فضيلت او ثواب به پيدا کړه. او کې دواړه نه سوای پيدا کولای» نو ای سُنت پريږدي. او جماعت دی وکړي. ولې چې د پر يښو لو احاديث مُبارکه په ډيرو سختو الفاظو سره راغلی دی.

**فتوی**

په بعض کتابو کښې د فقه شريفې ليدل کيږی. که د سړي دا سې عقيده وه که زه سُنت د سحار پوره کوم نو د جماعت دواړه رکعته راڅخه تيريږی او صرف په اخير ناسته کښې جماعت ته رسيږم، نو دی د سے سنت پريږدي. او دا هم مذهب د امام محمدؒ دی. لکن دا هلته چې

ده شروع په سُنتو کړې وی، لکن امام طحطاویؒ د نورالایضاح او مَراقی په شرح کښې وائي چې دَ غه سَړي چې شروع یې په سنتو کړي وي سُنت دی نه قطع کوي. دَ تشهد پوري لو سړه دَه ته ثواب دَجماعت رسیږی. عِند ائمتنا الثلاثة، دَرویش وَائې چې دَ قید نخ د بعد الشروع داسی فهمیږي که چیری د مخه تر شروع په سُنتو د سَړي ورته گمان وو نو سُنت دی پریږ دي.

## مَسَائلُ السُّنَن

**پوښتنه**: چې هغه سُنت چې دَ مخه تر فرضی لمونځ دي. هغه دِ سَړي یا په کور کښې کوی» وَهُوَ الافضَلُ»، او یا دي دمسجد د دروازی سره وکړی که ځای وُو» او که ځای نه وُو. او مسجد دوی برخی دره لودئ. نو په هغه برخه کښې دی سنت اداء کړي چې په هغه برخه کښې جماعت نه وي ولاړ اوکه مسجد یووُو نو دی سُنت و یوه تنبیه نه وکړي. او یا دَ مسجد په اخیری حصه کې چې د صفو نخ د جماعت لیري وي، او په صف کې دجماعت د نَنَه سنت کول ډیر سخت مکروه دَی. او دغه رنګه د صف وشا ته مُتصل سُنت کول مکروه دي، (وهَغه سنت چې وړوسته تر فرضو وي، پس افضله داده چې کور ته یې وَکړي او کې خوف وُو چې د سُنتو نخه به په بَل کار مشغول سَمه، نو په هرځای کی دَ مسجد چې اداء کوی هلته دې اداء کړي که څه هم په ځای کښې د فرضی لمانځ وي. او بیه داده که ځای وو چې یو څه پر مَخ یا پر شاه سي.

او په بحر رائق او کافی کښې وائې چې امام تر په ځای کښې د فرضی لمانځ سُنت کول مکروه دي. لکن دا کراهت په صُورت کښې دده دَی چې امام ته دَ تحول امکان وي. اوکه ځای د تحول دَ تحول نه وو بیا کراهت نسته» لان الضرورات تبیح المحذورات» قَالَ

## وَقَبْلَ الْعِيْدِ وَلَوْ فِي الْمَنْزِلِ وَبَعْدَهُ فِي الْمَسْجِدِ

او دغه نفل مکروه دی دَ مخه د عیدگاه د لمانځه که څه هم دا نفل دی کور کوی. او پس دا ختر د لمانځه نفل مکروه دی مګر په عیدگاه کی او کور نفل کول مکروه نه دي، او دا هم مذهب دی د جمهور علماوُ. دلیل ددی مسئلی داد ی چې په حدیث شریف کی راغلی دی چې رسول الله صلی الله علیه وَسلم هیڅ نفل نه کول دمخه تر عیدگاه او چې د عیدگاه نخه به راغلی دوه رکعته نفل به یې په کور کښې کوله. نو سره ددی چې آنحضرت صَلَّى اللهُ عَليهِ وَسَلم ډیر حرص درلود په نفلی لمونځو چې دَ مخه تر عیدگاه یې نَفل نه کوله نو معلومه ده چې مکروه دي. وَلی که کړنه وای مکروه نو کم از کم یو وار، یا دوه واره خو به کړی وای دپاره د بیان د مباح والی کذ قال الحَلبیؒ. قَـالَ المُصنفؒ»

## وَبَيْنَ الْجَمْعَيْنِ فِي عَرَفَةَ وَمُزْدَلِفَةَ

او دغه رنګه نفل مکروه دی په مابین کی د دوو لمونځو چې جمع کیږی په عرفات کی یعنی مَاپښین او مَازدیګر، او یا جمع کیږی په مزدلفه کی یعنی دماښام لمونځ او دماخستن لمونځ **پوښتنه**: چې مصنف په مَراقی کی وائي که څه هم د عرفات په جمع کی د مَاپښین سُنت وي» او د مزدلفی په جمع کی که څه هم دَماښام سُنت وي پر صحیح روایت په مَذهب کې. ولې چې آنحضرت صَلی الله عَلیه وَسلم د دی دوو جمعو په مَابین کی هیڅ لمونځ نه دی کړی» قَـالَ المُصنفؒ»

## وَعِنْدَ ضِيقِ وَقْتِ الْمَكْتُوبَةِ

او دغه نفل یعنی بلکه سُنت هم په نیږدې تنګ والی دوقت د فرضی لمانځ. دلیل یې دادئ چې که سَړي نفل یا سُنت کوي فرضی لمونځ ځندی قضاء کیږي. نو فرضی لمونځ چې دده په ذمه کی لازم دی هغه دې اداء کړي. نفل یا سنت خو پریږ ده لازم نه دي. بلکه که وخت د فساد دَ لمانځه نږدې وُو. لکه دَ لمر اختَل» نو تر هوله سُنت یا تطویل د قرائت دی پریږ دی په ادنی ما یکفی سره دی فرضی لمونځ اداء کړي» ط، ح، قَالَ المُصنفؒ

## وَمُدَافَعَةِ الْأَخْبَثَيْنِ

او دغه رنګه نفل مکروه دی بلکه فرضی لمونځ هم په وخت کی د دفع کولو دیوه د خبیثو شیانو» یعنی چې غولونیولی وی تنیګي یا بولو نیولی وي او یا ګوز او پُسکی. بلکه هغه کار دې فیصله کړي بیا که فرض کوي اوکه نفل» ولې چې هوښیار سَړي اول د مُدعی کار ورکوي بیا نو که وَرَجې او که غوښې خوري نوش جان دې سي»

## وَحُضُورُ طَعَامٍ تَتَوَقَّهُ نَفْسُهُ وَمَا يَشْغَلُ الْبَالَ وَيُخِلُّ بِالْخُشُوْعِ

او ډېر ننګه نفل مکروه دي په وخت کښې د حضور د خوړ کې شئ چې ډېر شوق مند وي نفس ده
وهغه خوړ کې شئ ته، او ډېر ننګه مکروه دي نفل په وخت کې د حضور د یو شي چې دده
زړه پـه مشغوله کیږي او دده وخشوع او حضوریته د لمانځه خلل رسوي. دا عطف
دعام دی پر خاص باندې مثلاً دده یو ګران دوست راغلی وي، چې دده یه په رغبر او یه
پوښتنه د جوړ یا ناجوړه پـه لمانځه کې سوداوي، او یا مثلاً یو مسکین سړي ته یو غنی
موړ سړی میلمه راغلی وي. چې د مسکین دا خیال وي. چې زکوة یا خیرات بی راوړي وي
او پـه زړه کی داغه سوداوه نودی دې نفل نه کوی سړه ددغه شغل قلب بلکه سوداي
وکاږی بیا دی فارغه زړه نفل وکړي. اوکه سړي په انسانی حالاتو کښې بنه غور اوفکر
وکړي د شغل قلب اسباب ډېر دي.

حاصل دا دی چې نفل هغه وخت سړي کوي چې حضور، د عظمت د خدای جل سلطانه کولای
سی او بیره او امید یه پـه لمانځه کی د خدای جل شانه څخه پیدا وي، **تتمّه**: پس
له سپید وخت خبری بیله ضرور ته د چا سره کول مکروه دي. تر هغه وخته چې د سحار لمونځ کړي
مګر خبری د خیر او علم مکروه نه دي. او که سړي سنت د سحار وکړه او بیا یه تر فرضو د مخه بلا فائده
خبری وکړي مکروه خو په اتفاق دی لکن بعض فقهاء وائي چې سُنت یه باطل سوه بیر ته دې
راوګرځوي، او بعض علماء وائي چې د سحار تر لمانځه وروسته د لمر تر راختو د مخه دی سړي
په یو حاجت یا یو کار پسې نه ځي. لکن صحیح دا ده چې پروا نه لري،» ط» او د ماخستن تر لمانځه
وروسته بیفائدی مجلسونه لکه د عوامو چې عادت دی ګناه او مکروه دی. ولې په حدیث
پاك کی راغلی دی چې آنحضرت صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمْ خوب د مخه د ماخستن تر لمانځه او خبری
وروسته تر هغه مکروه ګڼرلې، بَیت ـ بیا لینم حبیبی یا طبیبی: ازین دو ګر یکی بودی چه بودی»
ـ بهار مرمان عیداست و نور: بهار عاشقان دیدار یاران: چشم بد اندیش که برکنده باد: عیب نماید هنرش در نظر»
ـ انان که ذره وار بصورت محتقر اند: فرد از خیال و ناز بر فردوس ننګر اند:





## دعا قل سري کار

پوه سه که یو وخت په یو مطلب پسې روان وې. او په بازار کې سپي
درپسې وغپله. خپل تګ ادامه ورکړه، او د سپي سره په شخړه
ځان مه اخته کوه که څه هم غټ او کُټه سپی وي. ولې د بازاري سپي دا غړ غفا ده» سړي
پسې دا پړلای. یو څو زمانه به غاپي اخیر بـه ستړي سي، او بیا به یو بل څوك پر دا سړي
په دا ننګ ووهي. نو به سړ پر خپړو کښېنې دي لکۍ بـه ترڅان لاندې کړي غفا به پرېږدي:
ماته ډېر وارونه په تجربـه ثابته ثابته سوې ده» صریحي معنا دَ دغه عبارت او کنائي معنی
دواړي وسنجوه. هم دا اوس د مکروهاتو باب خلاص سو. او باب الاذان شروع کیږي
اِنْ شَآءَ اللّٰهُ تَعَالٰی»

## حَضرَت ابُوالفَضل ایُوبي ته»

ښه مو واوریده نعره ای افغانا نومبارك
په پښتو ژبـه دین آسان کړو عالما نومُبارك
د سجدی سرونه کښته کړي خپل رب ته همیش.
چې مسائلي تول واضح کړي وارثا نومُبارك
دا فغان تاریخ به بیا بـ نارکی ګرم
ایوبي چې قلم یې ته کړ زمریا نومبارك
نن ګلزار محمد ﷺ ډېر معطر رامعلومیږي
ایوبي بُلبل میلمه دئ بلبلا نومبارك
دهمت شملې یې ته د اسمان په لوړ جګیږي.
دا تاریخ، دا فقاهت ای اتلا نومبارك
چې قلم زه حقانی دده پـه وصف ګرینـدی کړم
نه رسیږی حقیقت ته حقانیا نومُبارك

# بَابُ الاَذَانِ

باب دی په بیان کی د اذان، **پوښتنه**: چې علامه شامي په رَدِ المحتار کی او مصنفؒ په مَرَاقی الفلاح کی وائی. چونکه اوقات د لمونځو اسباب ظاهره وو د پاره د لمونځو او د پاره د خبره ولو د خلګو پـه نعمت الهی چې لمونځونه دي. نو دې وجهی ذکر د وختو مصنفؒ د مخه کړې. **پوښتنه**: چې په اوقاتو د لمونځو خبرتیا د خواصو خلګو کار دی. چې علماء دی چې هغوی وختونه د لمونځو په علامات شرعیه وو سره معلومولای سي لکه دیك چندی دوچندی، وغروب الشفق، وطلوع الفجر پـه ذریعه، او اذان د پاره د پاره د خبر ولو د عوامو دی په وختو د لمونځو، نو چونکه خواص تر عوامو شرافت لري نو دې کَبله اوقات الصلوٰة تر اذان د مخه مصنفؒ ذکر کړه،

**پوښتنه**، آذان کله مشروع سوی دی **جواب**: بعض وائی چې په اول کال کی د هجرت او بعض وائی چې دوهم کال کښې د هجرت په مدینه منوره کی **پوښتنه** اول باعث د مشروع والي د آذان څه شئ وُو **جواب**: څه وخت چې آنحضرت صلی الله علیه وَسَلم او اصحابؓ پـه مَدینه مُنوره کی سَره جمعه سَوله، او مسجد نبوی ﷺ تعمیر سُو. او د جماعَت لمونځونه پـه هغه مُبارك مسجد کی شروع سَوله. نو اصحاب کرامؓ ته دا مشکل پیښ سُو چې اوقات د جماعَت نبوی ﷺ به نه وره معلومیدَ له. وَلې چې آنحضرت صَلی اللهُ علیه وَسَلم به بعض لمونځونه چې صحابهؓ به ډیر اغلی وَه وختي بی اداء کړې. او بعض اصحابؓ چې وختی به نه وَه راغلی د هغو څخه به دَجماعَت لمونځ تیر سُو. او بعض صحابهؓ چې د جماعَت نبوی ﷺ بی ډیر حرص درلودی. پـه بعضو وختو کی به ډیر وختی مسجد ته رَاغلی وَه. او بیا به ډیره انتظار څخه به جماعت ودریدی. نو د دې مشکل د پاره موضوع وحضو انورؐ ته پیش سَوله. او آنحضرت صَلَی اللهُ عَلیه وَسَلم صحابهؓ د مشوری د پاره راوغوښتل. چې د جماعت د پنځو لمونځو د پاره یو عَلامه کښیږدي، چې پس هغه علامَه باندی خلګ لمونځو ته راځی نو پـه دی سَره بـه هغه مشکل مذکوره دفع او رفع سِي. نو پـه دی مشوره کی بعض صحابهؓ





ناقوس پیش کړې چې هغه یو وسپنه یا وسپنوهی چې زنګ یه بولې، فقال صَلی الله علیه وسلم هُوَ للنصاری، دا ناقوس عَلامه د عبادَت د نصارا وو دی. یعنی په دینی شیا نو کښی اسلام د کفارو سره مشابهت نه قبلوي. او بعض کسانو بوق د علامی د پاره وړاندی کړي چې هغه ته تُرم یا بګل وَائی: عَلیه الصَّلوٰة وَالسَّلام وو یَله هُوَ للیهود. او بعض خلګو داور بلیده پـه وخت کښی د لمانځه د علامی پـه توګه وړاندی کی: آنحضرت صَلی الله علیه وسلم وو یَله، هُوَ للمجوس، او پـه بعض روایاتو کښی راغلی دی که څه هم بخاری او مُسلم د غه روایت نه دی راوړی. چې بعض خلګو وویله چې ډول یا دریه ټکول دې د لمانځه عَلامه سِی. آنحضرت صَلی اللهُ علیه وَسلم و وئیلہ: هُوَ للروم، او حضرت عمرؓ وویَله: اَوَلَا تُبعَثُونَ رَجُلًا یُنَادِی بِالصَّلوٰة، ایا تاسی نه باعث کوی یو سړی چې د لمانځه پـه وخت کښی دی پـه زوره نعره کوي. آنحضرتؐ دا رایه خوښه کړه او یو سړې وټاکی چې د لمانځه په وخت کښی د ده دا نعره کوي،

اَلصَّلوٰةُ جَامِعَةٌ. پس له څو ورځو څخه چونکه، اَلصَّلوٰةُ جَامِعَةٌ، یو نعره وه د چا غوږ ته به ور سیده او چا به نه وا وریده، او لیری خلګو خو بیخی نه اوریده. او که کم سړی به پـه یو شغل اخته وو هغه به هم نه وا وریده. نو هغه مذکور مشکل تقریبًا الآن کما کان باقی پاته وُو. بیا دی مشکل د حل د پاره به حضور انورؐ کی د مشوری مجلس جوړ سُو په دوهم مجلس کی هغه د نا قوس او بُوق، او اور او ډول، نومان مجلس ته وړاندی سَوله او د آنحضرت صلی الله علیه وسلم د خوا رَد سَوه. او مجلس بیله کومی فیصَلی پای ته ورسید راوی وائی چې آنحضرت صلی الله عَلیه وَسَلم د دی مجلس څخه غمجن ولاړ سو، عبدُالله ابن زیدؓ وائی چې پـه سبب د هَم یعنی غم د آنحضرت صَلی اللهُ علیه وَسَلم، زه ډې شي ډیر غمجن وَم. دی رض وائی چې زه پـه مَابَین کښی د ویښ او بیده وَم یعنی په غرق خوب سره نوم بیده سَوی چې پـه خوب کی می یو سړی وَلیدی چې شنی جامی یـه اغوستی وې او پر یوه لوټه د دیواله ودریدی. او پـلاس کی ناقوس وو، ما ور ته وویله چې دا ناقوس وو، ما ورته وویله چې دا ناقوس نه خرڅوی ده راته وویل چې ناقوس ته څه کوې. ما ورته

وو یله چې مونږ په نا قوس سره د لمونځو وختونه معلومه وو، د دې سړي اتروویله
چې زه تر ناقوس ښه شئ درښیم چې دیوه مطلب دپاره د دې ته وښیم، ماورته وویله چې هو اوي
ښیه، نودې وقبلې ته مخامخ ودریدی. او وی وئیله «اَللّٰهُ اَکْبَرُ» تر اخیره پورې داذان
دکلمو، او بیا هغه سړي لږ له لږ د رنګه هغه کلمات د اقامت شروع کړې. او په کښې یې
«قَدْ قَامَتِ الصَّلٰوۃ» دوه واره وویل. عبد الله رض وائي چې سحار ما داخپل لیدلی خوب
په حضورکې د رسول الله صلی الله علیه وسلم عرض کړې. آنحضرت صلی الله علیه وسلم
وویله «رُؤْیَا حَقٌّ اِنْ شَآءَ اللّٰهُ تَعَالٰی» داخوب حق دی که دخدای رضاوه، نوځ ما په بنین
په وخت کې علیه الصلوٰۃ والسلام ماته وویل چې ستا دخوب لیدلې کلمې وبلال رض ته ور
وښیه ولې چې دبلال رض اواز تر اواز ستا لوړدی. عبد الله رض وائي چې بلال رض په یوه لوړ
بام په مدینه کښې ودریدی. او ما هم هغه د اذان کلمې ورته وئیلې او ده آذان کاوه. نودا آذان
حضرت عمر رض په خپل کور کښې واوریدی. نو په لنګ کښې چې اوږی په ښور ولی یعنی په
ډیر تلوار، وه آنحضرت صلی الله علیه وسلم ته راغلی. او وی وئیله چې قسم په هغه خدای
دی چې ته ئې په حقه سره نبي رااستولی ئې.
چې ماهم دغه شي د شپې په خوب ولیدی لکن عبد الله رض ترما سبقت وکړي
رسول الله صلی الله علیه وسلم وو ئیله «فَلِلّٰهِ الْحَمْدُ وَاِنَّهٗ لَاثْبَتُ» او داسې
روایت هم راغلی دی چې. او ټیا خلور ولس کسانو هم په دغه شپه ورته خوب
لیدلی وو:
په دې کې اختلاف دی چې د خوب سړي څوک بعض وائي چې دا حضرت جبرئیل
علیه السلام وو. او بعض وائي بله ملکه وه. په هرصورت اذان په امر د علیه
الصلوٰۃ والسلام ثابت دی. او دا خوب صرف یو سبب وو»

اللهم اغفر لمؤلفه ولکاتبه ولوالدیهما ولجمیع المؤمنین ولمن نظر الیها
اٰمین یارب العلمین برحمتك یا ارحم الراحمین:





او هغه خبره چې په بعض کتابو کښې راغلی ده چې اذان په ښوونه د حضرت جبرئیل
په شپه د معراج په بیت المقدس کې چې آنحضرت صلی الله علیه وسلم و نورو انبیاء
علیهم السلام او و بعض ملکوته د جماعت لمونځ ورکاوه ثابت دی. لکن علیه السلام چې د
مشکل په وخت کښې په هغه عمل نه وکی دده مبارک خیال داوو، چې هغه آذان د هغې شپې
او لما څخه پورې خاص وو، د روایت وائي چې په هیڅ حدیث کې دآذان په هغه شپه کښې
تائید نسته که څه هم امامت د هغې شپې په حدیثو مبارکه وو کښې سته» والله اعلم بالصواب
جائي وائي ـ دران مسجد امام انبیاء شد: صف پیشینان را پیشوا شد: تاریخ اسلامی خبری کوئ
پوښتنه: چې اذان او اقامت دخصوصیاتو څخه د امت مرحومه دی. سوال: په
بعض روایاتو کښې راغلي دي چې آدم علیه السلام چې هکله ته راکوز سو څه وحشت ورته
پیښ سو نو جبرئیل علیه السلام دده دوحشت او دهشت د دفعي دپاره اذان وکړی.
جواب: دا روایت خود خصوصیت سره منافي نه دی. ولې چې د خصوصیت څخه د اذان په
دې امت پورې اذان کول دپاره لمونځو دي نه مطلق اذان» امام طحطاوی د دره منیفه څخه
داسې نقل کړي دی. چې د دوو مؤذنانو اذان په یوه پلا کول. د بنوامیه وو په خلافت
کې احداث سوی دی. او اول هغه څوک چې پر مناره د اذان په درود پر علیه السلام پر بلند
آواز و یلو ته اجازه ورکړې وه» هغه حاجي بن الاشرف شعبان بن حسین بن محمد بن قلاوون
وو، په امر د محتسب نجم الدین طنبدی او د هغه تاریخ مباشت دبرات ۷۹۱ھ دی.
کذا قال السیوطی سوال: آیا دانو بدعت نه دی. جواب: علامه طحطاوی
په ۱۱۵۵ کی وائي «والصواب من الاقوال انها بدعة حسنة» او بعض مالکیان د دې پر
خلاف دی. تله هم دا اوس چې په حرمینو شریفینو کې د رواج نسته» او دغه رنګه تسبیح ویل د
مؤذنانو په ثلث اخیر کښې د شپې»
پوښتنه: اذان په زمانه کښې د آنحضرت صلی الله علیه وسلم په مسجد نبوي کې کیدی
که څرنګه جواب: په زمانه کې د علیه السلام چونکه مناره یا بوبل لوړ ځای په
مسجد نبوي کې نه وو. نو بلال رض به په سدس اخیر کې د شپې یوه لوړ بام ته چې پرشا وخوا

دمسجد نبویؐ وو چې هغه بام دیوی بنځی وُو. دَبنی النجار څخه وَرتی او هُوری بی اذان کاوه او په نورو لمونځو کی هم هغه بام ته وَر تلی او اذان یه کاوه» او اول هغه ځولی چې په مسجد کښی جُوړه کړه او پر هغی مناری بی اذان کاوه سلمه بن خلف صحابی وو رضی الله تعالیٰ عنه چې دمِصر وَالی وو په زمانه کی دمعاویه رض. او هغه رواج تر دی او سه پورې باته دئ.

**پوښتنه**: اذان او اقامت افضل دی او که امامت **جواب**: په فتح القدیر کښی وَائي چې په نیزد امام اعظم ابوحنیفهؒ امامت افضل کار دئ ولې چې آنحضرت صلی الله علیه وسلم او دغه رنګه خلفاء راشدین رَضِیَ اللهُ تَعَالیٰ عَنْهُم پر امامت مواظبت او همیشه توب کړی دئ. **سوال**: حضرت امیر المؤمنین عمرؓ وَائي: لَوْلَا الخِلَافَةُ لَاَذَّنْتُ»، که نه وای شغل په کار و دخلافت چې دهغه شغل سَره سره مرَاعات دَوختود اذان نه سم کولای. نو ما به اذان کولای پخپله. نو دې څخه فضیلت دَاذان تر امامت نه معلومیږی! **جواب**: دَقول دعمرؓ معنا داده چې اذان به می هم کولای یعنی سره دامامت **پوښتنه**: مصنفؒ په مَرَاقی الفلاح کښی وَائي چې ثبوت داذان په قرآن او سُنت سره سوی دئ. نو سنت نبویؐ خو هغه وو چې وړاندی تیر سو د قرآن د کوم ایت ثبوت داذان فهمیږي. **جواب**: ثبوت داذان دد ی ایت قرانی څخه معلومیږی یَا اَیُّهَا الَّذِیْنَ اٰمَنُوْا اِذَا نُوْدِیَ لِلصَّلٰوةِ مِنْ یَوْمِ الْجُمُعَةِ» الآیه» ولې چې دَجُمعی داذان او د نورو اذانو تر ما بین قائِل با الفصل نسته»

**فائده**: اذان په لغت عربی کښی مطلق خبرتیا ته وَائي. او په عُرف کی د شرع شریفی دغه مخصوصه خبرتیاده» **پوښتنه**: اذان په بله ژبه بیله عربی روادی او که نه! مثلاً په پښتو داسی وَوائي: خدای ډیر لوی دی» وهکذا **جواب** صحیح دادی چې نه دی روا **پوښتنه**: اذان دنا بالغه نر روادی که نه! **جواب**: هو روادی چې عاقِل وي مګر بیا هم شرط د کامِل اذان دادئ. چې مؤذن به صالح سړی وي. او هم به د لمونځو په وختو سنه پوهیږي. او د مسجد مقتدیا نو د جماعت کولو به تفتیش کوي. او کم ځولی چې





جماعت ته نه راځي بی عذره هغه ته به وعظ کوي او زجر به کوي. او پر لوړځای به اذان کوي مخارج وقبلی ته» او بلند اواز حسن الصوت به وي. داخبري به عنقریب راسی اِنْ شَآءَ الله» لکن په لوړځای اذان کول په اسلامی نړۍ ټوله کی په ټولو ښار وکښی هم اوس پاته دی حتیٰ فی الحرمین الشریفین» په دی سبب چې پر مکان بلنده داذان کولو حکمت داوُو، چې داذان تر ډیره ځای پوری ولاړ سی او ډیر خلګ په خبر سِي. اوس چونکه آله دَلاود سپیکر ا بیجا دسوی ده. او هغه تر هر ځایه آواز رسوي نو دَلوړځای داذان ضرورت نه دی پاته» او په فقه شریفه کی ډیر مسئله ده چې په سَبب دَتبدل د سَبب حکم بدلیږي. دمثال په توګه دَجهاد او غزا او سبب دَدفع د شر دکفار و دی، نو که فرضاً ټوله دنړۍ کافران مسلمانان سِی او شر او فساد دَفع سی نو حکم د جهاد هم پوره ته کیږي،

**پوښتنه**: چې په بحر الرائق کښی او مَرَاقی کی هم وَائي چې اذان سُنت مؤکد دی نن دی و واجبُوته حتیٰ بعض عُلماء دواجب نوم ورایښی دئ. او پر او ریدونکو داذان اجابت بالقول یعنی هغه کلی چې مؤذن یه وَائي هغه به ورسره وَائي چې بیان بی عنقریب اسی، او په فعل سره لازم دی یعنی دَلمانځه او جماعت په تیاری دی بخت سِی. لکن په داسِنیُ وخت کی اجابت بالقول عوام خو څه کوي د ډیرو خواصُو یعنی مُلایانو او طالبانو څخه پاته دئ. هلته اذان کیږی دلته دوی بندار سره کوي. وَاِلَی اللهِ المشتکیٰ»

## دُعَاء

خدایه و بخښی مؤلف او هم کاتب .. منتجابه وي دعا تل دغا ئب
هم معاف کړي ګنهونه د کتونکو .. و مضمون ته د کتاب تی کړي غالب
هم معاف کړي لغزشونه دامت ټول . چې پیدا نه سی په مومن کی څوک راسِب
وغفران ته دمَولا دا ټوله هیڅ دي .. حقاني چې لوی څښتن موږ ی حاسِب

حقاني غفر له در کوټه. ۱۳/۷/۱۴۲۱ھ

# آګاهي

محترمو لوستونکو! که ستا سو دا فکر وي چې حضرت علامه محمد عُبیدُالله الایوبي القندهاري سُلیما نخیلی النقشبندی به چې ده مضمون په اخرکی م ط، راوړی دي دی مطلب بر څه وي. محترمو! د م، معناده مراقی الفلاح چې د نور الایضاح یوه معتمده شرحه ده.

او ط، معناده طحطاوي چې دا هم د دی مبارك کتاب یوه معتمده شرحه ده. اوکه دا سوال درته پید اوي چې د اکتاب به لیکلی چاوي. د ازما احقر محتاج دُعا فضل الحق حقاني چې د حضرت ایوبيؒ یواد ني شاگرد یم ما یه کتابت کړی دی. او هم و ماته حضرت ایوبيؒ د دے کتاب ټوله حقوق د کتابت، طباعت. راکړي دي» ذالكَ فضل الله یُؤ تیه مَن یشآءُ.

اوکه دا سوال درته پید اوی چې دا به پرکوم مکتبه باندی چاپ سوی وی. نو دا کتاب زمونږ مکتبی چې په نامه د «مکتبة القراءت وَ التجوید» ده شائع کړي دی وروسته نن ډیرو مشکلاتو او مالي او جاني ستړیا وو وروسته نو د اکتاب که چیری زمونږ د مکتبی څخه علاوه پر بل نامه یا چاچاپ کړی او یا یه په ډیر تعداد سره چاپوي او خرخوي ئې. هغه مسروقه دئ. او یا یه هم لاس وهنه په کښی کړیده. د دی مبارك کتاب د راینولو په وخت کښی د مکتبی نوم د مصنف نوم او د کاتب نوم یاد لری هسی نه چې پر ارما نونو مو اوبه د ر توی کړي او د سازش په دریاب کی لاهو کړي. د کتاب مختصر پیژندنه:

د کتاب نوم۔ د نور الایضاح الایوبي نوي پښتو شرحه۔

د مصنف نوم۔ الشیخ ابوالفضل محمد عُبَید الله الایوبي القند هاری الحنفی۔

د کاتب نوم محمد فضل الحق حقاني یکی از تلامذهٔ حضرت ایوبي.

د ناشر نوم مکتَبة القراءة والتجوید مالكِ مکتبه شمسُ الحق»





## سُنَّ الاَذَانُ وَالاِقَامَةُ سُنَّةً مُؤَكَّدَةً

الاعراب: قوله سُنَّ علی صیغة المجهول وقوله الاذان مفعول مالم یسم فاعلہٗ قوله وَالاقامَةُ بالرفع معطوف علی الاذان وقوله سنة مؤكدةً منصوب علی انہ مفعول مطلق لبیان النوع: ترجمه:

سنت ګڼل سوی دی اذان او اقامت پر طریقه د سُنت مؤکد یعنی ټینګ سنت دي دواړه. په متن کی او په شرح کی د دی مصنفؒ وصحیح روایت ته اشاره کړی ده یعنی چې اذان واجب نه دی ولی چې هغه وخت چې علیه السلام و یوه اعرابي ته کیفیت د لمانځه ور ښوولی اذان یه نه کړی ورته ذکر او د غه رنګه اقامت»، دَلیل مشترك د دواړو د سُنت والی دادئ چې د غه وخت چې د غه دوه یعنی اذان او اقامت مشروع سوي دي. آنحضرت صَلی اللهُ علیه وَسَلم مواظبت پر کړي دی. یعنی هَمیشه به دواړه کیدله. د دے وجه څخه بعض حنیفیانؒ وائي چې واجب دی لکن سُنت مؤکد چونکه په حکم کښی د واجب دئ چې په ترك یه سړی ګناه ګار ګرځي. لکه د واجب نو دا دوه قوله سره نږدې دي. البته ګناه په ترك د واجبو کی ډیره ده تر ګناه په ترك د سُنت مؤکدي او د اذان په باره کښی حَدیث قولي هم راغلی دی چې امام بخاريؒ او نورو محدثینوؒ روایت کړی دئ. اِذَا حَضَرَتِ الصَّلوٰةُ فَلیُؤَذِّنْ احدُکم وَ لیُؤمکم اکبَرُکُمْ، یعنی چې لمونځ حاضر سي او وخت یه راسی نو دي اذان وکړي یو د تاسی څخه او امامت دی درکړي مشر ستاسی» د دي حدیث مُبارك تفصیل به په خپل ځای کی راسی» اِنْ شَآءَ اللهُ تعَالیٰ،،

**پوهسه:** چې سُنت پر دوه قسمه دئ. **اول سُنت الهدیٰ:** سُنتة الهدیٰ هغه کار دئ قولي یا فِعلی چې په پریښولو کښی ګناه خووي یا نږدی وګناه ته د ترك الواجب لکه سُنت او یا تر هغه کمه ګناه وي. د سُنت الهدیٰ مثالونه ډیر دی لکه اذان، اقامت، د جماعت لمونځ پر پریښودل. او د پنځو لمونځو مختنیا وروسته سُنت وغیر ذالكَ «او **دوهم سُنت زائدهٔ**» بولي چې د هغو په ترك کی خو هیڅ ګناه نه وي. مګر په کولو کښی البته ثواب وي. لکه د آنحضرت صلی الله علیه وسلم د ژوندانه طبعی کارونه یعنی په خوړلو په ناسته، په تګ، په لباس وَغیره کی او داسی نور شیان» لکن اُمتیانو لره پکار ده چې د سُنت زائده په باره کښی د غفلت لاره

نه کی مختاره. بلکه سُنت زائده حسب المعلوم هم رځای کړي، اٰیت کریمه، لَقَدْ کَانَ لَکُمْ فِیْ رَسُوْلِ اللّٰهِ اُسْوَةٌ حَسَنَةٌ» قَالَ المصنفُ: **لِلْفَرَائِضِ** یعنی اذان او اقامت دپاره دفرائضو دي. نو دجمعې لمونځ په کښی داخل سُو. مګر داخترو لمونځ، دجنازې لمونځ، او داستسقاء لمونځ، او وتر څندی ووتل» دهغوی دپاره اذان او اقامت نسته، نو بناءً علی هذا د ماخستن اذان دوترو دپاره نه دئ. پرصحیح مذهب، او لعبض علماء وائي چې د ماخستن اذان دوترو دپاره هم دی په دی سبب چې د ماخستن د فرضو او د وترو وخت سره شریك دئ. قَالَ **وَلَوْمُنْفَرِدًا** که څه هم دغه فرضی لمونځ یو اړی کوی. لکن دا حکم په صحرا کی دی نه په بازارو او قریو کښی. په حدیث شریف کی داسی راغلی دي. اِذَا کَانَ الرَّجُلُ بِاَرْضٍ، ای فلاة که څیرې یو سړی په صحرا کی وي. فَحَانَتِ الصَّلٰوةُ» نو داخل سی وخت د لمانځه» فَلْیَتَوَضَّأْ وَاِنْ لَّمْ یَجِدْ مَآءً فَلْیَتَیَمَّمْ» پس او دس دې تازه کړي. او که اوبه نه وی نو تیمم دی وکړي ،، فَاِنْ اَقَامَ صَلّٰی مَعَهٗ مَلَکَانِ» نو که اقامت وکړي لمونځ کوی دده سره یعنی په جماعت سره دوی ملکی، چې غالبًا مراد په حفظه وي» وَاِنْ اَذَّنَ وَاَقَامَ صَلّٰی مَعَهٗ مِنْ جُنُوْدِ اللّٰهِ مَالَا یُرٰی طَرَفَاهُ» او کی اذان او اقامت دواړه وکړ دده سره به په جماعت لمونځ وکړي یو جماعت دملکو چې جُند الله دی دومره ډیری چې دوه طرفه بی نه معلومیږي» ط، مر، قَالَ المصنفُ

## اَدَاءً اَوْ قَضَاءً سَفَرًا وَحَضَرًا لِلرِّجَالِ وَکُرِهَا لِلنِّسَاءِ

که په وخت کی لمونځ کوی او کی قضائي کوی. که په سفر کی وي او که بیله سفره وي. او اذان او اقامت سنت دی نرو لره. او مکروه دی ښځو لره. **سوال**: بعض اماما نیا طالبانو د حضر ترجمه په کور سره کوی او د مخه ذکر سوه چې اذان او اقامت په صحرا کی کول سُنت دی نه په بنارو کی مثلا نو بدی ترجمی او د ماقبل منافات نسته» **جواب**: دا ترجمه غلطه ده بلکه د حضر څخه دلته مُراد مقابل د سفر دئ. نو دا کیدای سی چې سړي د شرعي مسافر نه وي او په صحرا کښی دی وي. لکه یو سړي چې د کور د پاره په صحرا کښی بوټی ټولوله او یا پسونه څروی وغیره.





**پوښتنه**: چې اذان او اقامت. د سُنتو څخه د جماعت مستحبه دی»، نو ښځو د پاره پیاد نو د پاره یاد لڅو خلګو د پاره نسته. ولی چې د دوی جماعت مشروع نه دئ. ب، ط» او غیر له دمعذورو خلګو د پاره چې د جمعې په ورځ د ماپښین لمونځ په جماعت کوی اذان او اقامت نسته»، ولی چې دا جماعت د دوی په بناړ کی مکروه دئ. ح، ط» او د ښځو د پاره کراهت دا اذان او اقامت د دی وجهی څخه دئ. چې بناء د حال د دوی پر ستر ده. او رفع د صوت د دوی حرام دی. او په اقامت کښی هم رفع صوت فی الجمله سته که څه هم تر اذان کم دئ.

**دزمانی حال**: بعض خلګ چې زوی یا ورور نه مثلا واده کوی نو دوی قریبا ن ښځی او کلی او کوڅې ښځی خبری کړي. او هغه ښځی هم دواده د پاره هر څه پښینی کالی چې په کور کی لری وا غوندي. او شونډان هم سره کړي. سترګی توری کړي او سرخاو سپیده هم وکړي. چې میړه هم دا ډغه سی ښا ئسته حال کی نه وه لیدلي. او رپې ورسره او اخلي. واده ته روانی سي. او عطر حسب المقدور یه هم په ځان پوری مښلوي. ............ وخت چې دواده وکو ورسیدلي چادری و غورځوی لغ سروینه، د ډیوشرف جوړ کړي. او بدلي په د ډیریم کور او ټوله د محلي خلګ اوري. په دی کورکی نران هم ګرځی ښځی باك نه په کوی. او حال هم دا او س د عوامو څخه و خواصو یعنی مُلایا نو ته اِلَّا مَا شَاءَ اللّٰهُ تجاوز کړی دی نو ته فکرو کړه چې اذان او اقامت چې دخدای پاك ذکر دی په رفع الصوت د دوی ته مکروه دی نو بدلي او غزلې څرنګه د دوی ته په رفع الصوت روا وي.

**دطالبانو حکومت په افغانستان کی**، پوښتنه چې جهانیان مُسلمانان او کافران ټوله په دې خبر دی چې د افغانستان خلك تخمینًا ۲۲ کاله کیږي چې داور په لمبو کی سوځیده. او د مخه د طالبانو تر حکومت په افغانستان کی د چا مال او نه د چا ناموس محفوظ وو، مګر بیا هم جهانیانو د افغانستان حکومت په رسمیت پیژندئ. هغه وسنی وخت کی چې خدای جل سُلطانه اراده او رحم وکړ چې دافغانستان د خلګو څخه دا عذاب الیم پورته کړي نو بیچاره طالبان د مدرسو او مسجدو د حجرو څخه را ویستل چې په اول وهلت کی ښځی محدود عدد یه وو.

او د دوئ سره د زمانې په مناسبت بيخي بيکاره اسلحه يعنې کلاشنکوف نه موجود وو، امّا سره د هغه خدای جل سُلطانه دوی ته پر بيخي لږ زمانه کښې تسلط او غلبه ورکړه پر اکثرو لويو ښارونو او قريو باندې. حتی چې په لږ وخت دوی مُسلّط شول دخدای جل شانه په توفيق پر ټولې پښتنو ځای کې د افغانستان، لکن بيا هم نړې خصوصاً غربيان او په دوی کې بيا خاص امريکا چې په ټوله نړۍ کې لوی دُښمن دی د مسلمانانو، د طالبانو حکومت په رسميت نه پيژني، بلکه علاوه پر هغه قسم قسم بنديزونه يې پرې د غريب حکومت د طالبانو لګولي دي، او دوی رقم رقم بهانې ورته کوي:

**يوه بهانه د دوئ:** چې د دې مقام سره تعلق لري دا ده چې د طالبانو حکومت د ښځو حقوق تر پښو لاندې کړي دي. د دې بهانې جواب دادی چې په بين المللي قانون کښې دا ماده موجوده ده "چې يو حکومت به د بل حکومت په ديني او مذهبي چارو کښې لاس وهنه نه کوي" نو اوس د غربيانو څخه خصوصاً د امريکا څخه طالبان دا پوښتنه کوي: چې آيا حقوق د ښځو دا دي چې دوی په لڅ سر او لڅو پښو يو دې په بازارو کښې ګرځي او په داغسې لباس کې دې ښو وګڼې ته د تعليم اوزده کړې د پاره ځي. که دوی وائي چې هو کې دغه د ښځو حق دئ نو طالبان ورته وائي چې زمونږ دين اسلام چې حق دين دئ. او زمونږ قرآن چې آسماني کتاب دی د دغسې وضعيت څخه سخت ممانعت کوي" نو ولې غربيان زمونږ په ديني او مذهبي چارو کښې مداخلت کوي. او ولې دوی د بين المللي قانون مراعات نه کوي. او که غربيان وائي چې نجۍ او ښځوې دې په حجاب شرعي کې ستاسي د دين تعليم او زده کړه کوي او ښو ونځيو ته دې ځي. نو طالبان وائي چې صحيح ده دا حق لري. لکن د دې عملي کول مونږ ته ګران دی. ولې چې زمونږ اقتصادي حالت لکه د نيا والا و ته چې معلوم دئ. په ټوله نړۍ کې کښې ډېر ضعيف دې او فوق الذکر عمل ډېره بودې جه غواړي. نو د نيا وال او غربيان او امريکايان دې زمونږ ډېرې مرستې وکړي. او مونږ دې پر پښو ودره وي. او زمونږ و يجاړ مملکت دې را لره آباد کړي. او بيا دې له مونږ څخه د ښځو د حقوقو طلب وکړي. لکن دوی په عوض کې د مرستو پر مونږ اقتصادي بنديزونه لګوي چې مونږ لا نور د پښو څخه وغورځوي دا خو د نړۍ وال و دانصاف څخه خلاف ده=





نواملي خبره بله ده هغه دا ده چې د افغانستان چونکه د اسې غيور او باشجاعت او سربښندونکې خلک دي. او پر اسلام او دين د ومره عاشقان دي چې روس چې د دنيا يو ستر قوت و و غربيان ځندی په ډېره بيره کښې وه چې د دوئ پر خاوره يعنې افغانستان يې تجاوز وکړې نو د افغانستان پير و برنا، نر او ښځو لوی لوی قربانۍ ورکړې او روس اخير الامر خپل هيواده څخه وشاړه. بلکه د افغانستان د خلګو په همت شوروی اتحاد ټوټه ټوټه سو او د الله په لوی فضل سره د استر قدرت يې په بيخي پاتنه قدرت سره بدل سُو او غربيان دده د غمه خلاص سوه اَلحَمدُ لِلّٰهِ،

نو اوس د غربيانو دا عقيده ده که چيرې د افغانستان د اسلامي امارت حکومت پر پښو درولی سي. نو د غرب د پاره بيخي لويه خطره به وګرځي. که څه هم د طالبانو حکومت په بار بار ويلي دي چې مونږ د نړۍ د هيڅ حکومت په چارو کښې مداخلت نه کوو. لکن د دی اعلان سره سره د غربيانو وهم د زړه څخه نه وزي" نو ځکه په مختلفو بهانو سره غواړي چې دا حکومت د پښو څخه وغورځوي. او په ځای کی د دې موجوده امارت اسلامي خپل يو دست نشينه حکومت په افغانستان کی مابين نه راوړي" چې غربيانو او دنيا وال چې هر څه غواړي هغه حکومت يې کوی نو حله د دوئ بيره د زړه څخه ووزي. دا و وهغه مختصر بيان چې په دی ځای کی پر دی مسئله پوري تعلق در لودئ. او که تفصيلي بيان کوم نو به يو پوره کتاب تصنيف وشي، او س مصنفؒ د اذان کيفيت بيانوي. او وائي. قَالَ

## وَيُكَبِّرُ فِي اَوَّلِهٖ اَرْبَعًا وَيُثَنِّيْ تَكْبِيْرَ اٰخِرِهٖ كَبَاقِي اَلْفَاظِهٖ

او الله اکبر دې وائي په اول کښې څلور واره. او دوه واره دې وائي تکبير د اخر د اذان لکه نور الفاظ د اذان چې دوه واره ويل کيږي. يعنې شهادتين نه ټوله باقي الفاظ ولې چې لَا اِلٰهَ اِلَّا الله" خو په اخير کښې يو وار دی.

**مسئله:** اول څلور تکبيره دې په دوه آوازه سره وائي او څلور تکبيره ويل ظاهر الرواية دئ. او هم په دې روايت سره عمل په ټوله اسلامي نړۍ کی دئ.

اوحسنؒ د امام اعظمؒ څخه روایت کوي چې په اول کې د اذان دې دوه تکبیره وائی" وهو روایت عن ابی یوسفؒ وبه قال مالکؒ. ط،

**پوهښته**: چې اکبر بعض علماء وائي چې په معناه اعظم دئ. او بعض وائي چې په معناده اقدم دئ. او بعض وائي چې اسم تفضیل پرخپله معنا نه دی بلکه په معناد عظیم دی" ط"

**مسئله**: الله لفظ دی خواه په پیښ وائي. او د مصنفؒ مختاره په مراقی کی داده چې را" د اکبر دی په جزم سره یعنی سکون سره وائي. او مصنفؒ وائي چې کلمات د اذان دی په سکون سره وائي د پاره د وقف چې ترسل او ځنډ په کښې راسی او د اقامت کلمات دی هم په سکون سره وائي لکن په نیت د وقف نه حقیقی وقف تا چه په اقامت کښی حدر راسی یعنی چابك تیا"

**مسئله**: شهادتین دې دوه واره وائي. او په ما بین کښی دې لږ سکته کوي په اذان کی او حَیَّ عَلَی الصَّلٰوۃ دی دوه واره وائي. او مقصود بالذات په آذان کښی هم دغه کلمه ده ولې چې مقصود د اذان څخه بلنه د خلکو ده و لما نځه ته او دغه بلنه په دغه کلمه کښی ده" او حَیَّ عَلَی الْفَلَاحِ دی هم دوه واره وائي. او معنیٰ د حَیَّ عَلَی الْفَلَاحِ داده چې آراسته ووسئ و هغه کار ته چې په هغه کښی ستاسې فلاح او نجاة دی چې هغه لمونځ دئ. او د فلاح داسی یو لفظ دی چې په عربی ژبه کښی جامع د خیراتو د دغه لفظ په مثل بل لفظ نشته" ط"

## وَلَا تَرْجِیْعَ فِی الشَّهَادَتَیْنِ

او ترجیع نشته په دوو کلمو کښی د شهادت او صورت د ترجیع داده چې اول وار شهادتین په کراره آواز سره ووائی او بیا بیرته رجوع ورته وکړي او دوارې په لوړ او بلند آواز سره ووائي" ک، م"

**ددې مسئلې دلیل دادې**: چې په اذان کی د بلال ترجیع نه ده راغلی. او حضرت الامام شافعیؒ وائي چې ترجیع په اذان کی سُنت ده" ولې چې په اذان کی د ابی محذورهؓ ترجیع په امر د رسول الله صلی الله علیه وسلم موجوده ده" **والجواب عن جانب الحنفیة** دادی چې ابا محذورهؓ مؤذن وو چې ایمان یې نوی راوړی وو په مکه مکرمه کښی نو ده څخه آنحضرت صلی الله علیه وسلم د اذان کولو کیفیت وپوښتئ نو هغه حیاء





شهادتین کرار کرار ووئیلی. نو رسول الله صلی الله علیه وسلم یې غوږ ورو پیچی او ورته یې ووئیله چې شهادتینو ته بیرته رجوع وکړه. او په لوړ آواز یې ووایه. او دی یې په دې پوه کړي چې په حق کی حیاء نشته. نو د اتعلیم د اذان وو د ابی محذورهؓ گمان د ترجیع پر اغله" کذا ذکره محقق الحنفیةؒ فی جواب حدیث ابی محذورهؓ.

او د انصاف د لاری هم د اتوجیه صحیح ده. ولې چې بلالؓ په مسجد نبویؐ کی پنځ وخت په کلو مؤذن وو. نو که ترجیع سُنت وای نو ده به کولائ. او یا به په روایت کښی داسې راغلی وای چې آنحضرت صلی الله علیه وسلم بلالؓ په ترجیع سره امر کړی" وَلَمْ یُوجَدْ.

## وَالْاِقَامَةُ مِثْلُهٗ وَیَزِیْدُ بَعْدَ فَلَاحِ الْفَجْرِ اَلصَّلٰوةُ خَیْرٌ

او اقامت مثل دی د اذان او زیاتوی دې په آذان کښی د سحار" اَلصَّلٰوۃُ خَیْرٌ مِّنَ النَّوْمِ" دوه

## مِنَ النَّوْمِ مَرَّتَیْنِ وَبَعْدَ فَلَاحِ الْاِقَامَةِ قَدْ قَامَتِ

واره پس له "حَیَّ عَلَی الْفَلَاحِ" څخه یعنی لمونځ سره دی ترخوب (په دې کلمه کی آگاه کول کول دي د مسلمانانو چې اوس نو با لا خوب مه کوئ

## الصَّلٰوةُ مَرَّتَیْنِ

چې وخت د لمانځه دی او لمونځ ترخوب افضل دئ. او زیاتوی دی پس له حَیَّ عَلَی الْفَلَاحِ څخه د اقامت" قَدْ قَامَتِ الصَّلٰوۃُ دوه واره یعنی اوس لمونځ برپا یه کیږی" حدیث شریف" نبی علیه الصلٰوۃ والسلام امر کړي دئ بلالؓ په دغه اَلصَّلٰوۃُ خَیْرٌ مِّنَ النَّوْمِ سره ولې چې دا وخت د خوب او غفلت دئ.

**پوښتنه**: لفظ د خیرٌ اسم تفضیل دی لکه چې په صرف او نحوه کښی د اخبره ثابته ده. او د اسم تفضیل معنا د نحاةؒ پر قانون داده چې مفضل او مفضل علیه به په اصل معنا کی د مصدر سره شریکان وي. نو په اَلصَّلٰوۃُ خَیْرٌ مِّنَ النَّوْمِ" کی لمونځ چې مفضل دی ښه والی په کښی دی آیا په خوب کی چې مفضل علیه دی څه ښه والی شته !

**جواب**: خوب هم گاهې عبادت وي چې د بل عبادت سبب وي. لکه سرې چې د شپې

په اول کښې بيدېږي. ددې دپاره چې د تهجد د لمانځه ته بنه بيدار سم، اوياپه داسې وخت کې سرې بيده سي چې په هغه وخت کې په محله کښې سرود کيږي. نودی په خوب سره د هغه معصيت نه د سرود اوريدو ځان خلاصوی نود غه خوب هم عبادت دئ. اوبل جواب دا دی چې لمونځ استراحت دی په دنيا کښې. اولمونځ سبب دی د استراحت داخرت وراحت د اخرت افضل دی تر راحت د دنيا، هذا محصل ما في الشرح، قال المصنفؒ.

## وَيَتَمَهَّلُ فِي الْأَذَانِ وَيَسْرِعُ فِي الْإِقَامَةِ

او ځنډ دی کوي په اذان کې په سکته سره په ما بين کښې د څلورو الله اكبرو په اول کښې د اذان. اوبيا په ما بين کښې د هرو دوو کلمو، اوبحر الرائق والې چې کلمې د اذان دی درازې او اوږده وي. لکن په غايه کښې وائي چې دا اوږد ول د کلمو د اذان دی د سرود پر وزن نه وي، كما يفعله المؤذنين في العصر الحاضر.

**مسئله:** که چا اذان چابک چابک وکړې مکروه دی، فتح. او اذان دی بېرته راوگرځوی. ولې چې پوره مقصود د اذان نه سو حاصل، قهستاني. او که اقامت په ترسل سره وکړې مکروه خو دی لکن مختار دا ده چې نه دې راگرځوی، ط، ولې چې مقصود د اقامت نه خبرتياد حاضرينو ده په شروع کولو د لمانځه. او هغه مقصود په ترسل سره د اقامت کولو حاصل سو نو تکرار ته د اقامت ضرورت نسته،،

**سؤال:** په تکرار سره د اقامت به کراهت د ترسل دفع سي **جواب:** تکرار د اقامت خو مشروع نه دی او تکرار د اذان مشروع دی لکه چې اذان قبل الوقت وکړه سي. نو د خوله سره دوخت راگرځول يې لازم دئ. قال المصنفؒ.

## وَلَا يُجْزِءُ بِالْفَارِسِيَّةِ وَإِنْ عُلِمَ اَنَّهُ اَذَانٌ فِي الْاَظْهَرِ

او کفايت نه کوی. يعني اذان په پارسي ژبه سره که څه هم خلک و پوهيږي چې دا اذان دی په اظهر روايت کی د مذهب **فائده:** مصنفؒ تخصيص د فارسي ژبې وکړې ددې سبب چې نور دی د ټولو ژبو و عربي ته په فصاحت او بلاغت کښې هم د غه فارسي لغت او





ژبه ده كما في التلويح. نو چې په فارسي ژبه اذان نه دی کافي نو په نورو ژبو په طريق اولیٰ نه دې صحيح. علت د نه صحت په دا دئ چې هغه اذان چې عبد الله رض په خوب کښې اوريدلی وو هغه عربي وو نو دی علت له مخې اقامت هم په بله ژبه نا روادئ يعنې کافي نه دئ. ولې چې دا علت د اذان په اقامت کښې هم موجود دئ. قال المصنفؒ

## وَيَسْتَحِبُّ اَنْ يَكُوْنَ الْمُؤَذِّنُ صَالِحًا عَالِمًا بِالسُّنَّةِ وَاَوْقَاتِ

او مستحب ده چې وي به اذان کوونکی صالح سړی. او خبر به وي په سنت طريقه د اذان. او پوه

## الصَّلٰوةِ عَلٰى وُضُوْءٍ مُسْتَقْبِلَ الْقِبْلَةِ اِلَّا اَنْ يَكُوْنَ رَاكِبًا

به وي په وختونو د لمونځو، او په اودا سه به وي، او مخامخ به وي و قبلې شريفې ته. مگر نه که سپور وو يعنې په سفر کی **پوښتنه:** چې د صالح معنا څه ده اصلې دا ده چې سړی به حقوق د خدای جل شانه او حقوق د بندگانو به ټول پرځای کوي. نو چونکه داسې سړې ډېر کم پيدا کيږي نو د ی سببه مصنفؒ په مراقي کښې تفسير دا کړې دی چې متقي به وي. او د متقي نه هم مراد دا دی چې ظاهر العدالت به وي. او مراد د سنت نه د اذان علم دی په دې ډول چې په اذان کی مثلاً ترسل په کار دی او هغه نور کارونه چې د مخه يه ذکر سو.

او سپاره سړی ته په سفر کی اذان په حال کی د سپرتيا بې کراهته روا دی. او په حضر کی داسې کول مکروه دی في ظاهر الرواية، قال المصؒ في المراقي. **پوښتنه:** چې مراد د سفر نه لغوی سفر دی شرعي سفر نه دی يعنې چې په صحرا کښې وي. دليل د دی دا دی، چې په فقه شريفه کښې وائي چې نفلي لمونځ د با ندی تر ښار او قريې راکبًا مکروه نه دی. نو اذان په طريق اولیٰ مکروه نه دئ؛ قال المصنفؒ:

## وَاَنْ يَجْعَلَ اَصْبَعَيْهِ فِي اُذُنَيْهِ وَاَنْ يُحَوِّلَ وَجْهَهُ

او بل مستحب ده چې گرځوي دی دوه گوتې يعنې د دوو گوتو سرونه (دا مجاز دی چې ذکر کل مراد ځندی جزء دئ) په غوږونو کی. او بل دا مستحب دی چې اړه وي به مخ خپل

**یَمِیْنًا بِالصَّلٰوۃِ وَ یَسَارًا بِالْفَلَاحِ** وَراسته طرفته په حَیَّ عَلَی الصَّلٰوۃ کی او وَچپه طرفته
په حَیَّ عَلَی الْفَلَاحِ کی. لقوله علیه الصلوٰة والسلام لبلال رض گرځوه ته دوئی گوتی په دوو
غوږو کښی. ولی چی دا ستا داواز پوره ته کوی نکی دی. **حکمت**: هر وخت چی سړی
خبری کوی سایه ترخوله او پوځه ترغوږو هم وزی. نو هر وخت چی دی غوږونه په گوتو
بند کړی نو ټوله ساه به ترخوله وزی. نو دی سببه به آواز لوړیږی، او بله خبره داده چی
هر وخت چی سړی غوږونه بند کړی خپل آواز کراره اوری. نو دی گمان کوی چی ښایی دی هم
زما آواز کراره دی نو آواز ته زور ورکوی،

**پوښته**: چی امام طحاویؒ په شرح کښی وائی چی اوړ کول دگوتو په غوږو کښی سنت
اصلی نه دی. ولی چی داکار په آذان کی د ملکی نازل من السماء په خوب کښی دعبدالله بن زیدؓ
او اصل اعلام هم نه دی پر موقوفه. بلکه دا کار دپاره دمبالغی فی الاعلام دی. او دی وائی
کرچیری مؤذن دواړه لاسونه پرغوږو ونسی هم نیه کاردی. **اَلْبِشَارَةُ لِلْمُؤَذِّنِ**،
په صحیح حدیث کی راغلی دی، چی نه اوری منتهی دآواز دمؤذن نه پیری او نه انسان او
نه بل شئ مگر اوری به داسی توگه چی شاهدی به اداکوی ده ته. یعنی دده په ایمان سره په
ورځ دقیامت کی او طلب د بخښنی به کوی دده دپاره هرلوند او وچ شی چی دده آواز داذان په
اوریدلی وی. او په حدیث شریف کی چی روایت په نسائی کړی دی داسی راغلی دی. وَلَهُ أَجْرُ
مَنْ صَلّٰی مَعَهُ، او مؤذن به دقبره څخه په داسی حال کښی راووزی چی اذان به په خوله کښی
وی. او مؤذنانو غاړی به اوږدی وی په ورځ دقیامت ترنورو خلکو. داکنایه ده خوشحالی
څخه ده ولی چی د شرمیدلی غاړه کښته وی. او بعض وائی چی امید دمؤذنانو به رحمت
ته دخدای جل سلطانهٗ ډیر وی.
او په یو بل حدیث کی داسی هم روایت سوی دی، چی مؤذن به په ورځ دقیامت پر غونډی
دمشکو کښینول سی. او لویه بیره د ورځی دقیامت دی پر خوف کی نه اچوی. **پوښته**
آنحضرت صلی الله علیه وسلم په خپله اذان او اقامت کړی دی؟ **جواب**: په ضیاء کښی





راغلی دي چی ده صلی الله علیه وسلم په یوه سفر کښی اذان وکړی او اقامت یه وکړی او د
مالبنین لمونځ یه وکړی. او دغه رنگه مستحب دی چی اړوی الخ. او دا اړول دمخ سنت
داذان دی. نو کی یوازی اذان کاوه په صحرا کی هم به مخ اړوی پر دوه طرفه،،
**مسئله** دکښتی په غوږن کی که یو اذان کاوه هم به مخ اړوی، ط ص۱۵۹. او دا خبره
دتحویل الوجه چی مصنفؒ وکړه چی په حَیَّ عَلَی الصَّلٰوۃ کی دی مخ راسته طرفته اړه وی
او په حَیَّ عَلَی الْفَلَاحِ کی وه چپه طرفته اړوی مذهب دی دجمهور د حنیفیانو او نړیلغی
هم داغه دول صحیح بولی دی. او بعض علماء وائی چی په دواړو کښی دي دواړه طرفته
مخ اړوی. کمال الدینؒ وائی. وهوالاوجه. او په نهر کی هم د دی خبری تائید سوی
دی. وَاللّٰهُ اَعْلَمُ، قَالَ الْمُصَنِّفُ،

او مؤذن دی راسته اړخ چپه اړخ ته گرځی په مناره کی
**وَیَسْتَدِیْرُ فِیْ صُوْمَعَتِهِ** داذان **پوښته**: چی صومعه په اصل کی معبد
ته دراهب ده نصاراوو ویل کیږی، کما فی البحر والطحطاوی **پوښته**: چی په
بخوا زمانو کښی چی آلات جدیده دپاره درفع الصوت داذان موجود نه وه. نو مسلمانانو
به حسب المقدور په مساجدو کښی یوه مناره جوړوله. او په هغی مناری کی به د ننه
ځینې پوړته کولې. او پرسر د مناری به یوه لویه یا کښتنی گمبده جوړوله. او هغی گمبدی ته
څلور دربچی یا په اصطلاح کلکینانو کوله. یعنی دقبلی وخواته. د شاه وخواته. او پر
راسته لاس او پرچپه لاس. دا ددی دپاره چی دمؤذن اواز تر دی دربچو وونزی،،
نو په اصطلاح کی دفقهی شریفی دغی گمبدی ته صومعه ویل کیږی. او په پارسی به
مؤذن خانه بولی. نو اوس مسئله د صومعی داسی ده چی مؤذن به دقبلی شریفی و
دربچی ته نږدی دریږی، او که مؤذن خانه کښتنی وه نو د حَیَّ عَلَی الصَّلٰوۃ. او حَیَّ عَلَی
الفلاح په وخت کی د سر ایستلو ضرورت نسته. او که صومعه فراخه وه نو په مؤذن د حیعلتینو
وخت کی تر راسته او چپه کلکین سر باسی. او حَیَّ عَلَی الصَّلٰوۃ. او حَیَّ عَلَی الْفَلَاحِ به وائی.
لکن په داسی شان چی قبلی ته به شا نه گرځوی:

اوداگرڅيږه هم داٰوازد رسيدو د پاره دئ. **مسئله**: په اقامت کی دی هم مخ وراسته اووچيه ته نغل ته اړه وي. **فائده**: په قهستانئ کی دنظم څخه نقل کړی دی، "چا اذان دننه په مسجد کی مکروه دئ. اوکه مکان لوړ نه وو نو په فناء کی دمسجد بر اذان کوی" کذا فی الفتح. نو په دی اوس وخت کی چې آله جديده يعنی لاوډ سپيکر په ټولو مسجدو کښی اِلّا مَاشَذَّ وَنَدر، دننه په مسجد کی نصب کوی او اذان په کښی کوی نو حکم به ئې څروي!

**جواب**: په مقتضیٰ د دې قاعدی چې، "اَلضَّرُوْرَاتُ تُبِيْحُ الْمَحْظُوْرَاتِ" دا به مکروه نه وي. ولې چې آله جديده يعنی لاوډ سپيکر که د باندی تر مسجد نصب کوی نو چونکه قيمتی شئ دی بيره دد ی سته چې غل بې غلا کړي. اوکه نن دی وی و مسجد ته حجره يا بل محفوظ ځای وو نو لاوډ سپيکر دی هلته نصب کړی او اذان دې په کښی کوی نو هم د کراهت نه اوهم د غله څخه به خلاص سی. قَالَ الْمُصَنِّفُ

## وَيَفْصِلُ بَيْنَ الْاَذَانِ وَالْاِقَامَةِ بِقَدْرِ مَا يَحْضُرُ الْمُلَازِمُوْنَ

او جلا والی دی کوی مؤذن په مابين کښی د اذان او اقامت دومره قدر، چې حاضر به ی هغه

## لِلصَّلٰوةِ مَعَ مُرَاعَاتِ الْوَقْتِ الْمُسْتَحَبِّ وَفِی الْمَغْرِبِ

کسان چې ټينګ ولاړ وی و لمانځه ته يعنی جماعت کولو ته، سره د مراعات د وقت مستحب يعنی دونه دی نه

## بِسَكْتَةٍ قَدْرَ ثَلَاثِ اٰيَاتٍ قِصَارٍ اَوْثَلَاثِ خُطُوَاتٍ

ځنډوی چې وقت مستحب تير بزی. او د ماښام د اذان او اقامت تر مابين دې دونه فصل کوی چې په قدر دری کچنی ايا تو ويلو وي. اويا دری ګامه سرې اخستلای سی. او په عنايه کښی وائي چې يا بوايت طويله لکه ايت الکرسی و يل کيږي. لکن په نيزد امام اعظم دا فصل دی په ولاړی کوی کښينی دې نه. او په نيزد يارانو مؤذن دی سپکه ناسته وکړي. لکه په ما بين کښی دد وو خطبو چې خطيب کښيني.





**مسئله**: جوت ول د اذان او اقامت په ټولو لمونځو کښی مکروه دې په اجماع سره ولې چې مقصود په اذان سره خبره ول دې د خلګو په دخول د وخت د لمانځه. چې دوی ځان لمانځه ته سم کړي په اودا سه وغيره سره او بيا حاضر سی و مسجد ته د پاره د جماعت نو په صورت کښی د وصل دا مقصود په ئ تيږي. **مسئله**: که چيرې د لمانځه د مخه سُنت وه لکه د سحار لمونځ يا د ماپښين لمونځ نو په مابين کی د اذان او اقامت دی هغه سُنت وکړی. او يا د مخه تر لمانځه مستحب نفل وه لکه د مازديګر تر لمانځه د مخه يا د ماخُستن تر لمانځه د مخه نو هغه نفل دی وکړی. او يا دی تحية المسجد وکړي لکن چونکه د ماښام د لمانځه وخت ډير تنګ دی نو ځکه د نفلو ګنجا ئش نسته په کښی لهذا په جلسه خفيفه وغيره سره دی فصل وکړي. کذا فی العنايه والطحطاوئ.

**مسئله**: ځنډول د لمانځه د پاره د رئيس د محلی يا بانی د مسجد، او يا د ډير زکوة والا سخت مکروه دے " کذا فی فتح القدير. **پوښتنه**: په مبتغی کښی وائي چې ځنډول د اقامت، او يا اوږد ول د قرائت د پاره د ارسيدو د بعض خلګو يعنی معين سړې حرام دی. نو دا خبره صحيح ده "! **جواب**: دا کار هلته حرام دی چې د پاره د دنيا وي. ولې چې دا اهانت په شرع سره دی. او تاخير به هم دومره وی چې پر لمونځ کوونکو ډير تکليف وي: قَالَ الطَحطاویؒ، چې لږ ځنډول د پاره د کومک پر کار د خير چې لمونځ دی مکروه نه دئ. وَقَالَ فِی الْمُضْمَرَات، پروا نسته چې امام ميانه انتظار وکړي. قَالَ

## وَيُثَوِّبُ كَقَوْلِهِ بَعْدَ الْاَذَانِ" اَلصَّلٰوةُ اَلصَّلٰوةُ يَا مُصَلِّيْنَ

او تثويب دی کوی مؤذن يعنی پس له اذانه دی دوهم اعلان کوي لکه دا قول د مؤذن پس له اذان څخه "حاضر سئ لمانځه ته حاضر سی لمانځه ته ای لمونځ ګذارانو. او يا په پښتو کښی وائي. پر لمانځه درين وکه خدای کول ذوه واره. **پوښتنه**: چې تثويب په قول د بحر رائق او طحطاوئ" عود دی و خبرتيا ته پس له د مخه خبرتيا څخه" او په شرع شريفه کښی عود دئ و اعلام مخصوص ته پس له اذانه علی الصحيح نه پس له اقامت څخه

او مصنف په مراقی کښې وائي چې دا تثویب په ټولو لمونځو کې دي کوي پس له آذان او چې
په داوئیلې ده چې په خلګو کې سستي په کارو کښې د دین ډیره ده، او ده وئیلي دي چې
تثویب د هر قوم بناء دي پر عُرف د هغو دي **پوهه سه**: چې مسئله د تثویب
المتعارف في بعض المساجد ډیره پیچلې مسئله ده. حضرت الامام الطحطاويؒ وائي
چې دا تثویب مکروه دی په نیز د یارانو. او په روایت کې د حسن داسي راغلي دي چې مؤذن
دې پس له اذانه په اندازه د شلو آیتو د قرآن مبارک ځنډ وکړي او بیا دې دغه متعارف تثویب
وکړي. او بیا دې شل آیت وروسته اقامت وکړي. **فائده**: تثویب دوه قسمه
دي یو قدیم او بل حادث، اول قسم: اَلصَّلٰوةُ خَیْرٌ مِّنَ النَّوْمِ، د سحار په آذان کې
دا تثویب په اول کې د سحار تر اذان وروسته کیدئ. مګر علماؤ د کوفې په اذان کې داخل
کړي په دې طریقه پسې د دوی ټوله امت اقتداء کړیده،
او دویم قسم تثویب علماء کوفې احداث کړي دي په مابین کې د اذان او اقامت، د دوی
په زمانه کښې داسي ویل کیدل، حَیَّ عَلَی الصَّلٰوةِ، دوه واره. حَیَّ عَلَی الْفَلَاحِ دوه واره.
او وروسته هر قوم خپل د پاره جلا جلا تثویب وضع کړي، بحرالرائق کښې وائي چې دا تثویب
اختیار د متأخرینو دي. او متقدمینو یې مکروه بللی، **فائده**، دا تثویب په اغلبو
بلادو کښې او قریه وو کښې د حنیفیانو او س او س پاته دي او د نورو مذهبو په بلادو
او وطنو کښې بیخي بدعت یې بولي.
**د درویش رایه**: پوهه سه چې امام رباني مجدد الف ثاني قدس سره په مکتوبات
شریف کښې وائي په مسئله کښې د وحدة الوجود چې هغه یوه پیچلې مسئله د علم تصوف ده،
پس له بیان مفصله څخه د هغې، ما نه انکار میکنم و نه این کار میکنم، نو د درویش په مسئله کښې
د نوي تثویب وړته عبارت وایم، چې زه نه د تثویب مذکوره څخه انکار کوم. او نه دا کار کوم
وَاللّٰهُ اَعْلَمُ وعلمه اتقن واتم، قَالَ الْمُصَنِّفُ **وَيُكْرَهُ التَّلْحِيْنُ** او مکروه دی په لحن سره
اذان کول. **پوهه سه**: چې ابن الملکؒ د تلحین ترجمه په تغني سره کړیده په داسي توګه





چې تغیر راسي په کلماتو د اذان کښې. او علماء وائي چې داسي اذان بلاریب نه دی روا. او
نفس تحسین الصوت یعني خوش آوازي بیله تغني پروا نه لري. بحرالرائق وغیره
او طحطاويؒ د تلحین ډیر جامع تفسیر کړی دی. دی وائي چې تغیر راسي په کلمو کښې د اذان
او په کیفیت کې د هغو په سبب د بې ځایه حرکتو یا سکناتو. او یا د بعضی حروفو کمول
یا زیاتول، او داسي تغني نه په اذان کې روا ده او نه په قراءت کښې د قرآن او نه په اوریدو روا دی
ولي په دې کې تشبه ده د غزلیانو سره ده، **مسئله**: ډلک ویل د لام د الله چې دی تفخیم
وائي پروا نه لري. ولې چې دا لغت د اهل حجاز دی. او نرم ویل یې لغت د اهل بصري دی.
لکن مختاره دا ده چې وروسته تر زبر یا پیښ وي لام دې ډلک وائي. او که وروسته تر
زیر وو لام دې نرم وائي؛
**یوه واقعه** یو وخت په قندهار کې یو ځای ختم د قرآن کریم کې دی. او ډیر علماء د
قندهار په دې ختم کې شامل وه. نو تر سه پاروو د یشتلو او د ویلو
د ځه یو قاري لحان او مغني چې دا لته حاضر وو یو عالم ورته وویل چې ته یوه رکوع
د قرآن کریم جهراً ووایه نو به ختم شروع کړو. نو هغه قاري غاړې تازه کړې او قرآن
شریف یې ومخته سپر کړي چې د ده د خولې کشول او پر یوه خوا بله خوا کې وله یې څولک
و نه وینې. او یوه رکوع یې په لحن او تغني او پر لهجه د سرود شروع کړه. څو تقریباً په شلو
دقیقو کښې پای ته ورسول او هغه هم میانه رکوع وه. خیر څو باره سه پارې شروع
سوې او هغه قاري تقریباً په لس دقیقو کښې سر پاره ختمه کړه. خیر. څه وخت چې
قرآن شریف ختم سو، یوه فقیه عالم چې په قندهار کې وو هغه و قاري ته وویل چې
قاري صاحب د قرآن شریف مخارج د حروفو، او د حرکاتو آداء. او مدات وغیره مما یتعلق
بعلم القرأة د قرآن په جهر سره ویل. او په کراره ویل کې فرق سره لري. قاري ورته
وویل یا فرق نه لري. نو هغه عالم و قاري ته وویله چې عجبه خو دا ده، چې فرق هم نه
لري او تا یوه میانه رکوع په حال کې د جهر په شل دقیقو کښې وویل او یوه یوه سه
پاره دې په لس دقیقو کښې ختمه کړه. قاري د خجالت سر کښته وځراوه او جواب یې ورنه کی.

**درویش وائی:** چې داسې ریائی قراءتونه او س بېخي ډېر دي "بیت - بروی دریا خرو سهلست دوست. وگر با خــدا در فروشی نکوست :: بَیت :: واعظان کین جلوه در محراب و منبر میکنند :: چون بخلوت میروند آن کار دیگر میکنند ::

قَالَ المصنفؒ

## وَاقَامَةُ المُحدِثِ وَاذَانُهُ وَاذَانُ الجُنُبِ وَصَبِيٍّ لَا يَعقِلُ

او د غړ رنګه مکروه دي اقامت د بې اود سه او اذان یـه او مکروه دئ اذان د جنُب. او د اغه رنګه

## وَمَجنُونٍ وَسَكرَانٍ وَاِمرَأَةٍ وَفَاسِقٍ وَقَاعِدٍ وَالكَلَامُ

مکروه دی اذان د کشنی چې عقل نه لري. او د لیوني. او نشه، او د ښځې او فاسق او د ناست سړي. او د اغه رنګ

## فِی خِلَالِ الاَذَانِ وَفِی الاِقَامَةِ وَيُستَحَبُّ اِعَادَتُهُ دُونَ

مکروه دي خبرې دا ذان په مَنځ او په اقامت کې. او د داسې اذان اعاده ضروري ده. نه د اقامت

## الاِقَامَةِ

**پوُوسـه** : چې په اذان کې د بې او د سه مؤذن دوه روایته دي. یو روایت دا دی چې اذان د محدث نه دی مکروه. وهو ظاهر الروایة عن الامام الاعظمؒ. په بحر رائق او د ر کښې وائي چې دغه روایت صحیح دئ. او په روایت کې د حسنؒ کما فی القهستانی والتحفة» داسې راغلی دي چې دا اذان مکروه دی لکه مصنفؒ چې هم وائي لکن چونکه نقصان په جنابت کې افحش دی نو اذان د جنب مکروه بالاتفاق دی. او اقامته هم مکروه دئ. او مصنفؒ په مراقی الفلاح کښې خپل عذر و په اختیار کې د خلاف د ظاهر الروایة داسې وئیلی دی: و اتبعتُ هذه الروایة لموافقتها نصّ الحدیث» وهو قوله علیه الصلوٰة لا یُؤَذِّنُ اِلاَّ مُتَوَضِّئٌ» رواه الزیلعی فی شرح الکنز» ما متابعت وکې د دغه روایت د حسنؒ یعنی که څه هم د ظاهر روایت څخه خلاف دئ. د دې سببه چې د غه روایت د ظاهر الفاظو سره د حدیث شریف برابر دي. چې زیلعیؒ په شرح کښې د کنز روایت کړي دئ. چې آنحضرت صلی الله علیه وسلم وائي: چې اذان دې نه کوي مګر او دس والا. یعنی که څه هم د دې حدیث تاویل علماء داسې کوي چې نه ښائي چې اذان وکړي بې او دس سړی. او یا محمول





په زجر دئ. او د کشنی اذان چې مکروه دی ولې چې خلک د داسې کشنی و اذان ته اعتبار نه ور کوي. لکه د لیوني وهغی ته. بلکه خلک دا ذانِ معتبر په انتظار وي. نو به یا وخت ووزي په دې انتظار کښې یا به جماعت فوت سي او یا به لمونځ وخت مکروه ته ورسیږي او په بعض کتابو کښې وائي چې د نابالغه اذان مکروه دی که څه هم خاوند د عقل وي. لکن ظاهر الروایت دا دی چې د صبی عاقِل اذان بیله کراهته څخه روا دئ. ولې چې دئ مامور بالجماعت دئ» کذا فی البحر والنهر» او د غه رنګه مکروه دی اذان د لیوني بلکه صحیح نه دئ. بلکه د معتوه دا هم مکروه دئ. او د غه رنګه مکروه دی اذان د مست یعنی په سبب د فسق فاحش، او بل دا خبره ده چې سکران پوره تمیز نه لري. او د غه رنګه مکروه دی اذان د ښځې. ولې که دا اذان کرار کرار کوي نو اعلان مقصود د اذان څخه نه راځي. او که په زور کوي ګناه ده. ولې چې اواز د دې عورت دئ. او د غه رنګه مکروه دی آذان د فاسق یعنی مرتکب د کبیره ګناه، ولې چې د دینی خبرو کښې د فاسق قول نه دی قبول. نو پس اعلان کامل نه راځي. او د غه رنګه مکروه دی اذان په ناستې. ولې چې پوخوا اعلان کامل نه راځي او بل دا چې د هغې ملکي نازل څخه خلاف دئ.

**مسـئـلـه**: په پروتي اذان په طریقه اولیٰ مکروه دئ. **مسـئـلـه**: په سپرتیا کښې هم اذان مکروه دی مګر مسافر له. او د غه رنګه مکروه دی خبرې په مابین کښې دا ذان او اقامت یعنی که څه هم په رد د سلام وي. او مستحب دي راګرځول دا ذان چې خبرې په کښې وکړي نه د اقامت. ولې تکرار دا ذان مشروع دی لکه د جمعې په ورځ او د اقامت تکرار په شرع شریف کښې نسته» قـال المصنفؒ

## وَيُكرَهَانِ لِظُهرِ يَومِ الجُمُعَةِ فِی المِصرِ

او مکروه دی اذان او اقامت د پاره د ماپښین د لمانځه په ورځ د جمعې په ښار کښې. یعنی که چیرې د یوې ډلې خلکو څخه د جمعې لمونځ فوت سو. او یا نه وو فوت په قصد یه پرې سو نو بیا دوی اراده وکړه چې د ماپښین لمونځ په جماعت وکړي اذان او اقامت ورته مکروه دی»

اَللّٰهُمَّ اغفِر لِکَاتِبِهٖ وَلِمُصَنِّفِهٖ وَلِوَالِدَیهِمَا اٰمِین.

**مسئله**: په جماعت د جمعې د ورځې د ماپښین لمونځ که څه هم اذان او اقامت نه وي هم په ښارکې مکروه دی **مسئله**: قید د ښاریه ورایه ولې د کلیو په خلګو خو جمعې لمونځ نشته. نو اذان او اقامت ورته مکروه نه دی لکه په جماعت چې لمونځ ورته مکروه نه دی. ط، مر، قال المصنف:

## وَيُؤَذِّنُ لِلْفَائِتَةِ وَيُقِيمُ

## وَكَذَا لِأُولَى الْفَوَائِتِ وَكُرِهَ تَرْكُ الْإِقَامَةِ دُونَ الْأَذَانِ

**فِي الْبَوَاقِي** او اذان دې کوي د قضائي لمونځ د پاره او اقامت دې کوي. او دغه رنګه د پاره د اول د قضائي لمونځو د اذان او اقامت دواړه یعنی که ډیر لمونځونه څنډې قضا سوي وه، او مکروه دی پرې ښودل د اقامت نه د اذان. د اول څخه ماسوا په نورو قضائي وو کښې **پوښتنه**: چې دلیل د دی مسئلې هغه حدیث دی چې په ډیرو صحیح کتابو کښې د حدیثو راغلی دي. حدیث مذکور که څه هم اوږد دی لکن ترڅاپه د حاجت پوري بې زه ترجمه در نه وکړم، د زید بن اسلم رض څخه روایت دی چې آنحضرت صلی الله علیه وسلم یوه شپه په لار کښې د مکې معظمې په اخیر شپې په غوښتنه د اصحابو رض د خواب او آرام د پاره واړول. چې دې ته تعریس وائي، او بلال رض پردې پاندې وګماره چې دی به نه بیدیږی او د سحار اذان به کوي. بلال رض هم اوده وکړه، نو علیه الصلوٰة والسلام او اصحاب کرام رض په بیغمه زړه بیده سول، بلال رض د تهجد نفل وکړه نو څه وخت چې سپیدی یې په خیال نږدې وړه غلی نو یې مخامخ د سپیدو راختو وخواته یو څوک اوښ شاه ونګوله. هغه وو چې پر قدرت د خدای جل شانه او د پاره د حکمت الٰهی بلال رض په خوب کې ډوب سو. هغه وخت را ویښ سول چې لمر تاوده کړه. خلک یعنی اصحاب رض چې را ویښ سوله ډیر په خوف او هراس کښې وه چې لمونځ د سحار قضاء سو. نو آنحضرت صلی الله علیه وسلم امر وکړی. چې دا شیله شیطان ده. اوښان د ربار کړئ. نو اصحاب رض پر اوښا نو سپاره حتی چې تر هغې شیلې وووتل رسول الله





صلی الله علیه وسلم امر وکړی چې کښته سی او د سونه تازه کړئ. او امر یې وکړی بلال رض چې اذان دې وکړي او اقامت هم. نو آنحضرت صلی الله علیه وسلم په جماعت لمونځ وکړي بیا تر پایه پوري د حدیث. **فائده**: مصنف رح اذان کول د پاره د قضائي لمانځه مطلق ووایه. یعنی کې قضاء په کور کښې راوړي او که په مسجد کې، لکن بحر الرائق د مجتبی څخه چې مجتبی نسبت کړی دی وامام حلواني رح ته داسی وائي چې اذان سنت د قضاء دی په کور کښې (وکې په مسجد کې قضاء راوړه اذان به نه کوي. ولې چې محله والا په تشویش او اضطراب کې لویږي چې داخر نګه اذان دی. او صاحب النجر دا دلیل وائي چې فقها وو تصریح کړې په دې سره چې قضائي لمونځونه دی سړي په کور کښې ګذاري. نه په مسجد کی ولې د سړي سستي وخلګو ته ښکاره نه سي چې دې سړي لمونځ قضاء کړی یعنی د اقامت کولو څخه، فالواجب الاخفاء، نو پس اذان کول اولی دی په منع سره یعنی په مسجد کې، قال المصنف رح:

**إِذَا اتَّحَدَ مَجْلِسُ الْقَضَاءِ** که یو وو مجلس یعنی ځای د قضاء راوړو د لمونځو یعنی کې پر یوه ځای قضائي لمونځو راګرځول نو پر پښودل د اذان په باقي یعنی ماسوا د اول لمانځه قضائي مکروه نه دی.

**فائده**: موږ د محنه نږدې وویلیه چې حلواني رح وائي. چې په مسجد کښې د قضائي د لمانځه د پاره اذان نه کوي. ولې چې په خلګو کښې تشویش او اضطراب پید اکیږی. نو که د تشویش سبب نه وو نو د هر لمانځه قضائي د پاره د اذان او اقامت دواړه کوي، ولې چې په صحیح حدیث کښې د بخاري رح او مسلم رح او نورو کتابو کښې د احادیث مبارکه وو داسی راغلی دی چې په غزا کې د خندق چې یوه مهمه غزا او سخته غزوه د رسول کریم صلی الله علیه وسلم او اصحابو رض څخه لو، لمونځونه قضاء سوله، الظهر، والعصر، والمغرب والعشاء، نو رسول الله صلی الله علیه وسلم قضاء راوړه پر ترتیب، او بلال رض یې امر کړی چې د هر لمانځه د پاره اذان او اقامت وکړي. **حواله**: تفصیل د غزا د خندق چې غزوة الاحزاب یې هم بولي. د فقیر په کتاب "البلاغ المبین فی منهاجیات الدین" کښې

مطالعه کړئ چې په عربۍ ژبه دئ. قَـالَ المُصنفُ ؒ.

**وَاِذَا سَمِعَ الْمَسْنُوْنُ اَمْسَكَ** اوچې واورېدل سي سُنت اذان سامع دې دخبرو څخه ځان وساتي حتی په مراقي کښې مصنفؒ وائي چې دتلاوت د قرانٰ کریم دی هم ځان وساتي. ددې دپاره چې په خوله سره اجابت دمؤذن وکړي که څه هم په مسجد کښې وي» قال هُوَ الافضل». ونقل المصنفؒ عَن الفوائِد» چې سامع که په مسجد کې وُو او تلاوت یې کوَ نوخپل تلاوت ته دې ادامه ورکړه. یعنی اجابت دآذان دی په ژبه نه کوي. اوکه یې په کور کښې تلاوت کاوه نوکه دتالې دمسجد اذان وو نو قرائت دی پرېږدي او اجابت دی وکړي اوکه دبل مسجد اذان وو د خپل تلاوت دی کوي.

**فَائِدَه**: داذان مسنون څخه هغه اذان مراد دی چې لحن او تغنی نه وي په کښې او یا د هغه کسانو اذان نه وي چې اذان یې مکروه وي لکه چې وړاندې تېر سوه» مِن قوله ویکره التلحین الخ.

## „تَحقِيقُ الْكَلَامِ فِي اِجَابَةِ الاَذَان“

**پوهسَه**: چې اجابت اوقبلونه داذان په فعل سره یعنی دجماعت ولما څخه ته تلل سُنت مؤکده او یا واجب دئ **مسَئَله**: که سړی خبرې کول په فقه شریفه کښې او یا په اصول الفقه کښې اجابت داذان پر واجب دی **مسَئَله**: که سړی دتگ په حالت کښې اذان واورېدی پس بنه کار دادی چې ودرېږي او اجابت داذان دی وکړي. **مسَئَله**: که سړي ډېر اذانونه واورېدل اجابت داول اذان دی وکړي. **مسَئَله**: اجابت داذان په لمانځه کښې نسته که څه هم د جنازې لمونځ وي. او دغه رنگه دخوراک په وخت کښې او یا دجماع په حال کښې او یا د قضاء حاجت په وخت کې اجابت داذان نسته **مسَئَله**: جُنب سړی به اجابت کوي او حائض او نفساء ښځه بې نه کوي. ولې هغه څوک چې د اجابت په فعل سره اهل نه وي اجابت بالقول هم نه دی پر لازم»





**فَائِدَه**: په فتاوای بزازیه کښې داسې راغلي دي» که څوك ناست وو او اذان یې واورېدی مندوب دہ چې ولاړ سي. درویش وائي چې دا مسئله د نورو کتابو سره د فقهې شریفې مطابقت نه لري **مسَئَله**: که یو سړی د سره څخه دمؤذن سره اجابت نه کی شروع نو سُنت دا دی چې پس له اذانه دی اجابت وکړي. که وخت لږ تېر سوی وُو. ط.

**پوهسَه**: چې اجابت دمؤذن واجب دی په نیزد خلاصه والا. او دفتاوای خانیه والاو دصاحب التحفة» والیه مَال الکمالؒ». او په در مختار کی وائي چې اذان داورېدو په وخت کی هیڅ شغل نه کوي بیله اجابت داذان حتیٰ چې دچاد سلام جواب دی هم نه ورکوي که څه هم رد السلام واجب دی. او امام مالكؒ وائي چې اجابت داذان مندوب دی. او دامام مذهب دی دامام شافعیؒ او دامام احمدؒ او دجمهورو فقهاوو. او دامذهب مختاره کړی دی بدرالدین العینیؒ په شرح کښې د بخاری او امام شهابؒ په شرح کښې دشفاء وائي» وَهُوَالصحیح فی المذهب. ولې چې یو وخت آنحضرت صلی الله علیه وسلم داذان داورېدو په وخت کښې چې مؤذن وویله اَللهُ اَکبَرُ ۴ څلور واره داسې وویله عَلَی الفِطرَة». او د شهادتین په وخت کښې داسې وویله» خَرَجتَ مِنَ النّارِ» یعنی اجابت یې و نه کړي. او یو جماعت د علماوو تصریح کړېده چې اجابت بالقول واجب نه دئ. بلکه مستحب دی نو که اجابت وکړي ثواب به ومومي او که نه وکړي نه گناه سته او نه کراهت» ط». او د التجنیس» څخه داسې نقل کړه سوی دئ. چې مکروه تحریمی نه دی خبرې په وخت کښې د اذان نو که اجابت وای نو خبرې کول باید مکروه تحریمی وای. او امام طحطاویؒ وائي» اِنّه اِختَلَفَ التَّصحِیح فِي وُجُوبِ الاِجَابَه بِاللِّسَانِ وَالاَظهَرُ عَدَمُهُ». یعنی په تصحیح د علماؤ کې په حکم په صحت سره د واجب والې د اجابت په خوله سره اختلاف سته او اظهر دا ده چې واجب نه دئ. اللهم اغفر لمؤلفه ولکاتبه امین. قال المصنفؒ

**وَحَوقَلَ فِي الحَيعَلَتَينِ** او وَلَاحَولَ وَلَاقُوَّةَ اِلَّا بِاللهِ دې وائي اجابت کوونکی په وخت کښې دوېلو دمؤذن» حَیَّ عَلَی الصَّلوٰة او حَیَّ عَلَی الفَلَاح

**پوهسَه**: چې عمومي ترجمه د وَلَاحَولَ وَلَاقُوَّة آ. هغه ده چې

چې مصنفؒ په مراقي کښې ذکر کړېده هغه دا ، لَاحَوْلَ ، ځان جغورل نشته د ګناه څخه او نه قوت شته په عبادت کولو باندې ، مګر په فضل سره د خدای او خصوصي ترجمه یې چې د اذان سره مناسبت لري هغه ده چې امام طحطاويؒ ذکر کړېده . هغه دا سې چې مؤذن چې امر وکړي چې ته ځان تیار کړه و لمانځه ته او راسه و لمانځه ته : او په حَيَّ عَلَى الْفَلَاحِ کې امر وکړي چې ته ځان جوړ کړه و نجات ته د ورځې د قیامت ، او د ادواړه کار په حرکت سره د بنده ترسره کیږي . او بنده مستقل قدرت نه لري پر هیڅ شیئ نو بنده ته مناسب ده چې په جواب کې د دغو دوو امرو د مؤذن ووایي چې قدرت نشته ما لره پر حرکت کولو باندې او نه طاقت لرم پر هغه شئ چې مؤذن ئې د ما څخه طلب وکړي مګر په قوت د خدایځ او په توفیق د ده ۃ **مسئله**: او رید ونکی د اذان دي په حیعلتینو کښې داغه د اذان حَيَّ عَلَى الصَّلٰوةِ او حَيَّ عَلَى الْفَلَاحِ نه وایي . ولې دا دوې کلمې دا مر دي . که یو سړي دا امر د خولې امر استعمال کړي د اخولې پیښې بولې . او پس خند ، مثلاً یو غوک وچا ته ووایي چې ولاړ ، هغه ورته ووایي هو ولاړ سه ، خنګه د اپیښې بولې . او نورې کلمې د اذان خو ثنا د خدایځ ده او وروسته تر حمد و ثنا دعا قبلیږي . نکه چې اجابت کوونکی یه په اخیر کښې کوي چې رابه سي ، اِنْ شَآءَ اللّٰهُ تَعَالٰى ، قَالَ الْمُصَنِّفُؒ ،

## وَقَالَ صَدَقْتَ وَبَرَرْتَ" اَوْ مَا شَآءَ اللّٰهُ عِنْدَ قَوْلِ الْمُؤَذِّنِ

او وائی به اجابت کوونکی رشتیا وائې ، او ښه کار دې وکړی . او یا دِ مَاشَآءَ اللّٰهُ وایي په نیزد دې قول د مؤذن چې ، اَلصَّلٰوةُ خَيْرٌ مِّنَ النَّوْمِ یعنې **اَلصَّلٰوةُ خَيْرٌ مِّنَ النَّوْمِ** د سحار په اذان کښې **پوه سه** : چې ماضي صیغه د لته یعنې قَالَ په معنا دا مر ده ، **فائده**: پوه سه چې جواب د حَيَّ عَلَى الصَّلٰوةِ او حَيَّ عَلَى الْفَلَاحِ په لَاحَوْلَ وَلَاقُوَّةَ اِلَّا بِاللّٰهِ سره ورکول مذهب دی د امام ثوريؒ او د امام اعظمؒ او د ابو یوسفؒ او امام محمدؒ . او د امام احمدؒ په صحیح روایت کې د ده څخه او د امام مالکؒ په یوه روایت کې . او امام شافعيؒ او د امام احمدؒ په یوه روایت کې او دغه رنګه





د امام مالکؒ په یوه روایت کې . وایي چې په ټوله اذان کې دي هغه کلمې وایي چې مؤذن یې وایي . یعنې په حَيَّ عَلَى الصَّلٰوةِ او حَيَّ عَلَى الْفَلَاحِ کې او هم دا غه کلمې وایي . او محقق کمال الدین ابن الهمام الحنفيؒ په فتح القدیر کې وایي چې د حَيَّ عَلَى الصَّلٰوةِ او حَيَّ عَلَى الْفَلَاحِ په وخت کې دې هم دا غه کلمې وائې او هم دې لَاحَوْلَ وَلَاقُوَّةَ اِلَّا بِاللّٰهِ وائې تا چې په ټولو احادیثو سره عمل وکړه سي .

ولې چې د ، وَلَا حَوْلَ وَلَا قُوَّةَ دوېلو حدیث خو هغه وو چې تیر سو ، او په مسند کې د ابي یعلی په روایت د ابي امامهؓ د رسول الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ څخه داسې راغلی دی : چې نازل کړي نعم کوو نکی د پاره د لمانځه یعنې مؤذن . . . خلاصې سي دروازې د آسمان او قبلیږي دعا . پس که پرېچا باندې نازله سي بې قراري یعنې په یو سبب سره او یا سختي پس دا سړي دې انتظار وکړي و مؤذن ته ، نو چې هغه تکبیر ووائې دې دې هم تکبیر ووائې . او چې هغه تشهد ووایي یعنې اَشْهَدُ اَنْ لَّا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ ۲ واره اَشْهَدُ اَنَّ مُحَمَّدًا رَّسُوْلُ اللّٰهِ ۲ واره دې هم تشهد ووایي یعنې ۴ واره . او چې مؤذن ووایي حَيَّ عَلَى الصَّلٰوةِ ۲ واره دې هم دغه کلمه ووایي . او چې مؤذن ووایي حَيَّ عَلَى الْفَلَاحِ ۲ واره دې هم ووائې دغه کلمه بیا تر اخیره پورې . او پس له اجابت څخه متصله د ادعا وکړي . اَللّٰهُمَّ رَبَّ هٰذِهِ الدَّعْوَةِ الْحَقِّ الْمُسْتَجَابُ لَهَا دَعْوَةُ الْحَقِّ وَكَلِمَةُ التَّقْوٰى ، اَحْيِنَا عَلَيْهَا وَاَمِتْنَا عَلَيْهَا وَابْعَثْنَا عَلَيْهَا وَاجْعَلْنَا مِنْ خِيَارِ اَهْلِهَا مَحْيَانَا وَمَمَاتَنَا ثُمَّ يَسْاَلُ اللّٰهَ حَاجَتَهُ" د دې حدیث روایت طبرانيؒ په کتاب الدعاء کښې کړی دی . او حاکمؒ وایي چې دا حدیث صحیح الاسناد دئ ،

**سؤال**: چې د څخه د مصنفؒ په کلام کې د مراقي دا سې تیره سوه چې هغه کلمې د حَيَّ عَلَى الصَّلٰوةِ له ویل مشابه بهت د پس خند سره لري . او په حدیث فوق الذکر کښې هم هغه کلمې ذکر سوې فکیف التوفیق ، **جواب** : هر کله چې اجابت کوونکی وویله ، حَيَّ عَلَى الصَّلٰوةِ او حَيَّ عَلَى الْفَلَاحِ ، نو د ده مقصود استهزاء نه ده او نه دا مشابه د استهزاء سره دی په قرینه د وروسته ویلو د ، وَلَاحَوْلَ وَلَاقُوَّةَ اِلَّا بِاللّٰهِ ، ولې چې د دې څخه دا معلومیږي

چې په حَيَّ عَلَى الصَّلٰوة. او حَيَّ عَلَى الْفَلَاحِ کې دی دی ځان ته امر وکړي چې اراسته سرو لمانځه ته او ځان باعثه کوي په اجابت په فعل سره» او بیا یه دخپل ځان د خوا وویله لَاحَوْلَ وَلَا قُوَّةَ آه:

**مسئله**: په مجمع الانهر کې دی چې د سحار د اذان د اَلصَّلٰوةُ خَيْرٌ مِّنَ النَّوْمِ په اجابت کې د اجمله هم زیاته کړي، وَبِالْحَقِّ نَطَقْتَ» د رویش وائې: وَلَا شَكَّ اَنَّ زِيَادَةَ الْخَيْرِ خَيْرٌ»

**مسئله**: په اقامت کې دی هم ورته د اجابت د اذان اجابت کوي. لکن په وینا سره » قَدْ قَامَتِ الصَّلٰوةُ» اجابت وَالادِ داسې وائي: اَقَامَهَا اللّٰهُ وَاَدَامَهَا» هکذا روی عن النبي صلى الله عليه وسلم كما ذكره الحلبيُّ ط» قَالَ الْمُصَنِّفُ»

## ثُمَّ دَعَا بِالْوَسِيلَةِ فَيَقُولُ: اَللّٰهُمَّ رَبَّ هٰذِهِ الدَّعْوَةِ التَّامَّةِ

او بیا دی دعا د وسیلې وکړي هغه داسې یا الله چې رب یه د دعوت چې کامل دی یعنی اذان

## وَالصَّلٰوةِ الْقَائِمَةِ اٰتِ مُحَمَّدَا الْوَسِيلَةَ وَالْفَضِيلَةَ وَابْعَثْهُ

او د هغه لمانځه چې ثابت او قائم او دائم دی ورکړې و محمد صلی الله علیه وسلم ته وسیلة او فضیلت پر نورو انبیاء علیهم السلام او ور پاځوی دی په

## مَقَامًا مَّحْمُوْدَنِ الَّذِي وَعَدْتَّهُ

ځای کښې چې خلک تول حمد وائي هغه مقام محمود چې ته ای خدایه وعده ورسره کړې ده. چې مقام د شفاعت کبرای دی په قیامت کې.

**مسئله**: دغه دعا به مؤذن هم کوي او مجیب هم. لکن د مخه تر دعا دی درود شریف ووائي په حدیث شریف کې چې جابر رض یه روایت کړی د آنحضرت صلی الله علیه وسلم نه داسې راغلی دی که یو چا وویله په وخت کښې د اوریدو د اذان» اَللّٰهُمَّ آه حَلَّتْ لَهُ شَفَاعَتِيْ يَوْمَ الْقِيَامَةِ» معنا دا چې ثابت به شي او واجب به شي ده له شفاعت زما په ورځ د قیامت

**فائده**: په بعض روایاتو کښې د دعی د دعا سره یوه کلمه بله هم راغلې ده هغه دا «اِنَّكَ لَا تُخْلِفُ» و «الدَّرَجَةَ الرَّفِيعَةَ» وزيادة الخير خيرٌ، **پوښتنه**: چې د دعوة تامه معنا دا ده چې په دې کې نقصان





او عیب او تغیر نشته او نه منسوخه کیږي. امام طحطاوی وائي چې مراد دعوة تامه څخه «لَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ» دی. او عینی وائي چې تر «مُحَمَّدٌ رَّسُوْلُ اللّٰهِ» پورې مراد ده. او د رویش په نیز تول اذان مراد دی، وَاللّٰهُ اَعْلَمُ»

**واوره**: چې د وسیلې تفسیر آنحضرت صلی الله علیه وسلم داسې کړی دی: وَهِيَ مَنْزِلَةٌ فِي الْجَنَّةِ لَا تَنْبَغِيْ اِلَّا لِعَبْدٍ مُّؤْمِنٍ مِّنْ عِبَادِ اللّٰهِ. وَاَرْجُوْا اَنْ اَكُوْنَ اَنَا هُوَ فَمَنْ سَأَلَ لِيَ الْوَسِيلَةَ حَلَّتْ لَهُ الشَّفَاعَةُ» یعنی وسیله یوه درجه ده په جنت کې چې نه بنائی مګر یو عبد مؤمن لره» د بندګانو څخه د خدای جل سلطانه» او زما امید دی چې زه به یم هغه عبد مؤمن. نو څوک چې سؤال وکړي زما دپاره د وسیلې ثابت به شي هغه لره شفاعت یعنی زه به په ورځ د قیامت خواه مخواه شفاعت کوم **پوښتنه**: چې په قرآن کریم کښې داسې راغلي دي» اِبْتَغُوْا اِلَيْهِ الْوَسِيلَةَ» تاسې طلبوئ وسیله د نجاة د عذاب څخه د هغې وسیلې معنا علم بالله وصفاته وهكذا جميع العقائد الحقة والعبادة له تعالىٰ» او حاصل یه فعل د مامورات دی او پرهیز کول د منهیاتو څخه»

دا ترجمه موافقه او برابره ده تولو تفاسیرو سره. او بعض پیران چې د وسیلې تفسیر په پیر سره کوي یعنی چې د پیر مریدی وکړي هغه ترجمه د دې ایت نه ده» البته د شیخ کامل مکمل مریدي مستحب کار دی. لکن بیدا کول د داسې شیخ ډیر مشکل کار دی. وَمِنَ اللّٰهِ التَّوْفِيْقُ

**فائده**: مراد د مقام څخه شفاعت عظمیٰ د رسول کریم صلی الله علیه وسلم دی چې تفصیلي بیان یې د عاجز په کتاب کې البلاغ المبین کې وګوره. او دا هم مذهب دی د داکثر اهل علم او دا هم ډیر مشهور تفسیر دی. **پوښتنه**: دا مقام چې خدای جل جلاله یې وعده کړې ده په قرآن شریف کې: عَسٰى اَنْ يَّبْعَثَكَ رَبُّكَ مَقَامًا مَّحْمُوْدًا» او خدای جل جلاله د وعدې څخه خلاف نه کوي» اِنَّ اللّٰهَ لَا يُخْلِفُ الْمِيْعَادَ» نو طلب د مقام محمود په دې دعا کې څه فائده لري. **جواب**: مقصود د دې دعا څخه حصول د هغه ثواب دی و دعا کوونکي ته دی چې په فوق الذکر حدیث راغلی ده. **پوښتنه** آنحضرت صلی الله علیه وسلم ولې وویله چې» اَرْجُوْا اَنْ اَكُوْنَ» آه

**جواب**: دا دپاره دادب دخدای جل شانه سره او بعض علماء وائی چې د غه وخت کې اٰنحضرت صلی الله علیه وسلم ته دا نوم معلومه چې هغه بنده به زه یم سعدی شیرازی وائی ـ
عطائی شفاعت چنانش دهند :: کرامت تمامی ز دوزخ رهند

**فائدۀ مهمه**: قهستانیؒ د کنز العباد نه روایت کړی دی چې دا خبره په روح البیان کښی هم موجوده ده. چې مستحبه ده چې سړی اول کلمه د" اَشْهَدُ اَنَّ مُحَمَّدًا رَّسُوْلُ اللهِ "واوری دا سی دی وائی صلی الله علیك یا رسول الله" یعنی ترا جابت وروسته. او کله چې دوهم وار هغه کلمه واوری نو دی دوی گوتی بتی بر سترگو کښیږدی او دا سی دی ووائی "قُرَّةُ عَیْنِیْ بِكَ یَا رَسُوْلَ اللهِ او دا دعا دی وکړی. "اَللّٰهُمَّ مَتِّعْنِیْ بِسَمْعِیْ وَبَصَرِیْ" نو په دی سره به رسول کریم صلی الله علیه وسلم دده قائد وی په جنت کی. او بل ذکر کړی دی د یلمیؒ په فردوس کی چې دده کتاب دی په روایت دا بو بکر الصدیق رضی الله عنه مرفوع و علیه السلام ته. "مَنْ مَسَحَ العَیْنَ. یعنی چا چې دواړی سترگی مسح کړی. بِبَاطِنِ اَنْمِلَةِ السَّبَّابَتَیْنِ بَعْدَ تَقْبِیْلِهِمَا عِنْدَ قَوْلِ الْمُؤَذِّنِ اَشْهَدُ اَنَّ مُحَمَّدًا رَّسُوْلُ اللهِ. وَقَالَ وَاَشْهَدُ اَنَّ مُحَمَّدًا عَبْدُهٗ وَرَسُوْلُهٗ رَضِیْتُ بِاللهِ رَبًّا وَبِالْاِسْلَامِ دِیْنًا وَبِمُحَمَّدٍ نَبِیًّا حَلَّتْ لَهٗ شَفَاعَتِیْ" دا دوه حدیثه که څه هم سند یې قوی نه دی. لکن امام طحطاویؒ وائی: وَبِمِثْلِهٖ یُعْمَلُ فِی الْفَضَائِلِ" او په دغه حدیث او دا غه رنگه حدیثو سره عمل کیږی په فضائلو کښی د اعمالو کی ص۱۲۵

**تعجب دی**: بعض نام نهاد ملایان په او سنی وخت کښی وائی چې یا رسول الله ویل شرك دی. نَعُوْذُ بِاللهِ مِنْ ذَالِكَ" آیا قهستانیؒ او یا مصنف د کنز العباد او دیلمیؒ او امام طحطاویؒ او مصنف د روح البیانؒ او جامیؒ چې وائی ـ
ز مهجوری بر آمد جان عالم .. ترحم یا نبی الله ترحم .. او نور نامور ی علماء. دا نو دعوت کوونکی و شرك ته دی. او یا دا مشرکان دی؟؟ هغه پریږده د دغو وو حدیثو به دا تو یحی بندگان څه جواب وائی. البته. د دوی چې ډیری دلاوری وی نو دا به وائی چې دا حدیثونه موضوعی دی یعنی د رواغ دی پر علیه الصلوٰة والسلام. که څوك د دوی څخه پوښتنه وکړی چې ولی موضوعی دی. دوی به البته په لمن پوری د ابن تیمیهؒ او یا خطیب بغدادی او یا سبط





ابن الجوزی لاسونه ټینگ کړی - او یا به ووائی چې دا حدیث په صحاح سته وو کښی نشته نو زه وایم چې ټوله علماء د دین پر دی اتفاق کړی دی. چې د صحیح حدیثو حصر په صحاح سته وو کښی غلطه خبره ده بلکه دا کتا بونه صحیح دي. دا امام بخاریؒ نه روایت دی چې وائی. "تَرَکْتُ کَثِیْرًا مِّنَ الصِّحَاحِ لِحَالِ الطُّوْلِ"
تر ټولو عجیبه خبره لا داده چې دغه ملایان شپه او ورځ د ډیرو لیری ځایو د خلکو په ټیلفون کی خبری کوی او نو ری وی، وهی نو پر دی په تصدیق دی. او دوی وائی چې دا خو ددنیا والو حکمت دی. نو زه وایم چې او د یدل د درود یا سلام. او یا رسول الله په غوږو د اٰنحضرت صلی الله علیه وسلم خو بیا د خدای جل سلطانه قدرت دی، البته په دی به هم دی قناعت و نه کړی. ولی دوی به ووائی چې سړی چې مړ شی هغه جماد گرځی نو څه رنگه شی او یدلی شی. نو زه وایم علیٰ تقدیر التسلیم" دا بو جهل به لاس کښی څه رنگه سنگریزی لَا اِلٰهَ اِلَّا اللهُ مُحَمَّدٌ رَّسُوْلُ اللهِ وو یل چې په تو که ثابت ده" صحیح

**پوښتنه**: چې فقیر دا سی وو ئیله علیٰ تقدیر التسلیم ددی معنا داده چې ځکه د دوی خبره چې مړی په مرگ سره جماد گرځی و منم" یعنی اول خو زه دا خبره نه منم. ولی چې پر دی خبره کښی خوا نکار دی د عذاب القبر څخه چې هغه یوه اتفاقی مسئله ده. دا اهل السنت والجماعت - او په دی خبره کی خوانکار دی د هغه صحیح حدیث څخه چې علیه الصلوٰة والسلام فرمائی: "اَلْقَبْرُ رَوْضَةٌ مِّنْ رِّیَاضِ الْجِنَانِ اَوْ حُفْرَةٌ مِّنْ حُفَرَاتِ النِّیْرَانِ"
داده خاتمه د باب الاذان او اوس اِنْ شَآءَ اللهُ الْکَرِیْمُ مقصود اصلی چې له و نځ دی شروع کیږی. اَللّٰهُمَّ وَفِّقْنِیْ لِاِتْمَامِ هٰذَا الشَّرْحِ بِالْخَیْرِ وَالْعَافِیَةِ وَالصِّحَّةِ وَالسَّلَامَةِ وَاجْعَلْهُ لِوَجْهِكَ الْکَرِیْمِ، وَارْزُقْنِیَ الْاِصَابَةَ فِیْ مَسَائِلِ هٰذَا الْکِتَابِ، وَاحْفَظْنِیْ مِنْ کَیْدِ الْحَاسِدِیْنَ. وَشَرِّ الَّذِیْنَ یَقُوْلُوْنَ بِاَفْوَاهِهِمْ مَا لَا یَعْلَمُوْنَ. اَللّٰهُمَّ افْتَحْ بَیْنَنَا وَبَیْنَ بِالْحَقِّ وَاَنْتَ خَیْرُ الْفَاتِحِیْنَ. وَمَا ذَالِكَ عَلَیْكَ بِعَزِیْزٍ وَصَلَّی اللهُ تَعَالٰی عَلٰی سَیِّدِنَا مُحَمَّدٍ وَّعَلٰی اٰلِهٖ وَصَحْبِهٖ اَجْمَعِیْنَ.

بیت ـ نقصان ز قابلست وگرنه علی الدوام :: فیض سعادتش بهمه کس برابر است ::

بَیت: داباران چې پرهمه ووځکوورې... مشرف یې کې داذات دکیمیاوَ لې...

بَیت: دحسَد پرغونډې ناست دی حاسدان... زړاوخواته یه دَغشودی بـاران..

بَیت. دقیامَت په ورځ به څه کوی خواران.. چې محسُوده دوی دلاسه وی نالان..

بیت... نه بخښنه دمحسُوسته نِې دوغواړي... پرحسَد باندې سرېږي لوی باری دَ بهتان.

بیت... به عمل یه دمحسوددی چې قیامت سِې... ومحسُوته کم ضرر دی کم تاوان

بیت.. کبیره دې گنهونو په اجماع ... داحسَد اوهم غَیبت اوهم بُهتان..

بیت... نه عُبید خوَاصو خَلگوته حیران یَم... چې عمل په علم نه کی عالمان.

محمد الله ایوبی کندهاری

## دَ نیکمرغۍ زیرۍ

دبخت ستوری مو اوچت پاس پرآسمان سو
ایوبي چې په پښتو ژبـه گویـان سو

افغان به نن په ستره شمله گرځي
چې ئې دین نن په پښتو ژبه عیان سو

دسجدی سرونه کښته کړي خپل رب ته
تاریخي نوم نوشته چې دافغان سو

ایوبي ستا دقلم تول اثرو سَه
نن ښکاره پر امریکا، اوپر ایران سو

بیله ستا دنوشتو کله قبلیږی
کتابونه، تقریرونه که بیان سو

رب به نوی ئې عمرزیات کړي دین خدمت ته
ځکه نن زما حقاني دغه اعـلان سو.

حقاني دروکوټه
۱۴۲۱/۷/۱۶ھ





# بَابُ شُرُوطِ الصَّلوٰةِ وَاَرکَانِهَا

**پوښتنه** باب دی په بیان کی دشرطودَ لمانځه اوپه بیان کی درکنودَ لمانځه، مصنفؒ ولې بیان دَ شرطو اورکنو په یوه بـاب کی راوړي. **جوَاب**: مصنفؒ په مَراقی کښې وَائي جمَعًا بینهما للتیقظ لما تصح به الصلوٰة، ماجمَع کړه دادوه شیان په یوه باب کی دپاره دبیداره کولو دزړه کوونکو پـه هَغه شَیانو سره چې په هَغوسره لمونځ صحیح کیږي. **پـوښـتـه**: چې شروط جمع دشرط ده اوشرط پـه لغت کی عَلامت ته وائی لکه دود چې عـلامه داورده اوپـه شرعه شریفه کی هغه شی ته وائی چې یوشئ پرده موقوف وی اودی د هغه دمَاهیته څخه خارج وي. لکه اودس دپاره دَ لمانځه. او ط وَائي چې شرط درې قسمه دی. یو عَقلی دی لکه تیشـه دپاره د نجار. اوبَل شرعي دی لکه طهارت دپاره د لمانځه. اوبل جَعلی دی لکه دخول دپاره دَطـلاق چې ښـځي ومایني تـه وَوائي: اِنْ دَخَلتِ الدَّارِفَـاَنتِ طَالِقٌ.

او **ارکان** جمع درکن ده رکن پـه لغت کی قوي جانب ته وَائي. اوپـه اصطلاح کښې هغه شی ته وائي چې دده اودبَل شئ څخه یوشی جوړیږي. لکه دچارپـائي پښې اونور لرگي. اویارکوع دسجدی اوقیام وغیره دپاره د لمانځه. **فـَـائِـدَة**: پوه سَه چې علماءُ دفقهي شریفي اوعلماء داصول الفقه، داسې وَائي چې یوشئ چې د بَل شئ سره تعلق اورابطه لري. نوشئ اول یا به په شئ ثـانی کښې داخِل اوجزء وی او یا نه. که جزء وو هغه ته رکن د دوهم شی وائی لکه رکوع اوسجده مثلًا دپاره دَلمانځه. اوکه داخِل نه وُو. نویا به تاثیر ظاهري لري په دوهم شی کی نو هغه ته علت وَائي لکه عقد د نـکاح دپاره د رَوَاوالي دَجماع. اوکه مؤثر په حسب دظاهر هم نه وُو بلکه هغه شِی ثانی ته رسیدَی. هغه ته سبب وَائي لکه وخت دلمانځه دپاره دوُجوب دلمانځه اوکه داسې هم نه وُو لکن شئ ثانی پراول موقوفه وو، هغه ته شرط وَائي لکه اودس دپاره دلمانځه. اوکه دوهم شئ پرموقوف هم نه وُو هغه ته عَلامه وَائي لکه اذان دپاره دَلمانځه

ذکره الحموی، ط. قَالَ المُصنفُ

## لَابُدَّ لِصِحَّةِ الصَّلوٰةِ مِنْ سَبعَةٍ وَعِشرِیْنَ شَیْئًا

چاره نشته دپاره صحیح والی د لمانځه د اوه ویشت شیانو څخه، **پوښتنه**: چې شئ عام دی رکن ته هم وائي او شرط ته هم. او دلته هم دواړه بیانیږی. **پوښتنه**: په ډیرو کتابو کښې د فقهې ۱۲ شئ موقوف علیه دَ صحت د لمانځه ګڼړل سوی دی او مصنفؒ ۲۷ شیان کړه. حتی په پنج گنج کښې وائي: شش درون نماز و شش بیرون. **جواب**: هو لکن دَ هغو مصنفانو چې ۱۲ یې بیان کړي دی: هغو غرض اسانول د حفظ دی پر زده کوونکو باندې خصوصًا نوآموزان، او دَ مصنفؒ چې ۲۷ بیان کړیدي تحقیق او تفصیل دی مګر بیا هم په دغو ۲۷ کښې هم حصر نه دې، کَمَاسَیَأْتِیْ اِنْ شَآءَ اللهُ تَعَالیٰ **پوښتنه**: چې محقق طحطاویؒ دپاره د ضبط او د بیان اجمالي دَ دغو ۲۷ شیانو د اسې بیان کړی دی.

چې **پوښتنه**: چې شروط اجمالاً پر څلور قسمه دی **اَوّل شرط دَ انعقاد** د لمانځه دی فقط لکه نیت او تحریمه، او وخت، او خطبه د پاره د جمعې دَ لمانځه.

**دوهم شرط د انعقاد دَوام**: د لمانځه د پاره هم لکه طهارت، او ستر عورت او استقبال القبلة چې دا شیان هم په وخت کی دا نعقاد د لمانځه غواړي. او هم به په وخت کښې د بقاء د لمانځه غواړي» **دریم شرط دَ بقاء دَئ**: د لمانځه یعنی په داخل کښې د لمانځه هغه بیا دوه قسمه دی یو وجودی یعنی چې دا شئ به موجود یږی نو لمونځ کیږي او بل عدمی یعنی دَ غه شئ به نه وي نو لمونځ کیږي. پس وجودی شرط لکه قراءت چې په لمانځه کی هم رکن دی او هم شرط دی. په ټولو ارکانو کښې. او عدمی شرط لکه دا چې په جماعت کښې به مقتدی تر امام د مخه نه وي. او یا دا چې مشتهات ښځه دَ لمونځ کوونکی پر برابر نه وي او یا دا چې قضائي لمونځونه چې ترتیب لري یعنی تر شپږ کم وي په لمانځه کی به نه وَ ر پیادیږی. او **څلورم شرط د اتمام دَئ**: د لمانځه چې اخیره ناسته ده-

**سؤال** تا سِی قرائت شرط په ټولو ارکانو کښې وبالله او سره د دی چې قرائت صرف په دوو[2]





رکعتو کی فرض دئ **جَوَابُ**: ظاهرًا که په ناسته کښې یا په رکوع او سجده او یا په دوو رکعتو اخیرو کښې قرائت فرض نه دی لکن تقدیرًا فرض دی. ځکه هغه وخت چې فرضی قرائت امام وئیلی وی او بیا اوس په مات سی د اُمی سړي چې قرائت یې نه وی نو ده خلیفه کرځول روا نه دی»، کذا فی در المختار» ط؛ عز، قَالَ المصنفُ

اول پاکی ده دَ کشنی او لوی بی او د سیا څخه او د حیض او

## اَلطَّهَارَةُ مِنَ الْحَدَثِ

نفاس څخه. او بل پاکی د بدن د نجاست خفیفه او غلیظه

## وَطَهَارَةُ الْجَسَدِ وَالثَّوْبِ وَالْمَکَانِ

څخه» یعنی چې تر مقدار د معفو بالاوي او بل پاکی ده دَ جامې یعنی هغه جامې چې دی لمونځ په کښې کوي. او بل پاک والی دَ ځای دَ لمانځه دی یعنی د پښو ځای او یا د یوی پښې ځای کی بله پورته کړی وه» در مختار. قَالَ المُصنفُ

دد اسی نجس څخه

## مِنْ نَجَسٍ غَیْرِ مَعْفُوٍّ عَنْهُ حَتّٰی مَوْضِعُ الْقَدَمَیْنِ

چې عفوه نه وي او د معفو عنه بیان د مخه تیر سو فتذکر» نو کی تر یوه پښه لا ندی نجس مانع وو لمونځ به نه صحیح کیږي. او که تر دواړو پښو مجموعًا لا ندی نجس مانع وو هم به لمونځ نه صحیح کیږي. **مسئله**: که سړی دواړی پښې ایښې وای پر نجس با ندی نو تر قدر معفو بالا کیدی. نو ده یوه پښه په هوا ونیوله او پر یوه پښه یه لمونځ کاوه دا کار مکروه دی»، قَالَ المصنفُ

یعنی بل شرط

## وَ الْیَدَیْنِ وَالرُّکْبَتَیْنِ

پاک والی دی د ځای د اینبوولو د لاسواو نګنو **پوښتنه**: چې امام حلبیؒ وائي چې فرق نشته په مابین کی د نګنو او لاسو او د پښو، او دَ ځای د سجدی په دی کی که نجاست مانعه پر دغو ځایو کښې وی لمونځ یې نه دی روا. ولی چې جوت والی دیوانه دام په نجاست پورې دا سی دی لکه چې هغه نجاست د ده سره وَرسره وی. که څه هم وضع د هغه اندام فرض نه وي، حتی کې غنګلی پر ځمکه که کښیښوولی، که څه هم دا وضع مکروه ده. لکن که پر نجاست مانعه وي لمونځ یې نه دی روا» ط»

اَللّٰهُمَّ اغْفِرْ لِکَاتِبِهٖ وَلِمُؤَلِّفِهٖ اٰمِین

**وَالْجَبْهَةِ عَلَى الْاَصَحِّ** اوځای د تندی ایښوول هم پاك وي په صحیح روایت د حضرت الامام اعظمؒ. په اصح کی مصنفؒ اشاره وکړه یو بل روایت ته د حضرت الامامؒ څخه چې وائي پاك والی دځای د تندی ایښوولو شرط نه دی، ولی چې یو روایت داسی ستر چې سجده یوازی په پزه بېله تندی روا ده. او که تر پزی لاندی نجاست وو لمونځ روا دی. ولی هغه تر قدر د درهم کم دی.

**مسئله**: که سړی په وچو خښتو یا نورو وچو نجاستو باندی داسی پټو وغیره اوار کړی چې لاندی نجاست نه تر معلومیدی لمونځ په هغه پټو روا دی. او که نجاست لوندوو او کراسته یه پر آواره کړه. او یا یه پټو دوه دری واره غبرګ کړی. او پر اوار یه کړی په داسی ډول چې د نجاست بوی نه تر راوتی لمونځ پر روادی» م.

**مسئله**: که دیوچا لنګوټه اوږده وه او یو طرف یه چې پاك وو د ده پر سر وو او بل طرف یه مردار وو چې هغه مردار طرف د ده پاك طرف په ښورولو سره نه ښوری دی. نو د هغې لنګوټې سره لمونځ روادی والا فلا. م» **مسئله**: که خیمه مرداره وه او سړی لمونځ پر کښی کاوه او سر یه د خیمی سره لګیدی لمونځ روادی **مسئله**: که یو کچنی سړی پر اوږه کښینولی وي چې هغه کچنی ځان په خپله ټینګولای سوای لمونځ ور سره روادی. امام طحطاویؒ وائي که څه هم دا کچنی کپړی یا بدن یه مردار وي. ولی لیا څه کوونکی حامل د نجس نه بلل کیږي. او که داسی کچنی وو متنجس چې ځان په خپله نه سوای ټینګولای نو لمونځ نه دی ور سره روا. ولی چې لمونځ کوونکی په دی صورت کی حامل د نجاست دئ.

**مسئله**: سجده یوائي پر تندی کول مکروه تحریمی ده کذا فی ط» قال المصنفؒ

**وَسَتْرُ الْعَوْرَةِ وَلَا يَضُرُّهَا نَظَرُهَا مِنْ جَيْبِهِ وَاَسْفَلِ ذَيْلِهِ**

او بل د شروطو څخه د صحت پټول دی د عورت: چې پردی باندی اجماع د امت ده چې ستر د عورت فرض دی. په مراقی کښی وائي، وَلَوْ فِي ظُلْمَةٍ، که څه هم په تاریکه خونه کښی وي. او که څه هم هیڅ څوك نه وي حتی که یو سړی په تاریکه خونی کښی چې هیڅ څوك هم نه وو لمونځ یه کاوه او





بربنډ وو او سر د دی چې پاکه جامه ور سره پر ته وه. لمونځ یه دی روا، دلیل یه دا دی چې په ستر کښی د عورت دوه حقه دي. یو حق العباد. او بل حق الله نو په تاریك ځای کی که هم حق العباد پر ځای سو یعنی خلګو دی عورت نه ولیدی مګر حق الله نه سو پر ځای.

**پوښتنه**» خدای جل سلطانه څخه خو څه عورت او پټ پټ عورت دواړه علم لري نو پټول د عورت څه فائده لري **جواب**: خدای پاك په هغه عورت چې علم لري سره د بې ادبي د سړي او پر پټ چې علم لري سره د ادب د سړي. او دا ادب د خدای سره فرض دی چې قدرت سړی لري» کذا فی بحر الرائق، او امام طحطاویؒ وائي چې ستر د عورت تر دی اندازی پوری لازم دی که په خټو عورت لري او یا د درختی په بلګو یه پټوی او یا په خړو او بوسه پټوی هم دا کار به کوی. مګر په ښیښه پټول روا نه دی هغه پټول نه دي»

قوله **وَلَا يَضُرُّ** آه یعنی که لمونځ کوونکی تر ګریوان خپل عورت ولیدی ضرر نه لري. ولی چې مصلی تمسه کول د عورت ور ته کتل روادی. لکن خلاف اداب الصلوٰة کما فی النهر» او برهان الحلبیؒ وائي چې دا نظر مکروه تحریمی دی. او بعض مشائخؒ وائي چې ستر د عورت د خپل ځان څخه شرط د صحت د لمانځه دئ. وَهُوَ خِلَافُ الْمُخْتَار» **مسئله**: ستر د عورت خارج د لمانځه په خلوت کی امام حلبیؒ وائي چې واجب دی او شارح وائي چې نه دی واجب» وَهُوَ الْمُخْتَار»

قوله **وَاَسْفَلِ ذَيْلِهِ** آه یعنی که بل څوك تر لمن لاندی د ده عورت وویني لمانځه ته یه تاوان نسته. ولی چې تکلیف په قدر د طاقت وی. او په منع کی د بل چا د کتلو د عورت د ده حرج دی.

**مسئله**: د بعض خلګو خصوصًا د هندوستان د خلګو پر توګې دومره تنګ او قمیص یه لنډ وی. چې په هغه کښی د مصلی د کوناټي نقشه او د خوټو نقشه معلومیږی لکن پټی وی دا و لمانځه ته تاوان نه لري.» قاله الحلبیؒ. **مسئله**: په ثوب کښی د ورینمو او یا په محکله مغصوبه کښی لمونځ صحیح دی لکن مکروه تحریمی دی» ذکره السیدؒ. په مراقی الفلاح کی وائي چې مستحب دا ده چې نر دی په دریو جامو کښی لمونځ کوي. د هغه ښو جامو څخه د ده «قمیصٌ، وَ ازارٌ، و عمامةٌ». او مکروه دی لمونځ په یوائي لنګ کی سره د قدرت په قمیص

اونګوته ، قَالَ اللّٰهُ تَعَالیٰ: خُذُوا زِيْنَتَكُمْ عِنْدَ كُلِّ مَسْجِدٍ ، اى صَلٰوة كذا فسره كثير مِنَ المحدثين ، اوښځې لره مستحب دی لمونځ په قميص اوپوړنی اوپړونی کښې

**مَسْئَلَه**: نړلره کافی ده چې پراخه پټو وغیره کښې چې دده پراکثر بدن مشتمله وي لمونځ وکړي. چې په حديث کې دعبادهؓ بن الصامت کې داسې راغلی دي. چې مونږ ته لمونځ راکړی رسُول اللّٰه صَلّی اللّٰه علیه وَسلم په یوه پټو کښې چې پر بدن مبارك یې راپیچلی وه. اود اوږو په مابین کې غوټه کړې وه **مَسْئَلَه**: رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّی اللّٰهُ علیه وسلم نهی کړې چې یوسړی په یوه جامه کښې لمونځ کوي چې پراوږو یې نه وي غوټه کړې وَلې چې احتمال دښُيَه کولو اوکشف عورت سته، وَالکراهة تحريمية ط، قَالَ الْمُصَنِّفُ

## وَاسْتِقْبَالُ الْقِبْلَةِ فَلِلْمَكِّيِّ الْمُشَاهِدِ فَرْضُهُ إِصَابَةُ عَيْنِهَا

اود غړ نګه شرط دی د لمانځه دصحت دپاره مخامخ دریدل ومكة المكرمة ته په لمانځه کې اوفرضيد

## وَلِغَيْرِ الْمُشَاهِدِ جِهَتُهَا وَلَوْ بِمَكَّةَ عَلَى الصَّحِيحِ

داستقبال په قرآن سره ثابت دی. فَوَلِّ وَجْهَكَ شَطْرَ الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ ، اوپه حديث سره هم ثابت دی، قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: لَا يَقْبَلُ اللّٰهُ صَلٰوةَ امْرِءٍ حَتّٰى يَضَعَ الطَّهُورَ فِي مَوَاضِعِهٖ وَيَسْتَقْبِلُ الْقِبْلَةَ وَيَقُوْلُ اَللّٰهُ اَكْبَرُ: **پوهه سه**: چې مراد دقبلې څخه دغه ځای دی د بیتی مبارکې نه خوله دکعبې حتی کې نیت دخونې دکعبې وکړي لمونځ یې نه دی روا، مګرکې مراد جهة وو، كذا فِي الْمَرَاقي: **پوهه سه**: چې په مدينه منوره کښې هم اصابت دعين شرط دی، وَلې چې قبله دمديني وَالو په نص سره ثابته ده، **پوهه سه**: چې سړي دلمانځه دپاره ومکې شريفې ته مخامخ ودريږي. نونيت دخولې داستقبال القبلة نه غواړي وَهُوَ الاصح مړ اودغیرمشاهد دپاره یعنې چې کعبه شريفه نه وینی استقبالُ دجهت کافي دی. که څه هم په بنار کې دمکې مکرمې یعنی په اطرافو کې د بنار پر صحيح روايت.

**پوهه سه**: چې قهستانیؒ وايي چې قبله نوم د هغه جهت دی چې خلك لمونځ ورته کوي





داوی ځکې څخه نیولې بیا تر اوه اسمانونو پورې. چې دکعبې شریفې برخونه برابروي. اودامام زده کړه چې آنحضرت صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ چې په مکه شریفه کښې اوبعض علماء وايي چې لمونځ یې وکعبې شریفې ته کاوه. اوبعض علماءؒ وايي چې لمونځ یې بيت المقدس ته کاوه دی اختلاف دادی چې عَلَيْهِ السَّلَام په مکه شریفه کې لمونځ په داسې توګه کاوه سبب ددی چې هم بې کعبې ته مخ وو اوهم بيتُ المقدس ته» او مختاره هم داده چې بيت المقدس تې لمونځ کاوه تا چې نسخه دقبلې دوه واره لازمه نه سي. ولې کې په مکه شريفه کې لمونځ وکعبې شریفې ته کاوه. نومدينې منورې ته راغلی هغه منسوخه سوه بیا بیت المقدس ته لمونځ کاوه. اوبیا شپاړس١٦ میاشتې وروسته بیرته مخ کعبې ته په لمانځه کې اړاوه یعنی بيت المقدس هم منسوخ سُو. اوکې په مکه شريفه کښې لمونځ بيت المقدس ته کاوه نونسخ دهغې قبلې یو وار په مدينه شريفه کښې میا مخ ته راغله. په هرصورت نبي کريم صَلَّى اللّٰه عليه وَسَلم خوښه داوه چې قبله د لمانځه دده کعبه شريفه سي. وَلې هغه قبله دابراهيم عليه السلام وه» اوبل سبباعث پر ایمان دقريش وه»

ولې چې کعبه شریفه ځای دفخر دقریش وه. لکن با این همه تأدبًا مَعَ اللّٰه عزّوجل سؤال صریح د خدایؒ څخه یې نه کاوه لکه چې ددې ایت څخه معلومیږي، قَدْ نَرٰى تَقَلُّبَ وَجْهِكَ فِي السَّمَاءِ فَلَنُوَلِّيَنَّكَ قِبْلَةً تَرْضٰهَا فَوَلِّ وَجْهَكَ شَطْرَ الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ» الآية.

**اِخْتِلَافُ الْعُلَمَاءِ** مشهوره داده چې په ورځ ددوشنبې ١٥ رجب په دوهم کال دهجرت پر صحيح روايت. تحويل دقبلې دبيت المقدس څخه وکعبه شريفې ته په داسې حال کښې راغلی چې آنحضرت صَلَّى اللّٰه عليه وَسلم دمابينين لمونځ په مسجد کې دبني سلمه ګذاره په مابين کې د لمانځه وه چې ورته راغلی چې په باقي لمانځه کې دې مخ وکعبې شریفې ته واړوه. اوعليه السلام دوه رکعته کړي وه چې مخ یې وکعبې شریفې ته واړاوه اوخلکو نرواوښځو صفونه سره بدل کړه ځکه هغه مسجد ته مسجد ذوالقبلتين ترډا اوسه پورې وايي اوامام طحطاويؒ هم دغه مشهوره خبره تحقيق ګڼلې ده. لکن ظاهر احاديثو مبارکه دبخاري وغیره پردې دلالت کوي چې تحويل دقبلې په مسجد نبويؐ کښې راغلی دی اوخارج الصلوٰة هم وو

وَاللّٰهُ اَعْلَمُ بِالصَّوَابِ، **دَقُرَيشُوْاوَيهُودَيَانُوسَوالُونَه**: څه وخت چې عَليه الصَّلوٰة والسَّلام په مدينه منوره کښې لمونځ و بيت المقدس ته کاۀ. نو مشرکانو دمکې به وَئيل چې مُحَمَّد صلی اللّٰهُ عَليه وَسَلم خو وائي چې زه تابع د دين ابراهيمي يمه، بَلْ نَتَّبِعُ مِلَّةَ اِبْرٰهِيْمَ حَنِيْفًا نو قبله د ابراهيم عليه السلام خو کعبه وَه. او دی لمونځ وَ بيت المقدس ته کوي دا څرنګه متابعت دَی، او يَهود يا نو بَه وَئيله چې دانبي زمونږ د دين متابعت نه کوي او زمونږ وقبلې ته لمونځ کوي. او هغه وخت چې تحويل دَقبلې وَکعبې شريفې ته رَاغلی نو قريشو به وَئيله چې زمونږ دکعبې وَخواته راما ئِل سوژر دَئ چې زمونږ په پوره دين کښې به داخِل سی. او يهودو به وئيله چې دا سړي يعنې عَليه الصلوٰة والسلام خپل دَوَطن او قوم محبت واختیَ نو که دی پرحق وَای. نو قبله دانبياء عَليهم السَّلام چې بيت المقدس وه وَلې پرې بنووَله.

**وَرُوْنـڑُو**: وګوري چې دښمنان د اسلام څه څه تهمتونه بې ځايه پر اسلام وَائي او دا سِلسلۀ د تهمتو پر اسلام باندی به د تل دَپاره جاري وي. او هم دا اوس چې پر يوغريب ملک چې تخمينًا شل کاله پر دی ملک باندی د وينو وَلې بَيول سوي دي او په لکونه ځی په کونډيانی سوي دي. او په لکو ځنيان يه يتيمان سوي دي. او په لکو خلګ دَدَغه ملک په بَرَدې ملکو کښې د بې عزتۍ ژوند تيره وي. او ځکی يه توليې شاري او وی جاړ سوي دي. او دا ټوله د روسيې مَلعُونې دَلاسه. لکن دا اوس پنځه کاله کيږي تخمينًا چې د طالبانو امارت اِسلامی د افغانِستان پر ۹۵ فی ۱۰۰ باندی حاکِم دَئ. او د شريعت غراء نوراني احکام په عملی بڼه په کښې جاري دي. کفار د دُنيا په متابعت د امريکا او انګليسا نو دَامارت اِسلامی په رسميت بين المللي نه پيژنی او قسم قسم اعتراضات لکه د قريشو او يهودو پر کوي او فقط د ۵ فی ۱۰۰ حکومت په رسميَت پيژنې.

**عجبه خو لا دَا دَه**: چې روس او امريکا چې دقديمه څخه سَره دښمنان وَه. او س هم په باطن کې سره دښمنان دي. په مقابل د امارت اِسلامی افغانستان، سره هم نوا او هم صَداء دي او ددی څخه په زړو کښې

**پُوهسَـه**: چې چونکه د نسخ دَقبلې اوله نسخ وَه په اسلام کښې.



دخلکو مشکوک او شبهات پيدا کيدَله نو ځکه باری عزوَجَل دَقبلې په باره کې ډير تحقيق کړي دی، کَمَا يظهر من مطالعة القرآنِ الکريم، قَالَ المُصنفُ رحمه الله.

**وَالْوَقْتُ وَاِعْتِقَادُ دُخُوْلِهِ** او بَل شرط دَلمانځه وخت دی. او بَل اعتقاد او يقين د راودل دی پر دخول د وخت

**پُوهسَه**: چې دَغه پنځه وختونه دَ پنځه لمونځو دپاره ثابت په قرآن کريم او په سُنت نبوي او په اجماع د امت مرحومه سَره دَی، قَالَ اللّٰهُ تعالیٰ: اِنَّ الصَّلوٰةَ كَانَتْ عَلَى الْمُؤْمِنِيْنَ كِتٰبًا مَّوْقُوْتًا، په تحقيق سره لمونځ دی پر مسلمانانو ليکل سوي يعنې فرض مُقيد په وخت سَره دی يعنې چې نه دئ تر وخت تاخير روادَی. او نه ئې تقديم روادی. **پُوهسَه** چې مصنفؒ په مَراقی الفلاح کښې اعتراضًا وَئيلی دی چې په ډيرو معتمدو کتابو کې لکه قدوري، مختار، هدايه، کنز، کښې د وخت شرط والی په په باب شروط الصلوٰة کی نه دی کړي، وَلا اَعْلَمُ سِرُّ عَدَمِ ذِكْرِهِمْ لَهُ، **پـوښـتـنـه**، دغو مصنفانو خو په اوله کښې دکتاب الصَّلوٰة وختونه ټوله بيان کړي. نو د مصنفؒ داعتراض پر دوی څه وجه دَه؟ **جَوَابْ**: د مصنفؒ سوال حَاصِل دا دی چې دَغو مصنفينو دَدَغو وختو شرط وَالی نه دی بيَان کړئ او مطلق بيَان د وختو خو شرط والی نه ځندی معلوميږی خصُوصًا عند المتعلم القاصِر عن فَهم الدقائق کذا فی الطحطاویؒ **پُوهسَه**: چې وختونه د لمانځه سبب دی دا د اکولو د لمونځو وَلې چې واجب وَالی د لمونځو په دغه وختو پورې تعلق لري. او هم دغه وختونه ظرف او ځای دی دلمونځود پاره. وَلې چې ظرف په اصطلاح د فقهی هغه وخت ته وائي چې تر فرض زيات وی او وختونه د لمونځو هم تر لمانځه بالا دی. او هم دغه وختونه شرط د وجوب دَلمانځه دی. وَلې چې واجب وَالی د لمونځو پر وجوب د وخت موقوف دی. او د شرط هم دا غه معنا دَه.

قال المصنفُ **وَالنِّيَّةُ** او بَل شرط دَلمانځه نيت دَئ **پُوهسَه**: چې نِيت په لغت کښې عزم ته وَائي او عَزم تينګه اراده ده دَزړه وَيوه کار ته او پَه شرع شريف کی نيت قصد دی د طاعت او نږ دی وَالی د خدای جَل شانه ته په يو کار کښې نو هغه کار که د زړه کار وی. لکه توبه او پښيمانی پر ګناه. او يا بيَره د خدایٔ جل وَعلا څخه او نور اعمال قلبيه

او یادا ندامو کاروی لکه لمونځ اوروژه حج وغیره **فائِدَهٔ**: د نیت څخه مقصد دا دی چې
یا عبادت د عادت څخه جلا سی، مثلاً یو سړی خوراك او څښاك نه کوی یا ضرورت نه ورته
لری په تموله ورځ کی او یا طبیب ده ته پرهیز ور کړی وی. نو دا عبادت نه دئ. او چې نیت
وکړی چې زه به نن د ثواب د تقرب وخدای جل جلاله ته روژه نیسم نو دا عبادت دی. او بل
مقصد د نیت دا دی چې د یوه قسم عبادت د اقسامو فرق وکړ سی مثلاً لمونځ یو قسم
د عبادت دی چې هغه لره دا اقسام دی. فرض، واجب، سُنت، نفل، نذر، نو چې نیت
وی نو د لمانځه در لك به معلوم سی چې مُصلی کوم لمونځ کوی،
او بله فائده د نیت دا ده چې د سړی اخلاص خدای ته په معلومیږی، او اخلاص
یو پټ راز دی په مابین کی د بنده او د رب جل وعلا تر مابین چې پر هغه باندی نه ملك
علم لری چې نوشته یې کړی. او نه شیطان په خبریږی چې فاسد یې کړی. قاله الحموی ط،
**پوښتنه**: چې نیت قصد ته د زړه وائي او د ژبی خبرو ته فعل للسان، نو اصل
شرط او فرض خو نیت دی، که د زړه حضور د سړی برابر وی فعل للسان ته ضرورت نشته
او که په سبب د مشاغلو د دنیا او یا د غم په سبب یا په بل سبب احضار د قلب و سړی ته
نه میسر کیدی نو فعل للسان کافی دی کذا فی المجتبیٰ، لکن څونکه نن صبا د خلکو مشاغل
او غمونه ډیر دی نو فعل اللسان ته هم ضرورت سته،
**بنهانه فائِدَهٔ** پوښتنه: چې یو اصلی عبادت دی مثلاً صرف لمونځ او یو کیفیت د
عبادت دی. لکه د لمانځه بنه قیام، او بنه رکوع، او سجده، او خضوع
او خشوع وغیره نو که یو سړی په حضور کی د خلکو لمونځ کاوه. او چې خلك نه وی لمونځ به نه کاوه
دا سړی په اصل نمانځه کی ریاکار دی نو د دغه سړی پر ذمه هغه لمونځ چې د حضور
کی د خلکو کړی دی پور دئ. او د هغه لمانځه هیڅ ثواب نه لری په دربار کی د خدای جل جلاله
ولی ده په لمانځه کی چې حق د خدای جل جلاله وو مخلوق شریك کړی. او خدای جل جلاله
شریکی عبادت نه قبلوی، او که یو سړی په حضور کی د خلکو لمونځ په بنه رکوع، او سجده
وغیره سره کاوه، او په خلوت یعنی یواځی لمونځ بیله مراعاته د سُننو او مستحباتو کاوه



یعنی چابك چابك د غه سړی ته د هغه لمانځه چې په حضور کی د خلکو په ادب او
احترام سره لمونځ کړی دی د اصلی لمانځه ثواب سته او غاړی یې د اصلی لمانځه څخه
خلاصی دی. اما د بنه کیفیت ثواب یې نسته. ولی چې هغه کښی مخلوق شریك دئ.
دی دوهم قسم ته ریاء فی الکیفیت وائی. او دغه دوهم قسم محمول ده هغه خبره چې
خلاصه والاوائی. لا ریاء فی الفرائض،
**واقِعَه** یو ریاء کار شیخ او پیر یو سړی چې ورته یې د بنه سړی عقیده
درلوده یوه شپه میلمه کړی او هغه سړی بنی ورجی او غوښی
وغیره ورته برابری کړی وی. او ډیره مکلفه ډوډئ سمه کړی وه. ماښام چې پیر
صاحب ډوډی ته تلی. یو کشنی زوی یې هم ورسره بوتلی، خیر هلته چې ورغلل او مکلفه
خواړه پر ستر خوان رنګارنګ کښیښول سوه. پیر صاحب په ډېر وګوتو دوی دری ګولی
د نبورا مثلاً و خوړلی. او یو دوی دری ګولی د وریجو یې مثلاً بوته کړی. او ډوډی یې
بس کړه. کور والا ورته وویل چې صاحبه ډوډی دی ولی بس کړه. پیر صاحب ورته
وویل چې زموږ خو هم دومره خوراك دئ، کور والا ډیر ټینګار وکړی چې صاحبه دروا خله
موږ دا ګرده ورځ دا دونه تکلیف هم ستا د پاره کړی دئ. پیر صاحب د ریاء په نرم هیره
لهجه ورته وویل، که چیری زه په ډك نس ډوډئ وخورم بیا د شپی خوب راځی او د
خدای ذکر او عبادت نه سم کولای. خیر ډوډی د پیر صاحب زوی او کور والا په مزه مزه
وخوړله، وروسته تر ډوډئ کور والا پیر صاحب ته وویل چې تبرکاً د ماخستن لمونځ
هم دا زما په کور کی په جماعت راکړه. پیر صاحب د غه سُوال ومانه او لمونځ یې په ډیر خشوع او
خضوع او په کامله سجده او رکوع ادا کړی. او وروسته یې د کور والا څخه رخصت
واخستئ دی او زوی کورته راغله پیر صاحب چې کورته راورسیدی ماینی ته ئی وویله
چې ستر خوان راواخله. ماینی یې ورته وویله چې ستر خوان څه کوی! پیر صاحب ورته
وویل چې وږی یم ډوډئ خورم. ماینی یې ورته وویل چې اخیر د خان صاحب میلمه وې
هلته به دی خوړلی وی. په بنو بنو شیانو به دی ځان موړ کړی وائی. پیر صاحب ماینی ته وویل

خم بیعقله بنځئ... که چیرې مادخان صاحب پر ستر خوان دَخپلې خیتې برابر ډوډۍ خوړلې وای د هغه عقیده زما د بزرګۍ څخه بد لیده. خیر ما ېنی یه ستر خوان راواخست او پیر صاحب وه وَچې ډوډۍ ته وجوړیدی اوخیته یه په ډکه کړه. نروی وَرته وویل چې بابا د ما خستن لمونځ نوهم راوګرځاوه اودکوره پروزد یه وکړه هغه لمونځ چې تا دخان صاحب کره وکړی هغه خوبل ډول لمونځ وُو.

**مسئله**: که چا داول وار لمونځ په بنه إخلاص اوخالصًا لله شروع کړی او وروستو په زړه کښې ریا پیدا سوه پس هغه اول نیت ته اعتبار دئ. اوثواب د کامل لمانځه ورکول کیږی. کذا فی رد المختار وغیره من الکتب الفقهیة. **مسئله**: که څوك یو عبادت په ډیرو نیتو وکړي. د ډیرو عبادتو ثواب خدای جل وعلا ور کوی. مثلًا یوسړي غلور رکعتونه لمونځ په نیت د صلوٰة الضُّحٰی او تحیة المسجد اوسنة الوضوء وکړي. د ټولو ثواب خدای جل وعلا ور کوی. او یا یوسړي چې وَرځ د اختروه اوجُمعی وَرځ هم وه، او د ما ېنی سړی کار هم وکړئ اوپه یو غسُل کی دد رو سرو نیت وکړي خدای جل جلالهٗ د ټولو ثواب ورکوی» ط» قال المصنفؒ.

او بل شرط دَ لمانځه اَللهُ اَکبر ویل دي بیله جلاوالی

**وَالتَّحرِيمَةُ بِلَا فَاصِلٍ** د نیت څخه **پُوه سه**: چې تحریمه رکن او جزء د لمانځه نده بلکه شرط خارج دَ لمانځه دی پر صحیح روایت اوعام مشایخ پر د اغر رایه دی »ر **واوره**،، چې دَ تحریم معنا د محراموَل دي د شیُّ نو اول تکبیرته چې تحریمه وائي ددی کبله چې تحریم حَرام ګرځوی پر لمونځ ګذاره باندی مُباح شیان لکه خُوراك، خبری، وَغیره. او شرط والی دَ تحریمه په قرانٔ سره ثابت دئ. وَرَبَّكَ فَكَبِّرْ،، د ټولو مفسرینو پر دي اتفاق دی چې مراد د دغه تکبیر څخه اَللهُ اَکبر د شروع دَ لمانځه دی. او اجماع د مجتهدینو هم پر فرضیت د دی تکبیر ده. وَلې چې امر د کَبّرْ د پاره د وجوب دی او په لمانځه کی بل تکبیر واجب نشته. او په حدیث شریف کی چې روایت یه ابوداؤد کړئ دی. او ترمذی د الحدیث هم حسن ګڼلی دئ. داسی رَاغلی دی: مِفتَاحُ الصَّلوٰةِ الطُّهُورُ وَتَحرِيمُهَا التَّكبِيرُ وَتَحلِيلُهَا التَّسلِيمُ»



ترجمه: کلی دَ لمانځه پاکی ده یعنی اودس وَغیره او حراموونکی د مباحوکارو په لمانځه کی الله اکبر دی. او حلالوونکی د مباحو شیانو سَلام دئ یعنی په اخیر کی. لمانځه ولهذا الحدیث شرح طویل مذکور فی کتب شارحی الحدیث لا یناسب منصب المبتدی المتعلم لهذا الکتاب»

## مَسَائِلُ التَّحرِيمَةِ

**مسئله**: جوت والی د نیت او تحریمې یو قسم حقیقی دئ. هغه داسی چې نیت دی دَ شروع په تکبیر سره یوځای وي. داسی تر ټولو افضل کار دئ په اجماع د امامانو د مذهب حنفی. او بل قسم حکمی دی. هغه داسی چې نیت د لمانځه تر شروع دَ لمانځه په تکبیر سره وکړي. مثلًا یوسړي چې اودس په تازه کاوه نیت دَ زړه یه وُو چې زه به د ماپښین لمونځ کوم مثلًا. او په اودس اخته وو بیسله اود اسره بل داسی کار یه ونه کړی چې فاصل ګڼل کیږي لکه خوراك، چښنګ یا د چا سره خبری کول او نور ورته کارونه. نو د لمانځه ځای ته چې ورغلی د تلواره یه نه نیت د خولې وکړی او نه دَ زړه دَ دغه سړي لمونځ په هغه د مخه نیت روادئ. ط» **مسئله**: د مخه والي د نیت تر خول دَ وخت روادی چې فاصل لکه مذکورات پیدا نه سي. او ابن امیرالحاجؒ د خول د وخت د نیت متقدم دَ پاره شرط بولي. په یو روایت کښی د امام اعظمؒ **مسئله**: امام حَمویؒ وائي چې هر څوك چې پر لمانځه ودریږی په وخت کی د شروع دی د امامت نیت هم وکړي. ولې چې امکان لري چې په ده پسی داسی څوك اقتداء وکړي چې دی نه وینی لکه ملکی یا جن، او په اشباه والنظائر کی وائي چې نیت د امامَت هلته صحیح دی چې په ده پسی کم از کم یوسړی اقتداء کوی» والاول هو المختار عند الفقیر»

جواب

**مسئله**: مقتدی چې نیت د اقتداء په امام پسی کوی په څه وخت کښی یې کوی؟ اکثر علماء د فقهی شریفی پر دی دي چې څه وخت چې امام په ځای کی د امامت ودریږی د مقتدی نیت د اقتداء صحیح دی» وهذا هو المختار للفتوی.

اوبعض اماما ن د بخارا وائي چې نيت د اقتداء دَ مخه ترتحريمې د امام نه دی رَوا نقله القهستاني
اوبعض علماؤ و ډيرې تنگۍ څخه کار اخستے دے. اووائي چې مقتدی دی نيت داقتداء
د امام تر اَللهُ وَيلو وروسته اوده اَکبَر ترويلود مخه کوی»، وهذا حَرَجٌ عظيمٌ

**مسئله**: که سړی په نيت د يوه لمانځه دکوره روان سُو. اوبيله تنگه په بل فاصل
نه کی پيداچې دلمانځه ځای ته ورغلی صرف اَللهُ اَکبَر يه وواييه اوپه لمانځه يه شروع
وکړه لمونځ يه صحيح دی کذاقال المصنفُ فی المراقی»، **مسئله**: که سړي پس له
نيت څخه ذکر وکړی او بيايه شروع په لمانځه وکړه بيله بل نيته لمونځ يه صحيح دی» ط،

**استدراک**: ماتحريمه شرط د لمانځه اوخارج وگنړله يعنې رکن اوجزء نه ده
دامذهب دُو د امام اعظمؒ او د امام ابويوسفؒ. او امام محمدؒ يه رکن د لمانځه بولي.
نوبناءً پردغه اختلاف که سړی سره نجاست مانعه د لمانځه وُو. او ترتحريمې وروسته
ترشروع دَ لمانځه دمخه يه هغه نجاست ليرې کړی. د شيخينو پرمذهب يه لمونځ رَوا دی
او د امام محمد پرمذهب يه لمونځ نه دئ رَوا. ولې چې دده سره په داخل دلمانځه نجاست
وو سره دئ. او دغه رنگه يوسړي په وخت کی دَ تحريمې يئ قبلې څخه مخ چپ وُو. او وروسته
يه وقبله ته يه ځان سم کړئ. پراول مذهب يه لمونځ روادئ. پردوهم مذهب دئ رَوا
اويا په وخت کښې دَ تحريمې يه عورت لڅ وُو. او وروسته يه په لږ عمل هغه پټ کړي
پراول مذهب يه لمونځ روادی. پردوهم مذهب نه دی رَوا.

**هدايت**: پوه سه: چې مصنفؒ په مراقی الفلاح کښې وئيلی دي. چې دپاره دصحت
دتحريمې ۱۵ شرط چې دهغو څخه ۷ مايه متن کی ذکر کړی او باقی ۸ بر په شرح کښې راسې
اِنْ شَاءَ اللهُ تعالیٰ: اوزه عُبَيدُ الله به هم چې دمتن شرطونه خلاص سی. نو هغه شرطونه به هم
بيان کړم چې مصنفؒ په شرح کښې راوړی دی د تفصيل سره که خدای کوله. اوراشتيا
داده چې دغه ۱۵ شرطه دصحت دتحريمې پريوه ځای په هيڅ کتاب کښې د فقهې شريفې
نه دی ذکر سوي. اَللّٰهُمَّ اِلَّا فِي کتاب بِنقله من هذا المتن والشرح.





عامی وائي .. چې نه به وَ اول، دوهم وهکذا تر اوومي پورې په اول دوهم آه تصريح وکړم
نو اول دهغو شرطو څخه دادی»، چې تحريمه دې دَ نيت سره جفت وي حقيقتاً اوحکماً
کما قررناه انفاً»، قال المصنفُ: **وَالْاِتْيَانُ بِالتَّحْرِيمَةِ قَائِمًا**
اوراتگ دی په تحريمه سره په ولاړی. داهم دوهم شرط دی دصحت دَ تحريمې قال
**قَبْلَ اِنْحِنَائِهِ لِلرُّكُوْعِ** دمخه تر کږيدو ورکوع ته»، **پوه سه**: چې مصنفؒ
په مراقی کی وائي. چې لږ کږوالی په وانه لري. اولږ اوډير
کږوالی په دی سره معلوميږی کی لاسونه زنگنونه ته رسيدله هغه انحناء قليله ده شرط
دتحريمې يه پرځای سُو. په برهان کی وائي که مقتدی وامام ته ورسيدلې په داسې حال کی
چې پررکوع وُو. نوده ملا کږه کړه بيايه اَللهُ اَکبَر وَوايه نوکه دغه مقتدی وولاړی ته
نږدی وو يعنې لاسونه يه زنگنوته نه رسيدله. شروع يه صحيح ده اوکه رکوع ته نږدی
وو يعنې لاسونه يه زنگنوته رسيدله شروع يه نه ده صحيح. **پوه سه**: چې دا فرق
په هغه ځاکښې دی چې ملا يه سمه وی اوکه کوزه پشتروُو يعنې ملا يه کږه وه دهغه
نږ اوبعد وقياماً ی يا رکوع ته دَده په اجتهاد پورې اړه لري،،

**سوال**: داسړی چې په داسې حال کی امام ته ورسيږی نونيت خو پاته سُو. اوهغه
هم فرض وو **جواب**: په دې صورت کی نيت قلبی خو موجود دی که څه دُ خوله
نيت يه نه دی کړی. وَقد مَرّ اَنَّ النية القلبية كاف، قال المصنفُ.

**وَعَدَمُ تَاخِيرِ النِّيَةِ عَنِ التَّحْرِيمَةِ** اوبل شرط دصحت دتحريمې دادی چې نه به څنډوی
نيت ترتحريمې. او داهم دريم شرط دی دصحت دتحريمې. دليل ددی مسئلې دادی چې
لمونځ يو عبادت دی. او تجزيه او تقسيم نه قبلوي. نو که سړي په وخت کښې دتحريمې
نيت نه وی کړی نو هغه خو عبادت نه دی ورو سته چې نيت وکړی هغه عبادت سُو.
نو ټول لمونځ دعبادت او غير عبادت څخه جوړ سو. وهذا لا يجوز بالاجماع.

**مسئله**: په تقديم کې د نيت تر تحريمې حرج نشته کما مر في مسئلة الوضوء.

**مسئله**: افضله داده چې نيت او تحريمه سره يوځای وي حقيقةً دپاره دالحيا ط چې د خلاف ووزي **سوال**: روژه هم يو عبادت دی نو په روژه کې ولې تاخير د نيت روادی **جواب**: تاخير د نيت په روژه کې چې روا دی دپاره د دفع دحرج او دپاره د آساني پر روژه والو باندې. ولې چې بعض صائمان په طلوع د سپيدو نه پوهيږي. بحر الصلوة كذا في البحر، او هغه چې طحطاوي وائي چې حرج د روژې خو په تقديم د نيت تر سپيدو و نيت تر انتظار باسي. او په اول کې د شپې يا په ما بين کې د شپې په فکر نه وي. نو د دی وجهی تاخير د نيت روادی»، فافهم.

او صاحب د جوهرة وائي چې قياس دامام کرخيؒ د لمانځه پر روژې په جواز کې د تاخير د نيت قياس فاسد دی. ولې چې سقوط د مقارنت د نيت د تحريمې سره دپاره د دفع د حرج دی. نو د احرج خو په تقديم د نيت تر تحريمې په لمانځه کښې دفع کيږي نو تاخير ته څه ضرورت دی. او جواز د تاخير د نيت په روژه کښې هم دپاره د دفع د حرج دی»، قاله صاحب البحرؒ»، قال المصنفؒ»

## وَالنُّطْقُ بِالتَّحْرِيْمَةِ بِحَيْثُ يُسْمِعُ نَفْسَهٗ عَلَى الْأَصَحِّ

او بل شرط د صحت د تحريمې دادی چې اَللّٰهُ اَکْبَرُ به په ځان اوري پر اصح مذهب" دا ځلوم شرط دی،، **فائده**: پر کاڼه سړي او ريدل د تحريمې او نور شيان چې ورته به راسي که خدائ کول، لازم نه دئ. ولې چې کوڼ بيله جهره خپله خبره نه سي اوريدلای **مسئله**: پر ګونګی باندی د تحريمې په وخت کې شونډو ښورول د شونډو لازم نه دی "ح" **درويش وائي**: چې چونکه په دې مسئلې پورې نورې ډيرې مسئلې مربوطې دي. لهذا د دی مسئلې لوې تحقيق او ښه زده کړه پکار ده،، **نوټوه سه**: چې مصنفؒ د امام په ويلو کښې اشاره و اختلاف ته وکړې په دې مسئله کښې اختلاف دادی. چې حضرت الامام الکرخيؒ وائي چې هر هغه کار چې په لفظ يعني په نطق اللسان پورې تعلق لري





لکه تحريمه، وغيره. په هغه نطق کښې تصحيح د حروفو شرط ده،، لِاَنَّ الْكَلَامَ لَا يَحْصُلُ اِلَّا بِالْحُرُوْفِ» او دا غر تصحيح الحروف ادنیٰ د مخافت ده. نو د دی مذهب معنا داده که يوه سړي شونډان جوت نيولي وي او په صرف تصور قلبي سره تحريمه يا قرائت وغيره وائي هغه نه دی صحيح،، لکه په او سني زمانه کې دا اکثر عوامو بلکه د بعض ملايانو هم داغسې عادت دی. سبب د علم دادی چې حروف عربيه خپل خپل مخارج لري نو تر هغو چې شونډان او ژبه و نه ښوري کله حروف اداء کيدای سي،، لکن صحيح قول دی دامام حلوانيؒ مصنفؒ په مراقي الفلاح کې وائي چې اکثر مشائخ پر دی مذهب دي چې صحيح داده چې جهر حقيقةً دادی چې په بل يې واوري» او مخافت دادی چې په خپلو غوږو يې واوري. او امام الهندوانيؒ وائي چې مخافت دادی چې په خپل ځان يې هم واوري او په نږدې سړی يې هم واوري **سوال**: پر مذهب د هندوانيؒ د جهر او مخافت تر څه فرق دئ. **جواب**: امام طحطاويؒ وائي چې د اسماع سره د ځان اسماع د مَنْ يَقْرَبُهٗ جِدًّا لازم دی غالبًا. **حاصل د ادئ**: چې پر مذهب صحيح هغه کارونه چې په ژبه سره کيږي» او د ژبې وينا موقوفه وي په هغو ټولو کې ادنیٰ د مخافت شرط دئ. يعني او ريدل په خپلو غوږو. لکه تحريمه، او قرائت سرّيه ته قرائت د ما پښين ما زديګر د لمانځه. او تشهد د لمانځه. او اذکار او بِسْمِ اللهِ اَللّٰهُ اَکْبَرُ ويل پر ذبيحه، او وجوب د سجدهٔ تلاوت، او عتاق د مريي. او طلاق د مايني، او اِنْ شَاءَ الله ويل پسله طلاق وغيره او قسم اخستل،، او نذر کول، او اسلام عند الناس، حتیٰ لو جرىٰ طلاق زوجته على قلبه وحرك لسانه به من غير تلفظ يُسمع نفسه لا يقع وان صح الحروف،، "م"

**پوه سه**: چې بعض ځايونه اوريدل په خپل ځان کافي نه دی بلکه د بل چا او ريدل هم ضروري دی. لکه بيع. او هبة او نکاح وغيرها من العقود قاله القهستانی رحمه الله **فائدهٔ سنيّة**: قال المصنفؒ في المراقي، اشتراط د نيت په عباداتو کې دپاره د اخلاص دی. نو نطق او په خوله ويل شرط نه دئ. بلکه نيت د زړه شی دی لکه

کفر" حافظ ابن القیم الجوزی" وائي چې نده ثابته سوي د رسول الله صلی الله علیه وسلم څخه نه په سند صحیح اونه په ضعیف سره چې څرنګه صلی الله علیه وسلم به په شروع کبنی د لمانځه داسې ویله: نَوَیْتُ اَنْ اُصَلِّیَ کذا، اونه دخولې نیت دصحابه کرامو څخه ثابت دی. اونه د تابعینو څخه ثابت دی. او ابن امیر الحاج وائي چې نه د ائمه اربعهٔ وو څخه ثابت دی. بلکه داسادات کرام چې لمانځه ته به ولاړیدو صرف اَللّٰهُ اَکْبَر بې ویلایه، **سوال**: ابن قیم وائي چې نیت دخولې بدعت دئ. **جواب**: صاحب البحروائي چې بدعت دی لکن بدعت حسنه دی، دپاره ددې چې دعزیمت اوقصد سره د زړه فعل دلساني هم یوځای سي، ځکه هدایه والاوائي چې نیت دخولې: حَسَنٌ" لِاِجتماع عزیمته" اوپه مجمع الروایات کی وائي چې تلفظ په نیت سره بعض علماء مکروه بولې. ولې حضرت عمر رَضِیَ اللّٰهُ تَعَالٰی بعض نفروته چې دخولې نیت یه کاوه ادب ورکړی. اوبعض علماء وائي مباح دئ. ولې په دی سره تحقیق دفعل القلب کیږی، اودفع دوسوسه کیږي. اوحضرت عمر رضی الله عنه چې ادب ورکړی دئ. وهغه چا ته ئې ورکړی دئ. چې نیت یې په جهره وایه. په مخافت کبنې پرې وانسته، **سوال**: بعض مشائخ زمونږ وائي چې تلفظ په نیت سره سنت دئ. اوبعض وائي مستحب دئ. **جواب**: دمشائخو سنت نبوی نه دی مراد اونه هم مستحب په معنائی مصطلح ده بلکه مراد د سنت څخه سنت اوطریقه دبعض مشائخو سنت مراد ده، لِاختلاف الزمان وکثرة الشواغل" اومراد د مستحب څخه معنی لغوی ده یعنی ښه کار، وَقَدْ مَرَّ بعض تحقیق مسئلة التلفظ بالنیة فتذکر" په هر صورت داغسی تلفظ بالنیة لکه بعض موسوس امیان یا ملایان چې کوی" چې په دغه تلفظ کی نیم یا پوره رکعت څندی تیرسې مکروه دی اوبدعت سیئه دئ. قال

**وَنِیَّةُ الْمُتَابَعَةِ لِلْمُقْتَدِیْ** اوبل نیت دی دمتابعت دامام مقتدی لره لکن سره د نیت د اصل لمانځه اودا ښځم شرط دی دتحریمې **پوهـ سـه**: چې مراد د نیت څخه داصل لمانځه نیت





دی د فرض الوقت نه مطلق لمونځ. ولې چې نفس لمونځ خو فرضو واجبو، سنتو نفلو ټولوته شامل دئ اوهم دغه نیت شریک دی په مابین کی دامام اومقتدی لکن چونکه دغه نیت شامل منفرد ته هم دی نوځکه نیت دمتابعت دامام هم غواړی" وجه د اصل نیت خو هغه ده چې د هغه تیره سوه. یعنې چې عبادت دعادت څخه جلاسی او د مقتدی اخلاص معلوم سي. اوهرچه نیت دمتابعت دی د هغه سبب دا دی چې فساد د لمانځه د امام د مقتدی لمونځ فاسدیږی اوفساد ددهٔ د لمانځه هلته راځي. چې مقتدی پر ځان دامام لمونځ لازم کړي. اودا په نیت دمتابعت سره کیږي. نو مقتدی به یا داسې نیت کوی چې فرض الوقت کوم او اقتداء می ده په حاضر امام پسې. او یا به داسې نیت کوي چې شروع په لمانځه یه نه صحیح کیږی. لکن صحیح دا ده چې شروع صحیح ده، ولې چې ده په نیت داقتداء ځان تابع دامام وګرځاوه مطلقًا او تابع دی بله کیدای سي چې دی دامام لمونځ کوی **مسئله**: که یوچا انتظار وکړی و تکبیر ته دامام. بعض علماء وائي چې هم دغه انتظار کافی دی دپاره داقتداء په امام پسې. لکن صحیح دا ده چې مطلق انتظار د تکبیر کافي نه دئ. ولې چې دا نه معلومیږی چې ده مادهٔ انتظار کړی دی او که داقتداء د پاره. **مسئله**: مقتدی دې دامام تعیین نه کوی مثلًا اقتداء می ده په زید پسې ولې هغه امام زید نه وی دده لمونځ باطل دی **مسئله**: که د مقتدی صرف ګمان داوو چې دا امام زید دی اوهغه عمرو وو لمونځ یې صحیح دئ. **مسئله**: دامام دپاره نیت دامامت دنرو نه غواړی بلکه نیت دامامت د ښځو غواړی" ولې که امام د ښځو دامامت نیت ونه کړی د ښځو لمونځ نه دی صحیح"

**دیره مهمه مسئله** پوهـ سه: چې په حرمینو شریفینو کښې حکومت د ښځو دپاره معلوم ځای ټاکلی دی چې دوئ به په معین ځای کښې په امام پسې اقتداء کوی لکن سره د هغه بعض اوقات بلکه اکثر اوقات خصوصًا په مکه مکرمه کی داسې پیښیږي چې نر او ښځې طوافونه کوی هلته اذان ناری سي. نو دغه ښځې دمابین څخه د نرو و ټاکلی ځای ته نسی وتلای. اخیر الامر د نرو سره اوښه پراوږه او

یاد ځنګ ته بعض نورو ته لمانځه ودریږي. او س ددی چې په ټوله فقه شریفه کښې وائي چې محاذات د ښځې سره په لمانځه کې د نر لمونځ فاسده وي. نو اول کال چې فقیر حج ته تللی وو. ډیرو پښتنو د ما ځنه ددغه مشکل په باره کې پوښتنې کولې. ددی مشکل د حل لاره ما داوګڼله چې د امام ځنه د مسجد الحرام پوښتنه وکړم. ددی دپاره چې معلومه کړم چې محاذات د ښځې دده په مذهب کې هم مفسد دی او که نه. نو د امام المسجد الحرام ځنه په یوه فرصت کښې چې ما پوښتنه وکړه چې محاذات د ښځې ستاسي په مذهب کې مُفسد د نر د لمانځه دی او که څرنګه هغه جواب په نَعَمْ راکړی یعنی هو مفسد دی. نو ما عرض ورته وکړئ چې تاسې وینې چې په ښووښځې په لمانځه کښې د نرو سره محاذي کیږی. او دده ځنه مې وغوښتل چې تاسې باید دا مشکل حل کړي. ده په جواب کې راته وویل چې زه د لمانځه په وخت کښې صرف او صرف د هغو ښځو د امامت نیت کوم چې په ځانګلی ځای کښې لمونځ کوی. او د ما بین الرجال د ښځو امامت نه کوم. نو په دغه ډول د ما بین الرجال ښځو لمونځ نه دئ صحیح:

او د فساد د نر دَ لمانځه دپارهِ خو اشتراک د نر او د ښځې په لمانځه کښې شرط دی نو دا ما بین الرجال ښځې ګویا داغسې ولاړې دی،، فافهم فانه سنخ غریبٌ.

او بعض علماؤ وائي چې په شریعت غراء کښې د اسلام دوې منل سوې شرعي قاعدې سته یوه دا چې: الضَّرُوْرَاتُ تُبِيْحُ الْمَحْظُوْرَاتِ،، یعنی مجبوری وَ خلګو ته مباح ګرځوی ممنوعات د دین مثلًا اَکْلُ د میتة په حال کې د مخمصة،، او لمونځ په پرِوتي کول په حال کښې د ډیری ناجوړی او یا په بولو او دَس نه ما تیدَل د سلس البول سړي په وخت کښې نه وهکذا انفلات الریح او جرح سائل. او بله قاعده دادَه: چې. لَاحَرَجَ فِي الدِّيْنِ،، یعنی دو مره سختی په اسلام کښې نسته چې د سړی د طاقت ځنه دی وتلی وي. او خدای جل جلاله هم وائي: لَا يُكَلِّفُ اللهُ نَفْسًا اِلَّا وُسْعَهَا الاية. نو ددی دوو قاعدو په نظر نیولو سره ایستل ددغو په ښووښځو د ما بین ځنه د نرو. نه قدرت د نرو په سری بلکه د حکومت سعودی دَ طاقت ځنه هم وتلی کار دئ. نو د محاذات د ښځو د نرو سره کی





ځنه هم امام الحرم د امامَت نیت هم وکړی مُفسِد دَ نرو د لمونځو به نه وي. والعلم عند علام الغیوب

**مسئله:** فی شرح الملاحی عن الذخیرة او قاضیخان، نقل کړیدی که یوځای د جُمعی په ورځ صرف د جُمعی د لمانځه نیت وکړي او نیت د اقتداء په امام پسی نه وکړي دَ جُمعی لمونځ یه صحیح دی ولې چې د جُمعی لمونځ بیل، امامه نه سی کیدای نو نیت دَ جمعی متضمن دی نیت لره د اقتداء بالامام. ط،، قال المصنفُ:

**وَتَعِيْنُ الْفَرْضِ** او مصلی بَه تعیین کوی د فرضی لمانځه. او دا هم دَ شپږم شرط دَ تحریمی دئ۔ **مسئله:** نیت د تعیین الفرض په ابتداء کی د شروع ضروری دی. حتی که سړي د فرضو نیت وکړئ او لمونځ یه شروع کړي او بیا یه فرض هیر سوه او ګمان یه دا سو چې ما د نفلو نیت کړي دی. نو لمونځ یه پوره کړي په ګمان د نفلو. وروسته یه ور پیاد سوه چې ما اول وار نیت د فرضو کړي وو. فرض یه د ذمې ځنه ساقط سوه. او دغه رنګه که سړي اول وار د نفلو نیت وتاړه او شروع یه په لمانځه وکړه او بیا ځندی هیر سوه ګمان یه دا سو چې ما د فرضی لمانځه نیت کړي وو او لمونځ یه پر دَغه ګمان پوره کړئ.

او ور وسته یه ور پیاد سوه چې ما اول وار د نفلو نیت کړی وُو. فرض یه د ذمی ځنه ساقِط سوه. او داغه رنګه که سړي اول وارد نفلو نیت وَتاړه او شروع په لمانځه یه وکړه او بیا ځندی هیر سوه ګمان یه دا سو چې ما د فرضی لمانځه نیت کړی وو. او لمونځ یه پر داغه ګمان پوره کړي. او ور وسته ور پیاد سوه چې ما اول وار دَ نفلو نیت کړی وو. نو ټوله لمونځ یه نفلی دی او فرضی لمونځ نه دی ساقط. ددی دوار و مسئلو دلیل دادئ چې نیت مُعتبره هغه دَی چې په ابتداء کښې دَ شروع یه کړي وی،،

**مسئله:** وَلَا يَشْتَرِطُ نِيَّةَ تَعِيْنِ،، یعنی شرط نه دی نیت د تعیین د عدد د رکعاتو، ولې چې فروض او واجبات خو معدود محدود او معین دي. نو د فرض او واجب نیت کول مغنی دی د نیت ځنه دَ تعیین د رکعتو. حتی که سړی د سحار د لمانځه نیت دَ څلورو رکعتو وکړی نیت د څلورو لغوه دی. دوه رکعته دی وکړي لان الخطاء فيما لا يشترط فيه

التعیین لا یضر کما فی الاشباه ،، ط ص۱۷۹۔

**مسئله**: چونکه فرضي لمونځونه دشپا نه روز پنځه دي لهذا تعیین دماپښین یاماښام وغیره ضروري او لازم دی هم پر امام هم پر مقتدی (او هم پر منفرد) **مسئله** که چا نیت دفرض الوقت الحاضر وکړی دغه نیت کافي دی مگر جمعې د لمانځه داغسې نیت کافي نه دئ. ولې چې فرض الوقت پر صحیح مذهب د ماپښین لمونځ دی

**مسئله**: که یوسړی مثلاً د څلورو رکعتو نیت وکړی دفرضو او نفلو دوارو دپاره ،، امام ابویوسف وائي چې دغه عم څلور رکعته فرض دي. ولې چې فرضي لمونځ تر نفلو قوی ترین دئ. او امام محمد وائي چې دغه لمونځ به نه نفل دی او نه فرض په سبب د تعارض ،، و الفتوی علی الاول ،، ولې چې ضعیفه لمونځ چې نفل دی دقوی لمانځه سره چې فرض دی معارضه نه سی کولای. نو نیت نفلو لغو دئ.

**مسئله**: کی نیت دنفلو او د جنازی د لمانځه وکړی هغه لمونځ به نفلي دئ. ولې چې نفلي لمونځ کامل لمونځ دی چې رکوع او سجده په کښی سته بخلاف صلوة الجنازه او کی نیت دفرضي لمانځه او د صلوة الجنازه وکړی هغه په طریق اولی سره فرضي لمونځ دئ. قال المصنف۔

**وتعیین الواجب** د تحریمې ،، اوشرط دی معینه کول دواجب. دا هم او وم شرط دی صحت د تحریمې ،، یعنی که لمونځ واجب وو. چونکه واجبات ډیر دی نو تعیین دواجب به کوی. لکه نذر ی لمونځ. او وتر، او دوه رکعته دطواف او د دوو اخترو لمونځ. لکن علماء حضرات وائي چې د اخترو په لمانځه او په وترو کښی دی نیت دوترو یا د اختر د لمانځه کوی فقط ،، ولې چې په دی دوو لمونځو کښی اختلاف سته. لکن ددی معنا دا نه ده چې د نیت لمانځه د واجب دی منع دئ بلکه معنا داده چې لازم نه دی ،، کذا قال الامام الطحطاوی. وفیه شئ لا یخفی علی المتأمل او په سجده سهوه کښی تعیین د سجدو نه غواړي. ولې چې هغه معلوم دئ. او په سجده تلاوت کی تعیین غواړي چې ده سجده شکر څخه جلا سی،،





عامي وائي: چې تردی ځای هغه شرطونه وو چې مصنف په نور الایضاح کښی راوړي وه. او هم دا اوس هغه شرطونه بیانیږي چې مصنف په مراقی الفلاح کی ترتمامه د ۱۵ شرطو چې د تحریمې دپاره یې بیان کړي دي. دئ وائي چې اتم شرط دا دی چې تحریمه به په لفظ عربي سره وي هغه چاله چې پر عربي تلفظ قدرت لري پر صحیح روایت

**پوهه**: چې مراد د تحریمې څخه فقط الله اکبر نه دی مراد بلکه هر لفظ چې پر تعظیم دخدائ دلالت کوي. نو که سړي شروع د لمانځه په سبحان الله سره وکی. یا په لا اله الا الله سره وکړی هم صحیح ده په شرط د دی چې عربي وی ،، مصنف للقادر و وایه ولې عاجزته د عربي ژبي په هر لغت چې دی قدرت پر لری روا ده.

او مصنف وویل پر صحیح روایت دا قول دیارانو دی. او حضرت الامام الاعظم شروع په غیر عربي سره وقادر ته پر عربي هم روا بولي ،، او بدر الدین عینی لکه ده مصنف دا عنی رایه ده،،

لکن د تاتارخانیه څخه دا سې نقل کړه سوی دی چې شروع د لمانځه په پارسي ژبه روا ده اتفاقاً بین الائمة الثلاثة. لکه چې وائي: خدا بزرگ است، او تلبیه هم په پارسي ژبه روا ده اتفاقاً خو دی څخه دا معلومیږي چې یارانو د امام اعظم و مذهب ته رجوع کړیده. په تکبیر افتتاح کښی. لکه چې امام اعظم چې په جواز کی د قرائت په پارسي ژبه وقادر ته پر عربي وه مذهب ته دیارانو رجوع کړی ده چې قرائت په پارسي وقادر ته نه دی روا ،، کذا فی التوضیح شرح التنقیح،،

مصنف په مراقی کښی وائي چې نهم شرط د تحریمې دا دئ. چې همزه د الله به په مدسره نه وائي او که و وائي شروع یې په لمانځه نه صحیح کیږي. او که اول تکبیر بې مده وائي او د مابین په تکبیرو کی یو یا دوه په مدسره و وائي لمونځ یې فاسد سو ،، کذا فی درالکنوز ،، ط ،، او نه باء د اکبر به په مدسره وائي او اشباع د حرکت هاء د لفظ الله او یا ساکن وویل په خطاء ده په لغت کی لمونځ نه په فاسدیږي. او مصنف وائي چې لسم شرط د تحریمې دا دی چې پوره جمله به وائي یعنی الله اکبر، وهو ظاهر الروایة عن الامام الاعظم و به قال ابویوسف و محمد

لکن واجب دا ده چې شروع به په لفظ د اَللّٰه کوي کې اَکبَر الله وویل نو شروع یې نه ده صحیح بزازیه» ط» **پوهـ سـه**: چې دَرویش لفظ د مصنف بدل کړي چې هغه دَا سې وئیلي دی بجملةٍ تَامةٍ مِن مبتدأٍ وخَبر» ما وویَله چې پوره جُمله به وَايئ. نو د رویش پر عبارت هغه سؤال چې طحطاویؒ پر مصنفؒ کړي نه وارد يږي:

هغه سَوال دا دی چې شروع څوپه» لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ او په سُبْحَان اللّٰه سره هم رَوا ده سره دکراهت او مبتداء او خبر په کښې نشته. نو د رویش پوره جمله وو ئیله او د غه دُوه لفظ پوره جُملې دی. مصنفؒ وئیلی دی چې یو ولسم شرط دتحریمې دا دی چې شروع په ذکر خالص د رب جل وَعَلاوي. نو که سَرې شروع د لمانځه په اَللّٰهُمَّ اغفرلی وکړه نو ده صحیح. ولې چې دا ذکر خالص نه دئ بلکه د مصلي حاجَت چې طَلب د مغفرت دی په گډ دی. او مصنفؒ وئیلي دی چې دوولسم شرط دتحریمې دا دی چې شروع د لمانځه په صرف بِسْمِ اللّٰه سره نه کوي ولې چې باء د بِسْمِ اللّٰه د پاره د تبرك ده گویا ده دَاسې وویئله بَارَكَ اللّٰهُ لِيْ، دا خو دعاء ده ثناء نه دَه. او مصنفؒ وَئیلي دي چې دیارلسم شرط دَتحریمې دا دي چې هاء دلفظ د اللّٰهُ به نه حذف کوي. او مصنفؒ وَئیلي دي چې څوارلسم شرط دتحریمې دا دئ چې هغه الف چې دوهم لام د اَللّٰهُ په ولاړ دی چې ودی الف ته هاوي وايي نه حذف کیږي

**مسَـــئَلـه**: که چیرې د غه الف قسَم اخستونکی حذف کړئ» یا د حیوان ذبح کوونکی حذف کی. او یا تکبیر ویونکی حَذف کړئ یا يئ دَ اللّٰهُ هاء حذف کړه. په دی کښې اختلاف دَی چې قسَم یه غوتِه سوا او یا یه ذبیحه حَلال ده یا تحریمَه یه صحیح دَه نو احتیاطًا دی دغسې نه کوي. کذا قالَ الامَام الطحاویؒ. او مصنفؒ وَئیلی دی چې پنځلسم شرط د صحت دَتحریمې دَا دی چې د اَللّٰهُ اَکبَرُ سره په جوت داسې شی نه وَايئ چې تحریمَه په فاسده سِی. لکه ما يشبه کلام الناس» بزازیه» قَالَ المصنفؒ فی نور الایضَاح

# وَلَا يُشْتَرَطُ التَّعْيِيْنُ فِي النَّفْلِ

اوشرط نه دی تعین په نَفلو کښې

**پوه سَه**: چې په عمومي اصطلاح کې نفل مقابل ته د فرضو واجبو، سُننو وَايئ. لکن دلته د نفلو څخه مقابل د فرضو او واجبو مراد دَئ.





ولې چې سُننو ته په خصوصي اصطلاح کښې د فقه شریفې هم نفل وَايئ. کما لایخفیٰ. نو د دی سَبب مصنفؒ په مَراقی کښې وَايئ: وَلو سُنة الفجر فی الاصَح» که څه هم سُنت د سهار د لمانځه وي چې اَکَد د سُننو دي په اصح روایت کې. نو تراویح هم په نیت د نفلو روا دي. په نیزد اکثرو مشائخو. لکن بیا هم احتیاط په تعیین یعنی په معینه کولو کښې دی. مثلًا سُنة الفجر او سُنة الظهر القبلیته او یا بعدي. یا صَلوٰة التراویح وجه د احتیاط هغه دَه چې مصنفؒ د منیة المصلي وَايئ. چې د خلاف څخه د هغه چا ووزی چې په سُنتو کښې نیت د سُنتو شرط بولي. لکه بعض فقهاءؒ بلکه صاحِبُ المغنيؒ وَايئ چې په تراویحو کی نیت د مطلق لمانځه یا نیت د نفلو کافی نه دئ. په نیزد بعض متاخرینو بلکه نیت دَتراویح شرط دی. او فتاوای خانیه دا رأیه صحیح بللی. قَالَ المُصَنفؒ

# وَالْقِيَامُ فِي غَيْرِ النَّفْلِ

او فرض ده وَلاړه په غیر کی دَ نفلو

**پوه سَه**: چې وَلاړه فرض متفق عَلیه ده په فرضو کښې او په واجبو کی، نه په سُنتو او نوا فلو کی. لکن په سُنتو کښې مُستحب دَه. او اندازه د ولاړې دا ده چې لاسونه یې زنگنونو ته نه رسیږي. که کوزه پښته نه وُو.

**مسَـئَلـه**: د نفلو ثواب په وَلاړې ډېر دَئ. تر ناستې. **مسَـئَلـه**: په هغه چا قیام فرض ده چې پر وَلاړه قـادر وي. او پر رکوع او سجده هم قادر وي. نو که یو سَړی پر قیامه قادر وُو لکن رکوع او سجده یې نه سوای کولای. نو هغه ته اختیار دی که د ولاړې څخه په اشاره رکوع او سُجده کوي. او که په ناسته رکوع او سُجده په اشاره کوي **مسَـئَلـه**: که یو سړی داسې وو چې په وَلاړې یې عورت لغ کیده دَه. چې مَانع دَ لمانځه وو او د ناستې په لمانځه کی کشف العورة نه راتلی نو پر هغه ناسته واجب دَه. **مسَـئَلـه**: که یو سَړی داسې وُو چې په وَلاړه کی بوَلی توئیدَلې. او پَه ناسته کی بولې نه راوتلې پر هغه سړی هم لمونځ پـه ناستی فرض دی **مسَـئَلـه**: که دیوه چا ساه لنډه کیدَله. نو چې په ولاړې لمونځ کولای د ساه لنډی د سببه مثلًا قراءت یې نَسی وَیلای. او پـه ناستې کی قراءت ویلای سَوای پر هغه سَړی لمُونځ پَـه ناستی فرض دی.

**مسئله:** که څوک داسې وي چې په ولاړه کې پوره قرائت نه سواي ويلای. او په ناسته کښې ويلای سواي هغه سړی دی هم لمونځ په ناسته کوي. **پوهسه** چې فرضي ولاړه يا واجبه ولاړه يا سنت ولاړه. يا مستحب ولاړه په قدر د قرائت علی الانحاء المذکورة ده. او دا خلور قسمه قرائت به په بحث کښې د قرائت راسي ان شاء الله: **مسئله:** په هغو رکعتونو کې چې قراءت لازم نه وي لکه دوه رکعته اخير د فرضي لمانځه نو په هغو رکعتونو کې مطلق ولاړه فرض ده او اوږد والی ير فرض نه دی» ق، ط»   قال المصنف.

**وَالْقِرَائَةُ وَلَوْ اٰيَةً** اوفرض په لمانځه کې قرائت د قرآن کريم که څه هم يو آيت وي. لِقَوْلِهٖ تَعَالٰی: فَاقْرَؤُا مَا تَيَسَّرَ مِنَ الْقُرْاٰنِ» **پوهسه:** چې قرائت به په داسې ډول وي چې دی ئې اوري که کوڼ نه وو او يا ډير ګړوپ ګړوپ او يا ډير آوازونه چې مانع وه داوريدو څخه نه وه. لکه د څه هم ودی مسئلې ته تفصيل ورکړه سو چې تحقيق يه تير سوه او تجديدًا للبحث دروښ وائې: چې حضرت الامام الکرخيؒ په نفس تصحيح الحروف سره کفايت کړی دئ. کی څه هم ويونکی نه واوري. دليل يه ډير معقول دئ يعنی قرائت فعل د ژبې دی او اوريده کار د غوږو دئ. فَلَا دَخْلَ لِفِعْلِ الْاُذُنِ فِيْ فِعْلِ اللِّسَانِ بطريق الوجوب» او په بدائع کښې وائې چې قول د کرخيؒ اصح او اقيس دئ. ونسبه بعضهم الی ابی يوسفؒ. لکن سره ددې قول اول چې سماع د قرائت شرط دی مفتی به د ډيرو فقهاوؤ ده، **مسئله:** که سړی بعض حروف د قرائت په غوږو واوريده او بعض يې نه واوريده. لمونځ يې نه په فاسديږي. علی الصحيح لعموم البلوی. مضمرات، ذخيره، طحطاوی»

**پوهسه:** چې ځای د قرائت ولاړه ده يا ظاهرًا. او يا حکمًا لکه په ناسته کې په سبب د عذر. او يا په نفلو کې چې قيام په کښې شرط نه ده کما مر **مسئله:** که سړي قرائت په رکوع يا په سجده کښې ووايه په هغه سره فرض د قرائت نه ساقطيږي.





او مکروه تحريمي دی د لمانځه راګرځول پر واجب دی. او کې په سهوه سره ووايه سجده سهوه پر لازمه ده. **پوهسه:** چې هغه خبره چې ابوبکر الاصمؒ کړې ده. چې قرائت په لمانځه کښې فرض نه دی بلکه سنت دئ. باطله ده په آيت سره چې د مخه يې ذکر وسو. ولې چې اَمر د، فَاقْرَؤُا» د پاره د وجوب دئ. او قرائت د باندې تر لمانځه خو په اجماع سره فرض نه دئ. نو معلومه سوه چې دغه مذکور آيت د لمانځه په باره کې دئ. او په حديث نبوي ص هم باطله ده. لکه چې امام مسلمؒ د ابي هريرةؓ څخه روايت کړی دی چې رسول الله صلی الله عليه وسلم وو ئيله: لَا صَلٰوةَ اِلَّا بِقِرَائَةٍ» او په اجماع د ائمة الدين هم باطله ده»

**فائده:** حفظ د ټوله قرآن کريم قطع نظر د هغو ثوابو څخه چې په احاديثو کښې راغلي دي د نبي عليه الصلوٰة والسلام څخه. فرض کفائی دئ. او يا د ول د دومره قدر چې صرف لمونځ په روا وي فرض عين دی پر هر نر او ښځه. او يا د ول د اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ شريف او د يوه سورت که څه هم کشنی وي. واجب دئ. ولې چې الحمد لله شريف او ضم د سورت ور سره په لمانځه کې واجب دئ. او هغه قدر چې لمونځ په روا وي» په هغه کښې اختلاف دئ. امام ابي يوسفؒ او امام محمدؒ وائي چې مفروض د قرائت د لمانځه يا يو آيت طويله دی. لکه آيت الکرسي يا آية المداينة او يا دری آيته کشنی دي. او حضرت الامام الاعظمؒ وائي چې فرض قرائت د يو آيت که څه هم ډير لنډ وي. نو آيت چې مرکب د دوو کلمو څخه وي لکه» ثُمَّ نَظَرَ» کافي دی په ظاهر روايت کی. او مرچه هغه آيت دی چې يوه کلمه وي لکه "مُدْهَآمَّتٰنِ» او يا يو حرف وي لکه، صٓ، قٓ، نٓ، يا دوه حرفه وي لکه» حٰمٓ طٰسٓ، او يا ډير حروف وي لکه، حٰمٓ عٓسٓقٓ. کٓهٰيٰعٓصٓ په هغو کې د مشايخو اختلاف دی. قدوري وائې چې صحيح جواز دئ او مصنفؒ په مراقی کې وائې چې اصح دا ده چې لمونځ نه دی په روا . . .

# اَلتَّحقِيقُ فِي هٰذَا البَابِ

**پوښتنه:** چې قرائت په لمانځه کې فرض عین دئ. په نیزد جمهورو فقهاوو د مذهب اوبې دی خبره داسې سوال کړئ دئ چې په مابین کې د رکنیت او زیادت تناقض دئ. ولې چې رکن هغه فِعل ته وائي چې په نه کولو سره لمونځ باطل ګرځي. او د زائد فعل په باته کیدو سره لمونځ نه فاسدیږي نو څرنګه قرائت هم رکن دی او هم زائد دئ.

**د رویش والئ:** چې د دی سوال جواب پر دې موقوف دی. چې سړي د رکن اصلي او د رکن زائد فرق و پیژني. نو **پوښتنه:** چې رکن اصلي د لمانځه هغه فعل دئ چې که بعض اوقات د ضرورت له کبله پاتې سي لکن خلف او عوض یې پرځای وي. لکه رکوع او سجده چې سړي څندی عاجز وي ترک یې روادی لکن عِوض یې اشاره کول دی. او یا قیام ولاړ چې وعاجز نه د ولاړې پر ئیښول په لمانځه کې روادئ. لکن ناسته یې عوض ده وهکذا نور:

او رکن زائد وهغه کار ته وائي چې بیله ضرورته یې په بعض احوالو کښې پرېښول بیله عوض روا وي. اِذَا عَرَفْتَ هٰذَا، پس قرائت تر په دی اعتبار رکن وائي چې تنها لمونځ کوونکی ته چې پر قرائت هم قادر وي که قِرائت نه وائي. لمونځ یې باطل دی. لکه رکوع سُجده قیام چې سره د قدرت پرېږدی لمونځ فاسد دئ. لکن چونکه د مقتدی څخه سره د قدرته قرائت ساقط دی بیله عوض د ده خوا د حنیفیانو پر مذهب، او هغه سړي ته هم ترک د قرائت روادی چې امام ته په رکوع کښې ورسیږی په اتفاق د ټولو اماما نو نو په دی اعتبار بیا زائد سو. نو د دی جواب څخه توجیه د ده هغه قول د امام غزنوئ چې په حادی قدسی کی وائي چې قرائت فرض دی لکن رکن نه دئ. اسا نه سوه. ولې چې مراد د غزنوئ د ادئ چې قرائت رکن اصلي نه دئ، فافهم. **او د اِهَمُّ زده کړه:** چې اٰیت په لغت کې علامې ته وائي او په اصطلاح د شرع او عُرف هغې جُملې ته وائي. چې په هغې کی یو حکم د احکامو د خدای جل جلاله وي





لکه، اَقِيمُوا الصَّلٰوةَ وَاٰتُوا الزَّكٰوةَ، او یا هغه کلام الٰهی دی چې د ما قبل او ما بعد څخه او هغه جملې والې یې هم په شرع ثابت وي. که څه هم کم حکم معلوم یې کښې نه وي. لکه، الٓمٓ، په ټوله قرآن کې لکه، طٰهٰ، یا، کٓهٰیٰعٓصٓ، یا، الٓمٓرٰ، یا طٰسٓمٓ، وغیره،،

**پوښتنه:** چې ظاهر الروایه د حضرت الامام الاعظمؒ هغه چې مصنفؒ ذکر کړي چې روایت که څه هم دوی کلمې لکه، ثُمَّ نَظَرَ، د فرضي قرائت د لمانځه د پاره کافی دئ. او بل روایت د ده مبارک څخه دادی چې یا یوه اوږده وائي یا دری کشنی اٰیتونه. او د اهم مذهب د یارانو دی قال الامام الطحطاویؒ، وَالاحتیاطُ فی قولهما خصوصًا فی العبادات

**پوښتنه:** قِرائت د لمانځه په څلورو رکعتو کښې فرض دی نو مصنفؒ وائي:

## فِي رَكْعَتَي الْفَرْضِ

په دوو رکعتو کې د فرضی لمانځه، که دوه رکعته وي که دري رکعته وي او که څلور **مسئله:** په هر دوو رکعتو کی دی چې قرائت ووائي. فرض پر ځای کیږی. او کی فقط په یوه رکعت کی قرائت ووایه لمونځ یې نه دی صحیح خلافًا لزفرؒ، وَالحسن البصریؒ:

**فائده:** مصنفؒ خو په مراقی کی د غه سې عبارت وئیلی دی چې په هرو دوو رکعتو کښې چې قرائت ووائي کافی دی. لکن قهستانیؒ وائي چې داده مصنف خبره قول د بعض فقهاوؒ دئ. او صحیح داده چې اوّل دوه رکعته متعین دی د پاره د فرضی قرائت حتی کی په اولو دوو رکعتو کښې قِرائت نه وو ایه بلکه په اخیر دوو رکعتو کې ووایه هغه قضا یې دئ. او لمونځ یه صحیح دئ. ابن امیر الحاج وائي چې دا قول د جمهورو فقهاووؒ دی. او هم دا غه مذهب صحیح دئ. او قاضیخانؒ په شرحه کښې د جامع صغیر هم فتوی پر دا غه قول کړې ده، او رضی الدین په محیط کښې هم د وغه قول ته تللی دی. او ذخیره والاهم د غه قول خوښ کړئ دئ. **قَالَ المُصَنِّفُ**

## وَكُلِّ رَكْعَاتِ النَّفْلِ وَالْوِتْرِ

او قرائت فرض دی په ټولو رکعتو کښې د نفلو، ولې چې هر دوه رکعته د نفلو علیٰ حده لمونځ دئ. **پوښتنه:** مراد د نفلو څخه د لته هغه معنا ده چې

سنتونه هم شامل ده یعنی «مَازَادَ عَلَى الفَرَائِضِ وَالوَاجِبَاتِ» او ورته چیری سُنت وی خو وجه یې ظاهره ده چی په ټولو رکعتونو کی قرائت فرض دی. او که چیری واجب وی نو احتیاطا دی په ټولو رکعتونو کی قرائت وَوائی. **پوښته**: چی وتر فرض عملی دی په نیز د امام اعظمؒ. نو قرائت په دوو اولو رکعتونو کښی فرض دی. او سُنت مؤکد دی په نیزد یارانو قرائت په ټولو رکعتونو کښی غواړی. پس احتیاط دا دی چی په ټولو رکعتونو کی قرائت وَوائی. ولې چی سُنت په ترک سره دقرائت په یوه رکعت کښی فقط هم فاسدیږی. او په ټول رکعت کی قرائت ویل لمونځ نه فاسدوی. قَالَ المُصنفؒ.

## وَلَمْ يَتَعَيَّنْ شَيْءٌ مِّنَ الْقُرْآنِ لِصِحَّةِ الصَّلوٰةِ

او معینه نه دی هیڅ شئ دقرآن مبارک نه د پاره د صحت د لمانځه، ولې هغه متلو آیت چی تیر سو مطلق دی.

**سوال**: تاسی حنیفیانو خو اَلحَمدُ لِلّٰهِ شریفه مُعینه کړیده. **جواب**: چی مونږ خو هغه واجب بولو فرض یې نه بُولو. په دلیل د دی قول د علیه الصلوٰة والسّلام «لَا صَلٰوةَ اِلَّا بِفَاتِحَةِ الْكِتَابِ». **پوښتنه**: په دې حدیث شریف سره ولی فرضیت د الحمدُ لله نه ثابتیږي. **جواب**: دا خبر واحد دی او په علم اصول الفقه کښی دا ثابته ده، چی په خبر واحد سره زیادت پر قرآن نه دی روا، قَالَ المُصنفؒ.

## وَلَا يَقْرَءُ الْمُؤْتَمُّ بَلْ يَسْتَمِعُ وَيُنْصِتُ وَاِنْ قَرَءَ يُكْرَهُ تَحْرِيمًا

او قراءت به نه وائی مقتدی بلکه د امام وقرائت ته دی غوږ ونسی. یعنی که امام قرائت په جهر سره وایه او چپه خوله دی و دریږی که امام قرائت په جهر نه وایه. او کی قرائت ووایه مقتدي مکروه تحریمی دی. قَالَ الاِمَام احمدبن حنبلؒ د امت مرحومه اتفاق دی چی دا آیت ده لمانځه په باره کی دی

**پوښتنه**، امام بزدویؒ په شرح کی د کافی وائی چی قرائت خلف الامام سُنت دی په نیزد امام محمّدؒ د پاره د احتیاط او مکروه دی په نیزد امام اعظمؒ او امام ابویوسفؒ





ودغه رنګه امام ابوحفص الکبیر النسفیؒ وائی که امام قرائت جهرا وایه نو قرائت د مقتدی مکروه دی په نیزد شیخینو او امام محمّدؒ وائی چی مکروه نه دی. بلکه مستحب دی او دغه امام دا زیاته کړیده چی په دغه مذهب د امام محمّدؒ مونږ عمل کوو. ولې چی احتیاط په دی دی. او دغه هم مذهب د صدیق اکبرؓ او د فاروق اعظمؓ او د علی مرتضیؓ دی

**جواب**: کمال الدین صاحب د فتح القدیر وائی. «وَمَا يُرْوٰى عَنْ مُحَمَّدٍ اَنَّهُ يَسْتَحِبُّ عَلٰى سَبِيلِ الاِحْتِيَاطِ فَضَعِيفٌ»، او حق دا دی چی قول د امام محمّدؒ لکه قول د شیخینو دی. وتصریح کړی ده امام محمّدؒ پخپلو کتابو کښی چی قرائت خلف الامام نشته. او په اسنا د علقمة بن قیسؓ دا حدیث روایت دی «اِنَّهُ مَا قَرَءَ قَطُّ فِيمَا يُجْهَرُ فِيهِ وَمَا لَا يُجْهَرُ». او حضرت الامام السرخسیؒ وائی چی په قرائت د مقتدی خلف الامام د مقتدی لمونځ فاسدیږی. په نیزد ډیرو صحابهؓ وو. او په کافی کښی وائی چی منع د مقتدی د قرائت نه نقل کړه سوی ده. د اتیا کسانو د لویو صحابهؓ وو چی یو په هغو کښی علی المرتضیؓ دی، او عبد الله ابن عمرؓ دی. او عبد الله بن عباسؓ دی. او عبد الله بن مسعودؓ دی. او عبد الله بن الزبیرؓ دی. او د دغو اتیا کسانو په نومانو تصریح کړی اهل حدیثو او ابن الهمامؒ ویلی دی چی احتیاط هم په عدم القراءت خلف کی دی. ولې چی احتیاط خو عمل دی په ډیر قوی دلیل سره او مقتضی دا قوی دلیل منع د قرائت خصوصا په مذهب کښی د حنفیانو. وَقَدْ جَاءَ فِي الْحَدِيثِ النَّبَوِيِّ الَّذِي رواه المصنفؒ فی المراقی قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ» کافی ده تالره یعنی مقتدی مخاطب دی. «قرائة الامام جهرا اَمْ خافتَ». قَالَ المصؒ فی المراقی: وَاتَّفَقَ الاِمَامُ الاَعْظَمُ واصحابُهُ والامام مالكٌ والامام احمدبن حنبل عَلٰى صحة صَلٰوةِ المأمُوم مِن غیر قرائة شیئًا.

**فائده**: په اتباعو کښی د مذهب حنفی تر ټولو خبر د احادیث نبویه وو په انواعو او په صحیح او حسن او ضعیف حدیث سره او بنه خبر په جرح وتعدیل د راویانو. فقیه ابوجعفر الطحاوی دی چی شرح معانی الآثار د ده تصنیف دی. ۱۲. او بل کمال الدین ابن الهُمام مصنف د فتح القدیر:

٣ اوبل مُلاعلی القاریؒ چې شارح د مشکوٰة دی. ٤ اوبل بدرالدین العینی شارح د بخاری وغیره دی. او په متأخرینو کښې شاه عبدالعزیز المحدث الدهلویؒ دی. او شاه ولی الله المحدث الدهلویؒ دیٔ او شیخ عبدُالحق الدّهلویؒ. او تردی علاوه بڅېله امام اعظمؒ لوی محدث وُو. لکن اجتهاد او فقاهت یې غالب وو. او دغه رنګه امام ابویوسفؒ او امام محمدؒ چې موطاء. یې په حدیثو کښې تصنیف دیٔ. او نور محدثین چې د تاریخ په اوراقو کښې ثبت دیٔ.

## بیا هم د قرائةُ المقتدِی خلفَ الامام په باره کې

قالَ رَسُولُ الله صَلَى اللهُ عَلیه وَسَلم: لَا یَقْرَأُ اَحَدُکُمْ شیئًا اِذَا جهر (ای الامام) با القرآن. وَرُوِی مَن کَانَ لهُ اِمامٌ فَقِرائَةُ الامام لهُ قِرائَةٌ. که چا لره امام وی نو قرائت د امام دده د پاره قِرائت دیٔ. وروی عن عمرؓ، کشکی په خوُله کښې دَهغه چاچې قرائت خلف الامام وایئ ډبره وایٔ. وروی عن رَسُول الله صَلی الله عَلیه وَسَلم: که څوک قرائت ووایئ خلف الامام پس په خوُله کښې دده سکروټه دَه. او په بل حدیث کی داسی راغلی دی که څوک قرائت ووایئ خلف الامام هغه خطا کړی، فطرة یعنی د دین لاره. روی الاحادیث المذکورة الامام الطحطاوی''

## مسائِل اِستماعُ القرآن

**پُوه سَله:** چې غوږ نیوَل وقرائت ته دقرآن عظیم فرض دی په خارج کښی دَلما نځه هم. لکن بعض فقهاءُ وائي چې فرض عین دی. پرهر او ریدونکی. لکن په شرح کښی د منیة المُصلی او په دره منیفه کی وائي چې غوږ نیوَل وقرآن ته فرض کفائي دی. یعنی که بعض کسانو غوږ وَرته نیولی وی او بعض کسان په خبرو یا په بل شغل اخته وي. نود هغوغاړي نه دی بندی. ولې چې غوږ نیوَل وقرآن ته دَپاره د احترام او دپاره د حق پرځای کولو دقرآن کریم دی



هغه حق په غوږ ور ته نیولو د بعض کسانو ادا کیږی. لکه ره د سلام د مُسلمانو ورو چې واجب دی د پاره د ادا کولو حق دَدَه. نو په هغه کښی بعض دَټولو ځخه کفایت کوي. او یا د جنازی لمونځ چې دَ بعض خلګو په کولو سره د مسلمان ورور حق ادا سو نو ځکه بعض دکل ځخه کفایت کوي.

## بیا هم د قرائةُ المتقدی خلفَ الامام په باره کی

قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَیْهِ وَسَلم: لَا یَقْرَأُ اَحَدٌ مِنْکُمْ شَیْئًا اِذَا جَهَرَ (ای الامام) بِالْقُرآنِ. وروِیَ مَن کَانَ لَهُ اِمامٌ فَقِرائَةُ الاِمَامِ لَهُ قِرَائَتہٌ، که چا لره امام وی نو قرائت د امام دده د پاره قرائت دیٔ" وروی عن عمرؓ، کشکی په خُوله کښی د هغه چاچې قرائت خلف الاِمام وایئ ډبره وای. وروی عَن رسول الله صَلی اللهُ عَلیه وَسَلم: که څوک قرائت ووایئ خلف الامام پس په خُوله کښی دده سکروټه دَه، او په بل حدیث کښی داسی راغلی دي که څوک قرائت ووایئ خلف الامام هغه خطا کړي فطرة یعنی د دین لاره، روی الاحادیث المذکورة الامام الطحطاویؒ.

## مسَائل اِستِماع القُرآنْ

پوه سه: چې غوږ نیوَل وقرائت ته دقرآن عظیم فرض دیٔ په خارج کښی دَلما نځه هم، لکن بعض فقهاءُ وائي چې فرض عین دیٔ پرهر او ریدونکی، لکن په شرح کښی د منیة المصلی. او په دره منیفه کی وائي چې غوږ نیوَل وقرآن ته فرض کفائي دی یعنی که بعض کسانو غوږ ور ته نیولی وی او بعض کسان په خبرو یا په بل شغل اَخته وي نود هغه غاړې نه دی بندی. ولې چې غوږ نیوَل وقرآن ته د پاره د احترام او د پاره د حق پر ځای کولو قرآن کریم دیٔ. هغه حق په غوږ نیولو د بعض کسانو ادا کیږي. لکه ره د سَلام د مسلمان ورور چې واجب دیٔ د پاره د ادا کولو د حق دَدَه، نو په هغه کښی بعض د ټولو ځخه کفایت کوي. او یا د جنازی لمونځ چې د بعضُ خلګو په کولو سره د مسلمان ورور حق ادا سُو نو ځکه بعض د کل ځخه کفایت کوي.

**پوښتنه:** چې غوږ نیوَل وقرائت ته د قرآن فرض کفائي سِی نو که چیري بعض مقتدیان

د امام و قرائت نه غوږ و نیسو»، او بعض مقتدیان قرائت خلف الامام وائي. نو باید
د لوړ و سته چوله دې گناه ګار نه وي **جواب**: د لمانځه قرائت یعنې د امام قرائت د دې
مبحث نه خارج دی. ولې د هغه نه مطلقًا نهی راغلې دې کما مرّ فی الاحادیث السابقة
او بل په دلیل د دې چې امام چې قرائت په مخافت (کرار) وائي هم پر مقتدي انصات
لازم دی که څه هم د امام قرائت خوند اوري. نو مسئله د استماع د مقتدي یا انصات
د هغه جلا مسئله ده شرعي:

او بعض علماء وائي چې استماع (او غوږ نیول) و قرآن ته پر هغه ځای لازم دی چې په
قصد د استماع د قرآن ناست وي فقط»، مثلاً په یو مسجد کې قرآن مبارک په جهر ویل
کیږي. او څه کسان په قصد د استماع د قرآن ناست وه. نو د غو خلکو ته خبرې یا بل شغل
چې مخل د استماع القرآن وي حرام دی. او که یو سړي پر تلکو او دس کاوه او اواز د قرائت
ور سیدی مګر ده غوږ نه ور ته نیوی هغه ګناه کار نه دی، لکن دا د مذهب د اطلاق سره
د آیت کریمه مناسب نه دی. وَإِذَا قُرِئَ الْقُرْآنُ فَاسْتَمِعُوا لَهُ وَأَنْصِتُوا لَعَلَّكُمْ تُرْحَمُونَ

**مسئله**: علماء کرام وائي چې پر قاري باندې لازمه ده چې احترام د قرآن وساتي یعنې په
بازارو کې او په داسې ځایو کښې چې خلک په مشاغلو د دنیا اخته وي یا په مباح مجلسو
کښې خبرې کوي قاري دې قرآن نه وائي. ولې چې استماع یې څوک نه کوي. او که چیرې قاري
په داسې ځایو کښې قرائت وائي. نو قاري ضائع کوونکی د احترام د قرآن دی. او ګناه ګار هم
دی. او د بازار خلک ګناه ګار نه دي. ولې چې پر هغوی استماع د قرآن لازم سي نو د اخو ډېر
حرج دی چې دوی په خپل مشاغل بر بن دی. ط،

نو بناءً علی هذا، د غه دکانداران چې په عمومي بازارو کښې یې ټیپ د قرائت وراچولي
وي او په ډېر بلند اواز په ذریعه د ټیپ قرآن وائي شدید ګناه کار دي.

**فائدة مهمة**: په بعض مساجدو کې یا په بعض جامع مسجد کښې قرآن مبارک
په ګوپیا (لاوډ سپیکر) کښې وائي چې نژدې کورونه یا نژدې د بازار خلق یې اوري
او غوږ نه پرې نسي. آیا دا ګناه ده که څرنګه **جواب**: پر هغه مذهب چې استماع القرآن





فرض کفائی بولي، که چیرې په مسجد کې څه خلک موجود وه او هغو غوږ ور ته نیولی وو
نو احترام د قرآن کریم په دغو خلکو پر ځای سوی نو ر و او ریدونکو غاړې خلاصې دې
او که په مسجد کې هیڅ غوږ نیوونکی نه وو نو د قاري غاړې بندې دې. او پر اول مذهب
چې استماع د قرآن فرض عین بولي. داسې قرائت ویل مطلقًا که په مسجد کې څوک وي
که نه وي قاري ته ناجائز دی. ولې پر اوریدونکو یې استماع لازم اوول حرج عظیم دی کما مرّ

**پوښتنه**: دغه قرائت چې په مسجد کې په ګوپیا کې ویل کیږي او د بازار خلک یې اوري
که څه هم په مسجد کې ډېر خلکو غوږ ور ته نیولی وي ایا د بازار قرائت نه دی چې
ور اندې تېره سوه چې شدید ګناه ده» **جواب**: دا قرائت خو په مسجد کې دی کې څه
هم د بازار خلک اوري. نو د دې قرائت او د بازار د قرائت فرق سته.

**الاحتیاط**: د قرآن مبارک د قرائت باید پر احترام وکړه سي فتوی جلا ده او تقوی
جلا ده. نو د تقوی د لاري باید داسې که معمول چې دی ګوپیائي قرائتونه وویل سي
او اوریدونکي دې هم ټوله موانع ولیرې خواته کړي او صرف دې د قرآن مبارک و اوریدو ته
متوجه سي. **سوال**: بعض ملایان د جمعي ټوله لمونځ په ګوپیا کې وائي. او یا بعض
ملایان د تراویح لمونځ په ګوپیا کښې کوي دا دې رنګه څرحال دی. **جواب**: په
فقه شریفه کښې وائي چې امام دې دومره جهر په قرائت سره کوي چې دده مقتدیان
چې په مسجد کې په ده پسې ولاړ وي ضرورت ورته لري. یعنې اوریدو ته، بې ضرورته دې
خپلې غاړې نه شنې کوي. نو بناء پر دغه مسئله د غه امام چې د جمعي لمونځ په ګوپیا
کښې کوي او سره د دې چې دده طبعي قرائت او اواز د قرائت هم مسجد وال اوري لمونځ
یې مکروه دی. البته دده غرض به دا وي چې خلکو ته معلومه سي. او بیا هم خبرې سي
چې زمونږ د جامع ملا صاحب سخت قاري دی. دا بیا بله ګناه ده. او د تراویح مقصد دا
چې په فلاني جامع کې د ختم تراویح کیږي یعنې مرجع هذه الصورة والاولی الی السمعة
والریاء» او دغه ملایان استدلال په دې سره کوي چې په حرمینو شریفینو کښې لمونځونه
ټوله او تراویح په ګوپیا کښې کوي، دا ور لیش وائي. دا بېخي لیرې قیاس دی ولې چې په حرمینو

شریفینو کې په ټوله کال کې. او په ټولو لمونځو کښې دومره خلک سره یو ځای کیږي چې د مُلا صاحب او امام الحرمین قرائت او تکبیرونه دې دوی ټوله واوري. نو هلته ضرورت دې چې دامام الحرمین په قرائت سره چې خاص پر عربي لهجه دې او تکلف او لحن هم په کښې نشته دَ خلکو په زړونو کښې خشوع او خضوع او رقت القلب پیدا کیږي بیت سه تو ریا کار کجا آن خاک پاک کجا :: به بین تفاوت راهست از کجا بکجا :: د قرائت دقران کریم پر احترام کولو دَ اتصریح دعلماؤ د مذهبُ چې وائي مکروه ده دُعا او استغفار په وخت دقرائة القرآن» او د غه رنګه مکروه دی هر هغه کار او شغل چې دقرآن کریم د استماع حائل وي. حتی چې په دَغه وخت کې به سَلام تر دَچا جواب هم نه ورکوي. کرځه هم ئې د سلام واجب دی. او عاطس یعنی نړ ونکی ته به جواب دَیرحمُكَ الله نه ورکوي. ولې چې فریضي ته د استماع القرآن خلل پیښوي. نو خلک دې فکر وکړي چې دا مذکوره کارونه ممنوع دي په وخت کې دقرائت القرآن نو خبري بڅه رنګه روا وي. دلیل دا دی چې دعا او استغفار خو مستحب کار دی. او رد د سلام واجب دی. او استماع دقران فرض، نو عاقل سړی باید فرض د مستحب یا واجب کار د پاره پری نږدي.

اوبل دا چې مقصود دعا کوونکی او مغفرت غوښتونکی خو طلب د رحمت الهی دی جل شانه او هغه رحمت الهی خو استماع دقرآن هم حاصلیږي چې خدای پاک وائي: لَعَلَّكُمْ تُرْحَمُوْنَ» او شاید هغه دُعا چې په وخت کې دَ تلاوت دقرآن غوك وکړي قبوله نه سي، ولې چې دا امر الهی څخه خلاف ده: إِذَا قُرِئَ الْقُرْاٰنُ فَاسْتَمِعُوْا الایه. نو هغه بعض صوفیان چې په وخت کې دقرائت د دی ایت: اُدْعُوْنِي أَسْتَجِبْ لَكُمْ» یا دا ایت: أُجِيْبُ دَعْوَةَ الدَّاعِ إِذَا دَعَانِ، دعا کانی کوي هغه مکروه دی چې تلاوت جاري وي.

**مسئله**: لمونځ کوونکی د فرضي لمونځ کاوه د دعا څخه ممنوع دی یعنی په لمانځه کې»، ولې چې دعا په فرضي لمانځه کې نه ده نبي علیه السلام څخه نقل سوې ده وَلَا عَنِ الْأَئِمَّة بعده. نو دا دعا بدعت سیئه دی» او دغه رنګه امام په نفلو کښې دعا نه کوي. ولې چې په قوم باندې تطویل ممنوع دی. هو که مقتدی په دغو دعا کانو راضي او خوشحال وي بیا پروا نه لري.





لکه په حدیث کښې د حذیفه رَضِيَ اللّٰهُ تَعَالٰی عَنْهُ چې راغلی دی، چې ما په آنحضرت صَلَّى اللّٰه علیه وسلم پسې یوه شپه د تهجد لمونځ وکړی. نو آنحضرت صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّم نه ورتلی پر ذکر د جنت مګر دَ به ودریدی او سوال د جنت به یې وکړئ. او نه ورتلی پر ذکر داور مګر دی به ودریدُ او پناه داوری غوښتله او منفرد چې هرڅه دعاګانی چې په مابین کښې دقرائت دقران په لمانځه کښې کوي روا دی بلکه مستحب دی، ط، س، تب، در، نر، قَالَ المصنف رح

**وَالرُّكُوْعُ** او بل فرض د لمانځه رکوع ده. **پوه سه**: چې رکوع په لغت کې مطلق کږ والی ته وائي لکه په دې محاوره کې رکعت النخلة یعنی کږه سوله د خرما درخته. او کم درجه د رکوع کږ والی دی دَ مُلا په داسې شان که لاسونه کښته یوسي زنګنو ته رسیږي. او کمال د رکوع دا دی چې سر او کناټي سره برابر وي. **مسئله**: په بدائع الصنائع کښې وائي چې حسنُ دامام اعظمؒ څخه روایت کړی دی چې هغه لمونځ کوونکی چې ملا نه غوړوي په رکوع کې»، نو که ولاړی ته نږدې وي تر تمام د رکوع نو دا رکوع د فرض په ځای کې نه درېږي. او که وتمام ته د رکوع نږدې وي دا رکوع کافي ده. ولې اکثر لره حکم د کل دئ. او ورته روایت سراجؒ دامام کرخیؒ څخه هم کړی دی. او محقق ابن امیر الحاجؒ دد روایت په تائید کښې وائي: چې د رکوع معنا خو کږوَل دملا دی. نو چې بعض کږ والی موجود سی او بعض نه وي نو اکثر ته ترجیح ده. او وتمام ته د رکوع هَله اقرب بلل کیږي چې لاسونه یې زنګنو ته رسیږي. او تمام یې هغه دی چې ذکر سو. یعنی چې مَلا وغوړه وي او سر کناټي سره برابر کړي. دَر ولیش وائي چې پر دې روایت د ډیرو عوامو لمونځ نه دئ صحیح ولې چې دوی صرف سَر کښته کړي و بس. لکن په شرح کې د مختار وائي. چې رکوع عبارت د مطلق انحناء څخه دی. نو په مطلق انحناء سره فرض د رکوع پر ځای کیږي او په تحفه کښې هم وائي چې قدر مفروض د رکوع په مطلق کږ والی سره ادا کیږي. او په حاوي قدسي کښې وائي چې فرض د رکوع مطلق کږوَل دملا دي. درویش وائي چې پر روایت د دغو معتبرو کتابو د مذکوره عوامو لمونځ صحیح دی کی څه هم لاسونه و زنګنو ته

نه رسیږی. لکن احتیاط په اول روایت کی دی کما لا یخفٰی. **مسئله**: که سړی لهونځ په ناستی کاوه نو په رکوع کښی نفس انحناء الظهر کافی دہ. **مسئله**: که یوسړی کوږه پښتہ وو یعنی ملا یـه کږه وه. او کږوالی یه دومره وُو لکه رکوع. د هغه دپاره داکافی ده چی صرف په سر سره دی اشاره و رکوع نه وکړی. یعنی سر دی لږ کښته کړی. ولی چی دی د پوره رکوع نه عاجز دی یعنی سر د کناټو سره نه سی برابرولای. بلکه سر یه تر کناټو کښته وي.

# مسئلة تعدیل الارکان

امام ابویوسفؒ او امام شافعیؒ یـه فرض بولي. د تعدیل معنا په قول د دوئ ارام کول دی په رکوع او سجده کی په مقدار د یوی تسبیح. او پـه نیزد امام اعظمؒ او امام محمدؒ سنت مؤکد دی چی دا هم رایه د جمهور و علما وُده. مذهب ده او یا واجب دئ په نیزد محققینوؒ مذهب پـه هرحال چونکه بعض فقهاء د مذهب قول د ابویوسف صحیح گڼلی وی نو بـاید احتیاطًا یه مراعات وکړو سی. پـه مراقی الفلاح کی وائی، چی ابومطیع البلخیؒ چی د امام اعظم ابوحنیفه رحمة الله علیه بالذات شاګرد دی. وائی که چاپه رکوع او سجده کښی تر دری واره تسبیح وُ وئیلی لمونځ یـه نه دی روا. درویش وائی اګرچه قول د ابومطیع د مشهورو کتابو څخه د فقه خلاف دئ. لکن امام طحطاویؒ وائی چی احتیاطًا دی مراعات وکړو سی. قَالَ المصنفؒ.

**وَالسُّجُوْدُ** اوبل فرض د لمانځه سجده دہ. د رکوع او سجدی د فرض والی دلیل دا قول د باری جل شانه: وَارْكَعُوْا وَاسْجُدُوْا: **پوښتنه**: چی مراد د سجود څخه جنس دی تا چه د دواړو سجدو نه شامل سی مطلب چی دواړی سجدی فرض دی او مصنفؒ وائی چی د اثابت په حدیثو مبارکه وو سره ده او پـه اجماع د امت مرحومه هم ثابت دہ. **پوښتنه**: چی امام طحطاویؒ پـه لفظ د قیل نقل کړی دی چی پـه ابتداء کی د اسلام بعض خلکو بـه سجده کوله بیله رکوع او بعض مسلمانا نو بـه رکوع بیله سجدی





حتی چی دا ایت نازل سُو" یٰاَیُّهَا الَّذِیْنَ اٰمَنُوا ارْكَعُوْا وَاسْجُدُوْا" **مسئله**: مصنفؒ په مراقی کی وائی چی سجده په ایښولو سره د تندی یوازی صحیح ده باتفاق. او یوازی په ایښولو سره د پزی نه ده صحیح. او پـه مجتبٰی کی وائی که څوك د تندی طرف پر ځمکه کښیږدی هم کافی دئ. او معراج والا د ابی جعفرؒ څخه نقل کړی دی، چی ایښوول د ټولو اطرافو د تندی پـه اجماع سره شرط نه دئ. کذا فی البحر"

پس هغه خبره چی تجنیس د ابن نصیرؒ څخه روایت کړی ده چی که چیری یوسړی لږ تندی پرکښی د بره کښیښنو او ډیره حصه د تندی یه پر ځمکه وه. نو سجده یه روا ده او که لږ حصه پر ځمکه وه سجده یه نه ده روا، ضعیف خبره ده. بل یکفی وضع اقل جزء منها، ط، هُو وضع د اکثری حصی د تندی واجب ده. ولی چی آنحضرت صلی الله علیه وسلم همیشه توب کړی دی پر ټینګولو د تندی او پزي پر ځمکه باندې. ط، د ر،

**فائده**: باید ایښول د تندی دی پر طریقه د تعظیم وي. نو که یوسړی تندی موږ ځمکه کښیږدی او دواړی پښی یه پورته نیولی وي سجده یه نه ده روا. ولی چی دا سا تیری دی تعظیم نه دئ. درویش وائی چی د بعض عوامو د غسی حال دی چی په سجده کی دواړی پښی یه په هوا نیولی وي. نو لمونځ یه نه دی صحیح.

**مسئله**: که څوك پـه حال کی د سجدی بارخو پر ځمکه کښیږدی. او یا زنه کښیږدی او یا پر مقدمی حصی د سر سجده وکړی دا سی سجده پـه اجماع سره باطله ده. ولی چی تعظیم الٰهی د دی اعضاوو پـه ایښوولو سره نه دی مشروع، **پوښتنه**: که د یوه سړي پر تندی زخم وو او پزه یـه هم خوږ یدل. نو دا د مخ رقم سجده ده ته روا ده **جواب**: یا نه ده روا دا سړی بـه اشاره پـه سر کوي: قَالَ شیخ الاسلام که یوسړی عاجز وي د سجدی څخه پر هغه ځای چی تا کل سوی دی پـه شریعت کی. نو د هغه سړي څخه سجده ساقطه ده. او حکم یه نقل کیږی و اشاري ته:

**پوښتنه**: چی مصنفؒ په مراقی کی وئیلی دي چی یوا ځی پر پزه سجده نه د صحیح. لکن دا هلته چی عذر نه وی او که عذر وو بیا خو روا ده. وهذا مذهب الامام الاعظمؒ وبه

وبہ اخذ الصاحبانؒ ۔ او په یوه روایت کی دامام اعظمؒ څخه داسی راغلی دی چی صحیح اقتصار پر یوه ادنیٰ جزء د پزی او یا تندی که په عُذر سره وی او که بیله عذره وی" بدر الدین العینیؒ په شرح کښی د بخاری وائی چی دا صحیح مذهب دی دامام اعظمؒ دی روایت په تائید کښی په کافی کښی وائی چی پس تول مخ سُجده کول امکان نلری نو مراد بعض د مخ دی۔ نو لکه اقتصار چی پر یوائی تندی روادی خو په سبب ددی چی بعض الوجه دی لپس پزه چی وسط الوجه ده خوهم بعض الوجه ده نو اقتصار پر پزه هم روادی۔ و السجدة علی الوجه هو المامور به" ط، در، جر کا" او فتح القدیر والاوائی چی بعض متاخرینو چی فتوی پر هغه روایت دامام اعظمؒ کړی چی د قول دیارانو برابر دی لکه چی مصنفؒ په مراقی کښی چی د هغی فتوا په اثر وَئیلی دی" لا الانف" هغه فتوی نه قوی درایتہ او نه قوی روایتہ دہ۔ ځکه چی په هدایه کښی وائی چی د امام اعظمؒ د مذهب دلیل ظاهر دی۔ درویش وائی چی په دی مذهب کی د عوامو د پاره لوی سهولت چی بعض پر تندی سجدی کوی یوازی او بعض پر پزه یوازی سجدی کوی۔ لکن کلام د مصنفؒ په مراقی کی بناء دی پر احتیاط په تول کتاب کی.

**پوښتنه**: چی مصنفؒ په مراقی کی وائی۔ چی په حال کی د سجدی کامل طریقه داده چی فرض او واجب دواړه پر ځای سی۔ هغه داده چی دواړه لاسونه یه پر ځمکه ایږدی او دواړه زنگنونه به هم په ځمکه ایږدی۔ او دواړی پښی به هم پر ځمکه ایږدی۔ او تندی او پزه به هم پر ځمکه ایږدی. ذکره الکمالؒ وغیره من الفقهاءؒ.

**تنبیه**: مراد د پښو د ایښوولو څخه پر ځمکه په حال د سجدی کی ایښوول دی د گوتو د پا ی چی سرونه د گوتو یه وقبله ته سی۔ په خلاصه کی وائی: چی ایښوول د پښی پر ځمکه په حال کی د سجدی فرض دی۔ کی یوه پښه کښېښوله او بله یه پورته ولړه روادی۔ یعنی سره د کراهته ۔ په فتح القدیر کی دو چیز څخه داسی نقل راغلی دی۔ چی ایښوول د دواړو پښو فرض دی نو بیا پر یوه پښه ایښوولو سره څرنګه لمونځ او سُجده روادہ:

**جواب**: ایښوول د مطلق پښی خو فرض دی که دواړي پښی پورته وی سُجده





به نه ده صحیح. مگر د دواړو دا واجب دی. او مراد د صاحب الفتحؒ د فرض څخه فرض عملی دی چی واجب ته هم شامل دی" او شک نسته چی د واجب به نیښوول مکروه تحریمي دی

**مسئله**: که سړی ظاهر او مخ د پښی پر ځمکه کښېښېښو. او یا یه د گوتو سرونه پر ځمکه کښېښول سُجده یه نه ده صحیح. کذا فی الخلاصة ۔ او په خزانة المفتیین کی وائی چی دا ډول سجده مکروه ده۔ فقط ۔ کذا فی مجمع الانهر والبحر الرائق. و نص صاحب الهدایة فی التجنیس په دی سره که سړی په حال کی د سجدی گوتی د پښو وقبلی ته نه کړي نو مخ یعنی د گوتو سرونه یه پر ځمکه ایښی وی نو داسی سجده مکروه ده.

او مصنفؒ په مراقی کی وائی چی یوازی تندی پر ځمکه ایښوول، او فقط یواځی ایښوول او د یوه زنگانه فقط او د یوی پښی د گوتو پایونه ایښوول صحیح دی لکن سره د کراهته

## شکایت

کشکی علماوو د عصر حاضر په ځای کی داوږ دو اوږ دو قصو چی دوی یه و مقتدیانو ته کوی۔ داو د اسه د غسل، فرائض، سُنن مستحبات ۔ بیا نو لای" چی د خلکو نرو او ښځو هر روز ضرورت وړ ته سته ۔ او د اغر رنگه د لمانځه فرض کارونه، واجب عملونه، سُنت او مستحب عملونه بیا نو لای۔ او د لمانځه کیفیت د رکوع سجدی قیام او نور مُفسدات د لمانځه یه بالتفصیل وړ ته ښکاره کولای۔ څومره به ښه وای او څونه به عوامو فائده وای۔ او څونه و دوی ته خدای پاک ثوابونه ورکړی وای۔

درویش وائی۔ چه شاید چی د دنه بیا نولو د مذکوره مسائلو بوره وجه یه داوی چی اکثر د دغو ملایانو چی په گوییاوو کښی څخاری بُخاری وهی یه د فقا ئقود فقهی شریفی ناخبره وی۔ حتی چی د دوی هم لکه عوام په صحیح وجه یه مسائل دا و دا سه غسل لمانځه نوی زده نو بیا نو به دوی څرنګه دا دقائق۔ او بله وجه به دا وی چی دا او دا سه غسل لمانځه وغیره د مسائلو د بیا نولو په وخت کښی سامعان وزده کړي نو د دغو مسائلو متوجه وی۔ او بخاری نه وهی۔ او د واعظ خوښه وی چی خلک دی زما په وعظ

کی چغاری بغاری وَوَهی. تا چې په خلکو کی دا مشهوره سی چې فلانی ملا صاحب عجبه نصیحت کوی خلک ژروی نوبارہ خلک دَ دَغه واعظ لا سُونه محوی. او نوری دنیوی فائدی هم په داسی نصیحت کی نغښتی وي. - دا دوهم غرض وی بد دی تر اول غرض کما لا یخفی.

## بَاعِث پِرِ دَرُولیش

چې عربی کښنی کتابونه په عقائدو کی او فقه کی وه آسانه پښتو ته پہ را واړول. دا وُ وچې درولیش د ډیری زمانی څخه په دې فکر کی وُو چې څرنګه سَرې کولای سي چې د خپل قوم پښتنو نرو او ښځو دینی عمومی خدمت وکړی. او څرنګه بہ نا خبره ورونړه او خویندو ته. به د دوی په مورنی ژبه عقائد ضروریه د اسلام او احکام عملیه فقیهیه چې د دوئ ورته ضرورت سته بیان کړم. - هغه وو چې د خدای جَلّ شانه څخه می توفیق وغوښتئ. او په دی کار می شروع وکړه وَلِلّٰهِ الحَمْدُ چې په دې کار کښی زه خدای جَلّ شانه کامیابه وګرځولم. چې تر دی اوسه پوری پوری. ما عاجز قدوری په فقه کښی او شروط الصّلوٰة هم په فقه کښی. او نور ظلم په عقائدو کی او هم ابُوالمنتهی په عقائدو کښی په سلیس اسانه ژبه می ترجمه کړه او تلاش مې وکړی چې د معتبرو کتابو څخه د فقهی او د معتمدو کتابو څخه د عقائدو دیر کارآمد او ضروری مسئلی پر ترجمه د اصلی کتاب بالا کړم. - او د غو مذکوره کتابونه لِلّٰه الحمد عربستان، پاکستان، بلکه امریکا، جرمنی، لندن، وغیره مما لکو یعنی چیری چې پښتانه ورونړه، او خویندی موجود دي. دیر ښه رواج یې موندلی دئ. د درولیش کتابونه رواجیږی مګر ځا سِدیه کبا بیږی. او یَل کتاب شهادة الحسنینؓ په دری ژبه هم چھاپ سوی دئ. او هم دا اوس د نُورُ الاِیضَاح چې یو ډیر مختصر او معتبر کتاب د فقهی شریفی دئ تر ترجمه کولو لا ندې دئ. او اول جلد تکمیل سُو. تخمینًا د نیمه سوه مخه په شا وخوا کښی چې هغه هم اوس لاهور ته د چاپ د پاره پرلار دی





او ژر به یې ژر به اِن شَآءَ اللّٰهُ وشا تقینوته د ستیا بسی. د قاری فضل الحق صاحب په کتابت، او چاپ وونکی یہ هم دی دئ. - او ما حقوق د طباعت هم ورده نه ورکړی دی ولی چې علت غائی یہ هم دی دئ. او دوهم جلد به هم اِن شَآءَ اللّٰهُ العزیز تتابت سی. او هم د قاری فضل الحق پہ کتابت او طباعت به طبع سِی. او د هغه حجم او صفحاتی به تر اوله جلد اِن شَآءَ اللّٰه ډیری وی:

اګرچه نورالایضاح یو مختصر کتاب وُو. لکن دَ دَرولیش دا رایه دَه چې دا ترجمہ په صُورت کی د فتاوا و خپلو وطنوالو پښتنو تہ پیش کړم. اِنْ شَآءَ اللّٰهُ العزیز، دا ترجمه به په پښتنو ورونړو کښی رواج پیدا کړی او سبب بلکه بنه سبب به ده کړي د مسائلو ضروریه وود فقهی شریفی به وګرځی: وَمَا ذَالِكَ عَلَى اللّٰهِ بِعَزِيْزٍ توکلتُ علیه وَ اِلَیهِ اُنِیْبُ»

## اِرَادَه صَمِیمَه

ورونړو او خویندو- و درولیش ته د ښه ژوند او صحت دعا کوئ. ولی چې درولیش قصد لري چې ورو سته تر خلاصیدو د ترجمې د نورالایضاح» درولیش اراده صمیمانه کړي ده چې دَ قدوری د نکاح حصه هم ترجمه کړم»

اوهم دا مکتبه به یه هم پہ ښه کتابت سره تا سوته وړاندی کړي






کتَبَه احقر فضل الحق حقانِی

ولې چې د نکاح، طلاق، رضاع، وغیره مسئلوته هم عمومي شدید ضرورت ستہ
وَاللّٰهُ المُوفقُ و اَللّٰهم للصّواب» داوی څه معترضه خبرې اوس به اصل مقصودته
رجوع وکړو یعنی ترجمه دباقی نورُ الایضاح اِن شاءَ اللّٰهُ العزیزُ،،

## عَلیٰ مَا یَجِدُ حَجمَهُ

**پوهـ سـه**: چې شرط د صحت دسجدی دادی چې مصنفؒ وائي. عَلیٰ مَا یَجِدُ حَجمَهُ یعنی سجده دی کوي پر داسې شي چې وَر معلومیږی وساجدته دهغه شئی کلك والی. حتی که سجده کوونکی دپې کوشش وکړي. تر حال د اینولو په سرنه کښته کیږی. پس ساجد ته سجده نه ده روا پر پُنبه وو یا وَرِیو مگر هغه وخت چې په کوړ ټیکه کښې پرې تخته سوې وي. چې بالا نه کښته کیږي او دغرنګه سجده نه ده روا پر واوره او پر اُوړو مګر چې دپې کلك سوې وي دغړدوه. او پر اینې دنو اوجوارُیو. ولې چې دغه شیان نښوي دي او جسمونه یې سخت دی نو یو پر بل قرار نیسی بلکه ښوئیږی نو سرخواه مخواه کښته ځي: فَـالَ المُصَنّفُ

## وَتَستَقِرُّ عَلَیهِ جُبهَتُهُ

اوقرار نسی دده تندی پرهغه **مَسئَلهٔ** پر غنمو او اوربشو سجده روادَه. ولې چې دانی یې زیږی دي او دپرې کلکی نه دی یو پر بل قرار نسی، مر، ط،، **پـوهـ سـه**: چې جبهة چې په پښتو تندی ورته وائي تر ورځو لوړه سرتر وینتا نو پورې. او پر تندی باندی دد وو طرفو دوه جبینان دی چې په پښتو تیکونه ورته وائي. فَـالَ المُصَنّفُ.

## وَلَو عَلیٰ کَفِّهِ اَو طَرَفِ ثَوبِهِ اِن طَهُرَ مَحَلُّ وَضعِهِ

سجده صحیح ده که څه هم پر ورغوي د ساجد وي پر صحیح روایت مره او داغرنګه صحیح ده سجده پر طرف د جامی دَده که پاك وو ځای د اینبو ولو د کف او د جامې **پـوهـ سـه**: چې د ثوب نه مراد ثوب ملبوس دَه. لکه د قمیص لمن، یاد لنګوټې شمله، او سجده پر طرف د ثوب د جهت د عذر روادَه. او بیله عذره مکروه دَه لکه سجده پر وَله د لنګوټې. او هرچه





سجده ده پر د سمال یا پټو هغه په هر حال روادَه یعنی که عذر وی او که نه وي. او د عذر یو صورت هغه دی چې په صحاح سته وو کښی راځي. د انس رَضِیَ اللّٰهُ عَنهُ په روایت سره: کُنَّا مَعَ النّبی صَلّی اللّٰهُ عَلَیهِ وَسَلم فَیَضَعُ اَحَدَنا طَرَفَ ثَوبِهِ فِی شِدَّةِ الحَرِّ مَکَانَ السُّجُودِ» ترجمه: مونږ وو سره د نبی علیه السلامه نو اینښوده به یو زمونږ طرف د جامې خپل په سختی ګرمی کښی په ځای کښی د سجدی. او د اهم د عذر صورت دی چې په ژمی په یخ وطن کی سرې په صحرا کی لمونځ کوی نو تر تندی لاندی طرف الثوب د ډېره یخه اواره وي.

**مسئله**: پر هر قسم غالیو که ایرانی وی. که عربستانی وی او که افغانستانی وی او یا د نورو مملکتو چې پاکی وی لمونځ بیله کراهته روادئ. د ر، فَـالَ المُصَنّفُ

## وَسَجَدَ وُجُوبًا بِمَا صَلُبَ مِن اَنفِهِ وَبِجَبهَتِهِ وَلَا یَصِحُّ

او سجده دی کوي از روی وجوب پر کلك ځای د پزی. او وجوبًا دی سجده هم کوي پر تندی

## الِاقتِصَارُ عَلَی الاَنفِ اِلَّا مِن عُذرٍ بِالجَبهَةِ

باندی او نه دی صحیح بس والی د پزې پر سجده مګر هغه وخت صحیح دی چې په تندی کی عُذر مثلًا دانه وي چې پر ځکه یې نه سی اینبو ولای. **پـوهـ سـه**: چې د دی مسئلو تحقیق پوره عنقریب تیر سو. فتذکر. فَـالَ المُصَنّفُ.

## وَعَدَمُ اِرتِفَاعِ مَحَلِّ السُّجُودِ عَن مَوضِعِ القَدَمَینِ

اول شرط د شروطو څخه د صحت د سجدی دا دی چې نه به وی پورته ځای د سجدې تر ځای

## بِاَکثَرَ مِن نِصفِ ذِرَاعٍ فَاِن زَادَ عَلیٰ نِصفِ ذِرَاعٍ

د لښو بالاتر نیم ګزه. یعنی لږ پورته والی ضرر نه لري. او که تر نیم ګزه بالا وو ارتفاع سجده یې نه ده روا،،

## فَاِنْ زَادَ عَلٰی نِصْفِ ذِرَاعٍ لَمْ یَجُزِ السُّجُوْدُ اِلَّا لِزَحْمَةٍ

اوکه چیرې زیات وود الوړ والی ترنیم گزه - نو سجده نه ده پر روا - مگر ما سوا دهغه صورته

## سَجَدَ فِیْهَا عَلٰی ظَهْرِ مُصَلٍّ صَلٰوتَهٗ

څخه چې ازدحام دخلگو دېروي.

اودی سجده وکړي پر شا د هغه چاچې خپل لمونځ کوي. **خلاصه** دا چې که چیرې ترنیم گزه پیر ارتفاع زیا تروه بیا سجده نه ده روا. یعنی دغې سجدې ته اعتبار نشته نو کوی دغه سجده پر کښته ځای را وگرځول صحیح سوه - او کی لمونځ پوره کړي او هغه معتبره سجده بیرونه کړي لمونځ به باطل سي. ولې چې فرض عمل پر کښې پاتې سو: مگر هغه وخت لوړوالی د ځای د سجدې پر ځای د پښو روادی چې ازدحام د خلگو دېروي او ځای د سجدې نه وي. بلکه دوړوسته صف سړي د مخ د صف د سړي پر ملا سجده کوله لکن هغه لمونځ گذاره په لمانځه کښې شریک وي. دا تول د مجبوری له کبله. نو که هغه د مخ وخواته سړي لمونځ نه کاوه او یا په بل لمونځ کاوه د هغه پر شا سجده نه ده روا. او په کفایه کی دا شرط هم راوړی دی چې لمونځ کوونکی زنگونونه به پر ځمکه وي. او په مجتبٰی کی دا هم شرط کړي دی چې هغه بل سړي چې دی ئې پر شا سجده کوي هغه به پر ځمکه سجده کوي. لکن قهستانی د مبسوط څخه نقل کړي دی چې سجده دا زدحام پر شا د غیر مصلی هم روا ده. او امام زاهدیؒ وائي چې پر شا د ماکول اللحم که پسه وغیره هم روا ده. ونقل عن الجلابی انه یستحب التاخیر حتی یزول الزحام" ط مر

**واقعه**: یوه ورځ درویش په مسجد نبویؐ د مدینې منورې د لمانځه دپاره بنه پروخت ورغلم او په یوه صف کی می تحیة المسجد ادا کړه. بیه د رکوع او سجدې ځای می در لودی. لکن څه وخت چې د لمانځه د جماعت وخت نږدې کیدی خلق دېرېدل حتی چې د صفو په ما بینو کی نور صفونه جوړ کړه سوه. د درویش ومخ ته یو لوی بنده





مصري کښینستی هرڅه چې می قبل الصلوٰة ورته وو ویله چې زه به سجده اخیر چیری کوم، نو ده نه منله او نه ایسته کیدی او دا ئې وویله "اَلله مَالِکُ"، او بل ځای هم نه وو چې زه هلته ولاړ سم. خیر اقامت وسو او لمونځ شروع سو قیام خو سوه کم مشکل نه وو. او رکوع هم په ادنٰی طریقه وسوه. د سجدې چې وار سو مصري تماد مخه پر سجده سوکنا تی په دوینه عنت وه چې زه پر رکوع وای دده پر کناتو ی سرنه سوای ایښوولای. شا خو چیري ده خو چې زما سر دده کنا تو څخه ومښتی ده په حال کی د سجدې پښې را ته ازادې کړې. مطلب په دا وو چې زما په پښو سه تنبا سه - ما هم هغسې وکړه او سجده می گرده کاملا پر ځمکه وکړه ترا خیره.

نو هلته می په لمانځه کښې دا په زړه کښې راوگرځید له چې په فقه شریفه کښې چې وائي چې په وخت د زحام پر شا د لمونځ کوونکی سجده وکړي هغه کافی نه ده ولې چې درویش په دغه زحام کی په مابین کی د رجلی د مصلی سجده وکړه، چې د ظهر د سجدې به امکان نه وو. او سره د دې چې په فقه شریفه کی وائي چې د حال د رکوع سجده پر شا د بل مصلی نه ده روا. بلکه دی به زنگونونه پر ځمکه ایږدي. فَحَقَّ الْقَوْلُ بِاَنَّ الْعُلُوْمَ تَتَزَایَدُ یَوْمًا فَیَوْمًا، قال المصنف "

## وَوَضْعُ الْیَدَیْنِ وَالرُّکْبَتَیْنِ فِی الصَّحِیْحِ

او ایښوول د دواړو لاسو او زنگونو دی. پر صحیح روایت کی. مصنفؒ په مراقی الفلاح کی دا عبارت په حذف د مضاف گرځولی دی ای احد الیدین واحد الرکبتین، نو ترجمه د عبارت دا سې کیږي چې بل شرط د صحت د سجدې ایښوول دی د یوه د دوو لاسو او د یوې پښې. د دې ځای تفصیلی بیان د مخه تیر سو. قال المصنفؒ:

## وَوَضْعُ شَیْءٍ مِّنْ اَصَابِعِ الرِّجْلَیْنِ

اول شرط د صحت د سجدې ایښوول دی د یوه گوتو څخه د پښو پر ځمکه لکن گوتی به مخ ئې قبلې ته وي سرونه

## حَالَةَ السُّجُوْدِ عَلَی الْاَرْضِ وَلَا یَکْفِیْ وَضْعُ ظَاهِرِ الْقَدَمِ

اگر تو به پر ځمکه نه لگیږي کوي - او کافی نه ده د صحت د سجدې دپاره ایښوول د مخ د پښې پر ځمکه.

ولې چې ظاهرډ پېښې ځای دسجدې په شریعت کې نه دئ. مصنفؒ په مَرَاقی الفلاح کې داحدیث دلیل راوړی دی چې آنحضرت صَلّی اللّٰهُ عَلیه وسلم وَائیٔ: اُمِرْتُ اَنْ اَسْجُدَ عَلٰی سَبعَةِ اَعْظُمٍ عَلی الجَبهةِ والیدَیْن و الرکبتین واطرافِ القَدمینِ» زه امرکړه سوی یم یعنی دجانب څخه دخدای عَزّوَجَلّ چې زه به سجده کوم پر اوو اډکو، چې تندی دی اودوه لاسونه دي. او دوه زنگنونه دي اواطراف دپښو دي.

**سوال**: امرخو پاره دوجوب وی نود دی حدیث مفاد خودادی چې پر دی اوو اندامو سجده واجب دَه. اوحَدیث صحیح اومتفق عَلیه دئ. اوسره د دی چې ایښوول د دواړو لاسو اود دواړو زنگنو سُنت دی زموږ په نیز. **جواب**: غرض د مصنفؒ د دی حدیث څخه دادی چې محل دسجدی خود غړ اعضاء دی اودا صحیح دي اوهرچېر داخبره ده چې دَټولو وضع لازمه دَه داعلحدة حکم دئ. مصنفؒ په مَرَاقی کی وائی چې یوه پښه کښېږدی په صحت کی ده سجده یه اختلاف دی. اوطحطاویؒ وائیٔ چې ظاهرډ مختصر الکرخی والمحیط، والقدوری عدم جواز دئ. قَالَ المصنفؒ

## وَ تَقْدِیْمُ الرُّکُوْعِ عَلَی السُّجُوْدِ

یعنی شرط دی دپاره دصحت د رکوع اوسجدی د مخه کول د رکوع پر سجده باندی. قَالَ فی المراقی. لکه چه شرط دی تقدیم دقرائت پر رکوع.

**مَسَئَلَه**: که یوسړی دسحارپه لمانځ کی رکوع ترقرائت د مخې وکړي. اود رکوع څخه چی راپورته سی بیاهم یه قرائت ونه وایه لمونځ یه فاسِد سُو. اوکی وروسته تر رکوع قرائت ووایه نولمونځ یه صحیح دَی. کی دا کارقصدًا وکړی لمونځ یه مکروه دئ. اوکی سهوًا کړي وو نوسجده سَهوه دی وکړی: کما فی الکافی لوقدم رکنًا علی رکن سَجَدَ لِلسّهوْ

**مَسَئَلَه**: بعض علماء وَائیٔ چې په مذکوره صُورت کی یعنی چې تررکوع وروسته قرائت ووائي رکوع یه لغوه سوه بله رکوع به کوی. اوسجده نسته ور باندي. **مَسَئَلَه**: که یوسړی په اولو دوو رکعتوکی دَځلوړ رکعتی لمانځه قرائت نه وو وایه اوپه اخیرو دوورکعتوکښی قرائت ووایه لمونځ یه صحیح دئ.



**بیوه سَله**: چی مفاد د عبارت دمصنفؒ په نورالایضاح اومراقی الفلاح کښی دادئ که یوسړی رکوع د مخه ترقرائت وکړی. یا سجده دمخه تررکوع وکړی لمونځ یه فاسِد دی. اوپه کافی کی هم تصریح پر دَغه سوې دَه. لکن په کافی کی په باب سجود السهوکی داسی وائي. لَوْقَدَّمَ رکنًا عَلیٰ رکنٍ یعنی سهوًا سَجَدَ لِلسَّهْو، د دی عبارت څخه دا معلومیږی چی ترتیب دارکانو واجب دئ.

ولې چې دواجب په پرېښولوسره جبیره سجده سهوه کیږي. اوو راندی وئیلی وچې لمونځ یه فاسِد سُو. د دی سَه خودامعلومیږی چی مراعات د ترتیب فرض دی. اومصنفؒ هم تصریح کړې ده بقوله: وَیُشتَرطُ لِصِحّة الرکوعِ وَالسجود: پرفرضیت د ترتیب. وهذا اشکالٌ ینبغی حلُّهٗ. وقد تفرد صاحِب جامع الفصولین العلامة ابن قاضی سماوة فی کتابه شرح التسهیل بدفعه. یعنی چی دفرضیت ځای اودوجوب ځای په ترتیب کی د ارکانو جلادی: فَلاتنا قض بینهما، هغه داسی چی معنا دفرضیت دترتیب داده چی صحت د رکن ثانی پروجود داول رکن موقوف دئ. نولکه څوک رکوع دمخه ترسجدی وکړی سجدی تی اعتبار نسته باید سجده بیرته راوګرځوي. اومعنا دوجوب الترتیب داده چی لمونځ یه نه فاسدیږی کی بیرته راوګرځاوه لیعنی هغه ترتیب چی ده خراب کړی وُو. فافهم هَدَاكَ اللّٰهُ» قَالَ المُصنفؒ.

## وَالرَّفْعُ مِنَ السُّجُوْدِ اِلٰی قُرْبِ الْقُعُوْدِ عَلَی الْاَصَحِّ

اوشرط دپاره دصحت دسجدهٔ ثانیه پورته کول دسردی د اولی سجدی څخه تر داسی حَده چی وناستی ته نزدی سی. که څه هم سَر نه کښینی پر صحیح روایت دامام اعظمؒ څخه

## راځای دَ غور وړ دئ

ولی په دی مسائلوکښی روایات مختلفه سته اود مذهبو اختلاف هم سَته. علامه مسکینؒ وَائی چی وَلاړه د رکوع څخه او ناسته په مابین دسجد تینو دواړه فرض دے. په نیزد امام ابویوسفؒ نود ده مذهب

مقتضیٰ دا ده که چا قومه، او جلسه، پریښوله لمونځ یه فاسد دئ. او امام اعظمؒ او امام محمد یه واجب بُولي. دواړی یعنی چې لمونځ نه پـه فاسدیږی. او د مصنفؒ کلام هم دلته د امام ابو یوسفؒ د مذهب سره موافقت لري. ولـحچی دی وائیؒ ویشترط الرفع آه»

لکن په دی کښی اختلاف دی چې اندازه د رفع د سجدی څخه څومره اندازه ده. د حضرت الامام الاعظمؒ مذهب خوذ کرسُو. ډیرو کتابو د فقهی شریفی فتوی پـه دَغه مذهب ورکړیده. او ډېرو لیش هم دا مذهب د فتوی دَپاره مناسب بُولي. او بعض مشائخ وَائي چې تندی مرف د مځکی پورته کری او بیرته یـه کښیږدی لمونځ یه صحیح دی. د روایت وائي چې د دی مذهب هیڅ یوه فقیه نقلی او تصحیح نده کړې. او نه عالم ته مناسبه دَه چې دا مذهب و عوامو ته بیان کړي. او قدوریؒ وائي چې هغه قدر رفع غواړي چې خلک یه رفع وَبولي. شیخ الاسلام دا رأیه اصح گنړلې دَه (یعنی پـه ادا ئی کی د فرض و لکن مکروه ده» ط»

او بعض فقهاء وائي چې هغه قدر رفع ضروری دَه چې کتونکی یه رافع وبُولي. دا مذهب عیناً د قدوری مذهب دی لکن پوه سَه: چې مصنفؒ سره د دی چې دلته وَیشترط وائي منکر په حاشیه کی د در داسی وَائي. چې ده دلا ئلو شرعیه و مقتضی دا ده چې دَا څلور سَره کاره واجب دي. یعنی ارام کول پـه رکوع کی. ارام کول پـه سُجده کښی. او آرام کول پـه وَلاړه کی د رکوع څخه او آرام پـه ناسته کی پـه مَا بین کی د دوو سجدُو. او رفع د رکوع څخه هم واجبه ده. او نفس جلوس بین السجدتین هم واجبه دَه. پـه سبب د مواظبت د آنحضرت صَلَّى اللهُ عَلَيه وَسَلم پر دَغو کارو. او بل دَلیل د وجوب په دا دی چې تا ضیخانؒ وَائي چې که چا رفع د رکوع څخه سهوًا پریښوَله سجده سهوه پر لازمه دَه. او ودې ته و، ته [redacted]کړیده. نو حکم د ناستی بین السجدتین هم دغه رنگه دی. وَلې [redacted]یودئ. د روایت وائي چې د دغو افعا لو وجُوب مختاره د کمال الدین [redacted]دده شاگرد ابن امیر الحاج هم مختاره دَه. قال وانه الصّواب» د روایت [redacted]اما فتویٰ هم پر دغه نظریـه دَه» ولې چې د قوا نینو سره د فقه شریفی ډیره برابره





ده **پوښتنه**: که یو سړی اول سجده مثلاً پر بالښت وکړه او بیا چا بالښت د ده څخه لیری کړي او بیله پورته کولو د سر دوهمه سجده یـه کښنسته پر مځکه وکړه دا دوهمه صحیح ده. بعض علماء وائي چې پر قول د قدوری صحیح دَه. دا خبره غلطه ده، ولې چې مطلق رفع خو فرض بالاجماع ده پـه دا مذکور صورت کی هیڅ رفع نشته» قال المصنفؒ

**وَالْعَوْدُ إِلَى السُّجُوْدِ** او دا غږ رنگه فرض دی دوهمی سجدې ته گرځیده. مصنفؒ په مراقی کی وائي چې سجدهٔ ثانی فرض ده لکه اوله سجده بإجماع الامة» ورد فی الحدیث النبویؐ چې آنحضرت صَلی اللهُ علیه وَسَلم چې اوله سجده بې وکړه او سر مبارک بې را پُورته کړي نو بې لاسُونه هم د مځکی څخه را پُورته کړه او بیرته ورنو بې کښیښوله. او دا هَم علیه الصلوٰة وَالسلام وَیلی دی. صَلُّوا كَمَا رَأَيْتُمُوْنِيْ أُصَلِّيْ. تاسی لمونځ کوی لکه تاسی چې زه ولیدم چې لمونځ می وکړئ. او پـه یو بَل حَدیث شریف کی راغلی دی، چې لاسُونه هم سجده کوي لکه مخ چې کوي. نو څه وخت چې تاسی مخ پر مځکه کښیږدی لاسُونه هم ایږدی او هر وخت چې مخ پورته کړي د مځکی څخه لاسُونه دی هم پورته کوي.

## حِكْمَةُ تَكْرَارِ السُّجُوْدِ

بعض فقهاء وَائي چې د تکرار د سجدو امر تعبدی دئ. یعنی خدای جَل شانهٔ مونږ امر کړی یو چې دوی سجدی کوئ. کی څه هم مونږ پـه حکمت نه یو خبر لکه عدد د رکعتو د لمونځو. نو مونږ هغسی کوو بالا پـه حکمت پسی نه گرځو. او بعض علماءؒ وائي چې دوهمه سجده د پاره د ترغیم د شیطان ده. چې ډیوه سجده هم و حضرت آدم عَلیه السّلام ته وکړه. او پـه بعض روایا تو کښی راغلی دي. چې څه وخت چې ملکو حضرت آدم علیه السلام ته پـه امر د خدای پاك سجده وکړه او شیطان نه وکړه. نو څه وخت چې دوی سَرُونه راپورته کړه وی لیدَله چې دَ شیطان مَخ د ښاوخواته او وښتی و او بیر

بد نيه داسی و يښتان را پورته سوی وه. لکه د سرکوزی نوملکو دوهم سجده وکړه د شکر د پاره»، نوخدای پاك مونږ امرکړو» مُنۡتَا بَعۡثَةً لِلۡمَلَائِكَةِ» چی تاسی هم دوی سجدی کوی» د دی روايت څخه دا معلوميږی چی هغه سجده چی ملکی په امرسوی وی سجدهٔ اصطلاحی وه؛ او آدم عليه السلام صرف په ډول د محراب ومختہ د دوی ولاړو و

او بعض اهل سِيَرو وائی چی اوله سجده د پاره د شکر د ايمان ده او دوهمه سجده د پاره د بقاء پر ايمان ده. او بعض محققان وائی چی اول سجده د پاره دا شاري وهغه ايت کريمه ته ده» مِنۡهَا خَلَقۡنَاكُمۡ» يعنی د مځکی ما تاسی پيدا کړی یاست» او دوهمه سجده اشاره ده ودی ايت کريمه ته: وَفِيهَا نُعِيدُكُمۡ»

او بعض علماء وائی چی څه وخت چی ټوله اولاده خدای پاك دا آدم عليه السلام څخه راوايستل د پاره د اخذ د ميثاق يعنی هغه وعده د» اَلَسۡتُ بِرَبِّكُمۡ قَالُوا بَلٰى» نو بيا ئے ټوله په سجده سره امرکړه نو هغه کسان چی په وروسته ژوندکی به مسلمانان وی هغو ټولو سجده وکړه او کفار ونه وکړه. نو مسلمانانو چی سرونه را پورته کړه او کفارو ته وکتل چی سجده يه نه وکړه نو مسلمانانو دوهمه سجده وکړه د پاره د شکر» وَاللّٰهُ اَعۡلَمُ بِالصَّوَابِ وَعِنۡدَهٗ اُمُّ الۡكِتَابِ وَاِلَيۡهِ الۡمَرۡجِعُ وَالۡمَآبُ» قَالَ المصنفؒ

## وَالۡقُعُوۡدُ الۡاَخِيۡرُ قَدۡرُ التَّشَهُّدِ

او همدارنګه فرض ده اخيره ناسته په اندازه دا لتحيات آه ...

**پوهسه:** چی اخيره ناسته خوفرض ده. په اجماع د علماء ود څلورو مذهبو» اِلَّا مَا لِكًا فَاِنَّهٗ سُنَّةٌ»، لکن په مقدار کښی اختلاف دی او د احنافو مذهب دا دی لکه مصنفؒ چی وائی په قدر د التحيات آه دویلو. او دا هم صحيح مذهب دی

**سوال:** اخيځو هغه شی ته وائی چی اول هم لری نو د سحار په لمانځه کی يا د جمعی په لمانځه کی خو اوله ناسته نسته. او د غه رنګه د مسافر په رباعی لمانځه کی اوله ناسته نسته.

**جواب:** مراد د لته اخيره د لمانځه دی يعنی هغه ناسته چی په اخير کی د لمانځه کيږی که د مخه ناسته لری او که نه لری» فيشمل الکل» ط»





**فائده:** مصنفؒ لفظ د قدر ووايه اشاره ودی ته ده وکړه چی دا لتحيات ويل فرض نه دی بلکه نفس ناسته فرض ده. او د التحيات ويل به په واجباتوکی راسی» اِنۡ شَاءَ اللّٰهُ الۡعَزِيۡزُ»

دليل د دی مسئلی دا دی چی ابن مسعودؓ ته آنحضرت صَلَّى اللّٰهُ عَلَيۡهِ وَسَلَّمَ څه وخت چی التحيات وربښوؤله وروسته يه داورته وفرمائيل: اِذَا قُلۡتَ هٰذَا اَوۡ فَعَلۡتَ هٰذَا فَقَدۡ قَضَيۡتَ صَلٰوتَكَ اِنۡ شِئۡتَ اَنۡ تَقُوۡمَ فَقُمۡ وَاِنۡ شِئۡتَ اَنۡ تَقۡعُدَ فَاقۡعُدۡ» يعنی په ناسته ولی چی التحيات په ولاړی مشروع نه ده. ترجمه: چی تا دا التحيات ووئيل او يا دی فعل وکړي يعنی په قدر د التحيات کښينستی نو تا پوره کړی لمونځ نو بيا ستا خوښه ده که ولاړيږی ولاړ سه او که کښينی کښينه.

## اِخۡتِلَافُ الۡعُلَمَاءِ:

اخيره ناسته فرض خو ده په اتفاق اما امام مالكؒ يه سُنت بولی. لکن رکن يعنی اصلی د لمانځه ده. دا مذهب دی د يوسف بن عاصمؒ. او په بدائع الصنائع کی وائی چی رکن اصلی نه ده يعنی رکن زائد ده. ولا يخفى ان بين الركنية والزيادة منافاة فافهم»، او صحيح دا ده چی دا ناسته شرط ده. په دليل د هغی مسئلی چی فقهاءؒ وائی چی که سړی قسم واخستی چی زه لمونځ نه کوم. بيا پر لمانځه ودريدی څرنګه چی د اخير رکعت د دوهمی سجدی څخه سر راپورته کړی حانث سو. نو که چيری التحيات رکن وای نو دا سړی پس له التحيات حانث وای» لان الكل لا يوجد بدون الجزء. او په سراج او بحر او نهر کی وائی چی وضعه د لمانځه د پاره د تعظيم الٰهی ده او اصلی تعظيم د قيامی څخه شروع کيږی په رکوع کی تعظيم زياتيږی او سجده پای د تعظيم ده. او په ناسته کی خو هيڅ تعظيم نسته. بلکه صرف استراحت دی نو رکن نه ده» ط» قال المصنفؒ

## وَيُشۡتَرَطُ تَاخِيۡرُهٗ عَنِ الۡاَرۡكَانِ

او شرط دی وروسته کول د اخيری ناستی تر ټولو ارکانو. ولی چی قعدهٔ اخيره د پاره د ختم

**مسئله**: که دچا سجده صلبیه هیره وه چی التحیات یې وو یل ور پیاد سوله هغه سجده دی راوگرځوی. که څه هم پس له سلامه وي چې خبرې نه وې کړې. او کې خبرې کړې وې لمونځ به بیرته راګرځوي دارکانو مشروع ده کما یدل علیه حدیث ابن مسعودؓ قال المصنفؒ

**وَادَاءُ اَرْکَانِهَا مُسْتَیْقِظًا** اوشرط دی دپاره د اداء دارکانو او دصحت دهغو کول دَهغو په داسې حَال کښې چې ویښ وې

**مسئله**: که یو لمونځ کوونکي قرائت ووایه یایې رکوع وکړه او بیده ووهغو ته اعتبار نشته بیرته بې راګرځوي. او په قعده اخیره کې که بیده وو منیة المصلی وائي کې نه راوګرځول لمونځ یې باطل سُو. دده په نیز قعده اخیره رکن دَ لمانځه دَه والصحیح ما فی جامع الفتاوٰی. چې قعده اخیره دخوب په وخت کښې هم صحیح ده راګرځول نه غواړي. ولې چې دا رکن نه دَه بلکه دا استراحت دپاره دَه او په خُوب کې خوښه استراحت سته «م» قال المصنفؒ

**وَمَعْرِفَةُ کَیْفِیَّةِ الصَّلَوَاتِ وَمَافِیْهَا** اوفرض دی پیژندل دکیفیت د لمونځو یعنی داچې

**مِنَ الْخِصَالِ الْمَفْرُوْضَةِ** دوه رکعته دسحار فرض دي، او څلور رکعته دماپښین فرض دی وهکذا. او هغه څه چې په دې ټولو لمونځو کې افعال مفروضه دي. لکه چې دوه رکعتونه دسحار فرض او دونه دماپښین فرض دي. وجمعیة الخصال باعتبار تعدد الصلوات المفروضة والا فالفرضیة خصلة واحدةٌ. قال المصنف فی نور الایضاح

**عَلٰی وَجْهٍ یُمَیِّزُهَا عَنِ الْخِصَالِ الْمَسْنُوْنَةِ** پر داسې طریقه باندې چې فرضی خصلت پیژني چې تمیز د هغه خصلت د خصال مسنونه وو څخه وکړي. **پوهه** سه چې جمعیت د خصال مسنونه ووهم په اعتبار د دیر والی دمسنونو لمونځو دی. او که داسې نه وي نو سنتیّت خو یو خصلت دی په ټولو سنتو کې مثلًا دا به ورته معلوم وي





چې څلور قبل الظهر او دوه رکعته بعد الظهر سُنت دی وهکذا السنن الأخر. او دا مراد نه دئ. چې دلمانځه قیام، رکوع وغیره به په صفت دفرضیت پیژني. او سُبحان او تسبیحات به په دَوَل دسنت پیژني وهکذا قاله المصنفؒ فی المراقی،،

**پوهه** سه: چې د مصنفؒ دغه ترجمه چې مونږ وکړه همدغه مراد ده. که څه هم عبارت د کتاب واضح دلالت نه پرکوي. والتفصیل فی شرح الامام الطحطاوی» او مصنف وائي چې دا اداء د فرضی لمونځو ټولو داسې اعتقاد هم کافي دئ. قال المصنفؒ

**وَاعْتِقَادُ اِنَّهَا فَرْضٌ** او اعتقاد دی لمونځو چې دي ئې په دی پنځو ختو کې اداکوي. مثلًا دسړي عقیده وي چې دسحار فرضی لمونځ څلور رکعته دی. او هر دوه رکعته جلاجلا وکړي او دماښام لمونځ نیځه رکعته دی فرضی دی لکن دری رکعته یې جلا وکړي او دوه رکعته جلا وکړي وهکذا. قال المصنف

**وَاعْتِقَادُ اِنَّهَا فَرْضٌ حَتّٰی لَا یَتَنَفَّلُ بِمَفْرُوْضٍ**

او عقیده به ددی لری چې دَغه لمونځ چې زه ئې کوم فرضی دی تاچې نفلی نیت ونه کی په فرضی لمانځه کی. ولې چې فرضی لمونځ په نیت د نفلو نه دئ روا او نفل په نیت دفرضو روا دی کما فی التجنیس والمزید والخلاصة، ط» قال المصنفؒ

**وَالْاَرْکَانُ مِنَ الْمَذْکُوْرَاتِ اَرْبَعَةُ الْقِیَامُ وَالْقِرَاءَةُ وَالرُّکُوْعُ**

په دی کی بالاتفاق چې تیر سوه چې تراوُوه ویشت هم بالاوه څلور رکنونه دی. چې هغه ولاړه، قراءت، او رکوع

**وَالسُّجُوْدُ وَقِیْلَ الْقُعُوْدُ الْاَخِیْرُ مِقْدَارَ التَّشَهُّدِ وَبَاقِیْهَا شَرَائِطُ**

او سجده دي. او بعض علماء وائي چې اخیره ناسته په قدر د التحیات آه دا څلور رکنونه دی په لمانځه کی باقي ما نده شرطونه دي: او بعض عُلماء وائي چې تکبیر تحریمه هم رکن دی. نو به شپږ سي. وقد مر الاختلاف وما هو الصحیح من انهما لیسا برکنین »

## بَعْضُهَا شُرُوْطٌ لِصِحَّةِ الشُّرُوْعِ فِي الصَّلٰوةِ وَهُوَ مَا كَانَ خَارِجَهَا

لبعض د هغو نه شرطونه دی د صحت د شروع په لمانځه کې هغه هغه شرطونه دی چې خارج د لمانځه نه وی. چې هغه پاکی ده د حدث او نجس نه او ستر د عورت دئ. او استقبال د قبلې دئ. او وخت دی او نیت دی او تحریمه ده. قَالَ المصنفؒ

## وَغَيْرُهُ شُرُوْطٌ لِدَوَامِ صِحَّتِهَا

او غیر د هغه نه شرط د دوام د صحت د لمانځه.

بیت ـ یارب تو آنچه من گدا میخواهم ؛ فزون زهزار پادشاه میخواهم ؛ هر کس از در تو حاجتی می خواهد ؛ من آمده ام از تو ترا میخواهم

قَالَ المُصَنِّفُ

# فَصْلٌ

فِي مُتَعَلِّقَاتِ الشُّرُوْطِ وَفُرُوْعِهَا

## تَجُوْزُ الصَّلٰوةُ عَلٰى لِبْدٍ وَجْهُهُ الْاَعْلٰى طَاهِرٌ وَوَجْهُهُ الْاَسْفَلُ نَجِسٌ

روا دی لمونځ پر کراسته چې لوړ مخ یې چې سرې لمونځ پر کوی پاک وي او کښتنی مخ یې نجس او مردار وي. یعنی په دونه نجاست چې مانع د لمانځه هم وي. **پوهه سه**: چې مراد د لبد نه هر هغه شئ دی چې بڼه والی لري کلک چې دوه ځایه کیدای سی. لکه کراسته قالین، کمبله، خښته پړ وغیره کذا فی البدائع والخانیه، ومنیة المصلی او نور کتابونه د فقهی شریفی.

**مسئله**: یوه کوټ چې یه د مردار و وړی ډکه کړې وه. او دواړه مخه د پوښ یې پاک وه لمونځ پر روادئ ط. **مسئله**: لمونځ روادی پر پوست د پسه چې وړی





یه مرداری وی لکن د ځځکی وخواته وي. كما في البدائع والخلاصة. **مسئله** پر یوه داسی پنډه تخته چې دوی تختې ځنډې جوړې ې. او لاندی مخ یه مردار وی او لوړ مخ یه پاک وي پر پاک مخ یه لمونځ روادی. یه نیز د امام اعظمؒ او د امام محمدؒ او په دې مذهب فتوا ورکړې ده ابوبکر اسکافؒ. او امام ابو یوسفؒ وايي نه دی روا. او په دی مذهب فتوا ور کړې ده ابوحفص کبیر" م ط". قَالَ المصنفؒ

## وَعَلٰى ثَوْبٍ طَاهِرٍ وَبِطَانَتُهُ نَجِسَةٌ اِذَا كَانَ غَيْرَ مُضَرَّبٍ

او د اغه رنګه لمونځ روادی پر هغه جامه چې پاکه وی او په ما بین کی نجس استر وي لکن چې مضرب نه وي. **پوهه سه**، چې مضرب هغه دوه مخی کالي ته وايي چې په ما بین کی استر وا رو شی وي او اطراف یه ګنډل سوي وي. او په ما بین کی هم ګیندی وهلی سوي وي. او غیر مضرب هغه ورته کالي دی چې په ما بین کی نه ګنډل سوی وي. او عبارت د طحطاویؒ ډیر مجمل دی په دی ځای کی. او د افرق صاحب المجمع بیان کړی دئ. وقال هو الصحيح

**مسئله**: په قهستانی کی وايي چې پر داسی چینه لمونځ روادئ. چې استر یه نجس وی او مخ یه پاک وي. او د دی چینی د تخت خوادی تر پینو لا ندی کړی او سجده دی پر لمن کوی: د دی وجه به شاید دا وي. چې د لمنی خوا فراخه وی او نرم وی نو سجده قرار پر نسي. قَالَ المُصَنِّفُ:

## وَعَلٰى طَرَفٍ طَاهِرٍ وَاِنْ تَحَرَّكَ الطَّرَفُ النَّجِسُ بِحَرَكَتِهٖ عَلَى الصَّحِيْحِ

یعنی که کمبله وی او که بوړیا وی او که پټو وي. او د اغه رنګه لمونځ روادی پر پاک طرف د مذکوره شیا نو یعنی چې یو بل طرف یه مردار وی که څه هم طرف نجس په ښورولو د پاک طرف ښوري. ولې چې د غه مذکوره شیان د ځځکی حکم لري نو شرط صرف پاکوالی د ځای د لمونځ کوونکی دی لکه په ځځکه کښې دا غه حکم دی" کذا قال الطحطاویؒ"

# تفصیل المقام

په بحر الرائق کښې وائي که یو سرې پر او ار سوی شی لکه مذکوره شیان وغیرها لمونځ کاوه او پر بل طرف د هغه شي مردار ی پرته وه پس اصح داده چې لمونځ پر روا دی که دا او ار سوی شی لکه کمبله یا غټ پټو وغیره او که کشنی وي. لکه د لمانځه مصلی یا داونړی دسمال. دلیل یې دادی وئیلی دی چې دغه شیان پر منزله د ځمکې دی نو لمونځ کوونکی د نجاست مستعملوونکی نه بلل کیږي.

او بحر یا ترکړیده چې د لمونځ باید په طریق اولیٰ راسی. ولې چې فقهاءٔ وائي چې نجاست په ځای کې د ننگنو د مصلي او د غر نگه د لاسو مانع د لمانځه نه دی نو مذکور نجاست به څنگه مانع وي. او په خلاصه کښې وائي که مصلی آواره کړه یو نا زکه جامه پر و چ نجس بانډی نو که دغه جامه داسی وه چې هغه نجاست نه ترې معلومیدې لمونځ پر روادی او که د نجاست حکایت یې کاوه لمونځ نه دی پر روا. قال المصنفؒ:

## وَلَوْ تَنَجَّسَ اَحَدُ طَرَفَيْ عِمَامَتِهٖ فَاَلْقَاهُ وَاَبْقَى الطَّاهِرَ

که چیرې د یو سړی د لنگوټې یو طرف مردار وو. یعنی په نجاست مانعه د لمانځه نو مصلی

## عَلٰى رَأْسِهٖ وَلَمْ يَتَحَرَّكِ النَّجِسُ بِحَرَكَتِهٖ جَازَتْ صَلٰوتُهٗ

هغه نجس طرف پر ځمکه واچاوه. او پریښوده پاک طرف پر سر باندی او حال داسی وو چې

## وَاِنْ تَحَرَّكَ لَا تَجُوْزُ

شورېدی هغه طرف نجس په ښوره ولو د پاک طرفو لمونځ یې روا دی. مراقی وائي چې مستعمل د نجاست نه دی. او که هغه مردار طرف په ښوره ولو د پاک طرف شوریدی بیا لمونځ نه دی ورسره روا. ولې چې دی حکماً حامل د نجاست دی. **فائده**: د دی مسئلی نه دا سی م فهمیږي چې لغ سر لمونځ مکروه دی. که مکروه نه وای نو خو لنگوټه بې گرسره اینبی وا



په لغ سر بې لمونځ کړي وای **سوال**: شاید د دغسی لنگوټې تړل به په سر یخ والی د سببه وي. **جواب**: چې حکم اول عام دی که گرمی وي او که یخ نو دا معلومېږي چې د غسی متنجس لنگوټه د کراهت د لمانځه دی په سر تور سر. قال

## وَفَاقِدُ مَا يُزِيْلُ بِهِ النَّجَاسَةَ يُصَلِّيْ مَعَهَا وَلَا اِعَادَةَ عَلَيْهِ

هغه سړی چې نه لري داسی شی چې نجاست د کالي څخه په زائل کړي لکه اوبه یا بل مائع لکه سرکه وغیره) لمونځ به کوي سره د هغه نجاسته او که څه هم د لمانځه نه پرده باندی که څه هم وخت باقي وي. یعنی داسی نجاست چې لمونځ ورسره نه وي روا. ولې چې تکلیف په قدر د طاقت دی. لَا یُكَلِّفُ اللّٰهُ نَفْسًا اِلَّا وُسْعَهَا،

**پوښتنه**، که د سړي قمیص مردار وي پرتوګ یې پاک وي. قمیص د وکاڼی په پوازې پرتا گه کښې دی لمونځ وکړی، او که قمیص او پرتوګ دواړه مردار وه. لکن داونړی دسمال یې پاک وو چې کافی د ستر د عورت وو. قمیص او پرتوګ دی دواړه وکاږي دسمال دی لنګ کړي لمونځ دی وکړي. او که ټول مردار وه د هغه کالي سره چې په قدر د ضرورت وي د هغه نجس کالي سره دې لمونځ وکړي او هغه نور دې نور نجس کالي دی وکاږي تقلیلًا للنجاسة بحسب الامکان، قال المصنفؒ

## وَلَا عَلٰى فَاقِدِ مَا يَسْتُرُ بِهٖ عَوْرَتَهٗ وَلَوْ حَرِيْرًا اَوْ حَشِيْشًا

## اَوْ طِيْنًا

او د اغه رنگه اعاده نشته د لمانځه پر هغه ځای چې پو ټوونکی د عورت نه لري که څه ورېښم وي او یا واښه او یا خټې وي. او لمونځ یې لغ سر کړی

**سوال**: د ورېښمنی جامی اغوستل خو نرته حرام دی نو څه رنگه به دی د ورېښمو جامو سره لمونځ کوي. **جواب**: هو لبس د ورېښمینو جامو حرام دی. او ستر د عورت فرض دی. او فرض د ستر قوي دی تر حرمت د اغوستلو د ورېښمینو جامو، او په اغوستلو کی په دغه صورت کی گناه هم نشته: لِاَنَّ مِنْ قَوَاعِدِهِمْ اَنَّ مَنِ ابْتُلِیَ بِبَلِیَّتَیْنِ

اختار اهونهما، فافهم» قَالَ المُصنفُ.

# وَاِنْ وَجَدَه وَلَوْ بِالْاِبَاحَةِ وَرُبُعُه طَاهِرٌ لَاتَصِحُّ صَلوٰتُه

اوکه بيدا کړه مُصلي جامه، که څه هم چا په اباحت ورکړي وي چي صرف تا ته لمونځ **عَارِيًا** په کښي مباح دي يعني په ملک يې نه وي ورکړي. او حال دا چې څلرمه دغې ياکه وې نوده ته په لڅه لمونځ نه دی روا. پر اصح روايت مثلاً لکه يو سړي چې اوبه وی ورسره او بل سړي په قدر د اوداسه اوبه ورکړي نوده ته تيمم نه دی روا.

**پوښتنه**: د جامي چې څلرمه يې که وی تا سی حکماً ټوله پاکه بولئ. او په لڅه لمونځ روا نه بولئ. او سره ددې چې دجامي څوروي ربع مرداري دې. او قوانون خو دادی چې اکثر ته حکم د کل دی. نو بايد دا جامه حکماً ټوله مرداره وګڼل شي او لمونځ په لغ بدن روا سی

**جَوَابُ**: ستر د عورت خو لازم دی. او حکم د نجاست ساقط دی شرعًا نو ځکه په لغ بدن لمونځ نه دی ورته روا. او د ربع حکايت د کل ځنې کيدای سي او حکم د کل لري شرعًا په ډېرو ځايو کښي لکه يو دوه مذکور ځای. بل ځای لکه څلرمه د سر خريل يا قصر د ربع دپاره دځان خلاصولو د احرام څخه د حج يا د عمري. او د مړ جنايت نسته با ندي.

مصنفؒ د وَجَدَ قيد ددی دپاره وواية که نه خپله جامه درلوده او نه چا په اباحت ورکړي وه. نو لمونځ يې په لڅه روا دی. او اعاده د لمانځه هم نه ده پر لازمه او نه ورته روا دی څنګه وَلَه د لمانځه تروخت. **مسئله**: که د فاقد الثوب سره چا وعده وکړه چې زه جامه درکوم پرده تاخير د لمانځه واجب دی، چې قضا يې و نه بيرېږي. په نيزد امام اعظمؒ او امام ابويوسفؒ او امام محمدؒ وائي که لمونځ قضا کيږي که نه پر ده انتظار لازم دی. او مصنفؒ ووئيله بالاباحة لردی سببه که څوك ودغه لغ سړي ته جامه په ملک ورکړي بيا خو په طريق اولیٰ لمونځ يې په لڅه نه دی روا.

---

اللهم اغفر لمؤلفه ولكاتبه ولجميع المؤمنين وَالمؤمنات: كتبه احقر فضل الحق حقاني





# دَ اباحت اَوْد تمليك فرق

دادی چې د اباحت په صورت کی صرف ده ته تصرف هغه قدر روادی چې اباحت کوونکي ورته اجازه ورکړی ده. يعني دا سړي مالک د نفع اخستلو دی و بس. او هغه شئ په صورت کی د اباحت دده په ملک کی نه داخليږي. او د تمليک په صورت کی دا سړي مالک د هغه شي ګرځي هر رنګه تصرف چې په کښي کوي ورته روادی. مثال د اباحت لکه يو څوك چې ميلمانه لري. او يا ميلمانه ته اولی دا ميلمانه صرف د خوړلو حق لري. او چا ته هبه نه سي کولای. ولي چې دی مالک نه دی او نه هم د مالک د خوا اجازه د هبې ورته سوي ده. او دا بيغي نا روا ده چې بې اجازي د صاحب الطعام څوك يو شی دستر خانه څخه اخلي او کور ته يې وړي. او که څوك په دی ميلمستيا کی نيت د زکوٰة وکړي. نه دئ ولي زکات تمليک غواړي. او د تمليک مثال زکوٰة دی چې يو غنی فقير ته ورکړي. نو هغه فقير اختيار لري کی پخپله په ځان خرڅ وي او کی بل چا ته هبه کوي. او کی پر بل چا خرڅوي» بحر، عن»

د ميلمنو خصوصًا د طالبانو دا عادت دی. چې څوك چې ددوئ خدمت کوي که څه هم صاحب المنزل نه وي. يوه لقمه د غوښو ورکوي. او بعض طالبان کی په مسجد کی کښني طالب د حفاظت د مسجد د پاره پري ايښي وي نو په ډوډی کی غوښي و پيچي بيله اجازی د صاحب الضيافت په جيب کی وا چوي. يا يې په دسمال کی غوټه کړي دا دواړه صورتونه نا جائز دي. «د»

اویا په ولاړی لغ پلغ په رکوع او سجده سره کوي. د هدایه شخ دا سی معلومیږی چې دا څلور قسم او دوهم قسم په فضیلت کښی سره برابر دي. عبارت د هدائې دا سی دی چې هغه څوک چې جامه یا که نه لري نو ده خوښه ده که لمونځ په ولاړی کوي که په رکوع او سجده سره کوي. او که په ناستی کوي په اشاره سره " سبب یه دا دی چې په ناسته کښې پټ والی د عورت غلیظه راځی لکن قیام او رکوع او سجده پاته سوه. او په ولاړه کښی کشف العورة که موجود دی لکن ارکان مذکوره پرځای سوه. فیمیل الی ایهما شآء " ط، ۶ د، "

قال المصنفؒ

# وَصَلوٰتُهٗ فِیْ ثَوْبٍ نَجِسِ الْکُلِّ اَحَبُّ مِنْ صَلوٰتِهٖ عُرْیَانًا

او لمونځ د سړي په هغه جامه کی چې ټوله مرداره وی ښه دی تر لمانځه کولو په لڅه سره.

**پوهسه**: چې صاحب د " درایه " والا وائی. که څوک عورت خپل پټ کړي په پوست د مردار سوی شي چې دبغ یه نه وی سوی لمونځ یه نه دی په کښی روا. او په هغه جامه کښی چې ټوله مرداره وي لمونځ روا دی. ولی چې نجاست د جلد مذکور اغلظ دی تر نجاست د ثوب، ولی چې پوست په دري واره پریولو نه پاکیږي او جامه پاکیږي.

مصنفؒ په مراقی کی دا سوال کوي چې د جامی تر دري واره پریولو خود پوست پاکیده آسانه دی چې په هوا وچ کړی او یا یه په لمروچ کړي، لکن طحطاویؒ وائی چې نفس و لمر ته غوړول او یا په هوا څړول د پوست د پاک والی د پاره کافی نه دي. بلکه دا شرط دی چې بدبوئی او فساد یه هم دفع سي. او دا سی دول کول خو کاهی پوره ورځ په بر کښی نسی، بخلاف غسل الثوب: قال المصنفؒ:

# وَلَوْ وَجَدَ مَا یَسْتُرُ بَعْضَ الْعَوْرَةِ وَجَبَ اِسْتِعْمَالُهٗ

که یو چا دونه جامه او ټکر و موندہ چې بعض عورت یه په پوټیدی. نو پر ده واجب ده چې هغه جامه به استعمالوي. یعنی تر هغه ځای چې عورت پر پټیږی هغه خودی په پټ. نو که دا ټوکړ صرف دومره وو چې د مخ خوا او د شا خوا یه پټید له. ولبس، خو هغه دی په پټ کړي. ولهذا دوه عورت غلیظه دی نسبت و نورو ځایو ته ..





قال المصنفؒ

# فَاِنْ لَمْ یَسْتُرْ بِهٖ اِلَّا اَحَدَهُمَا قِیْلَ یَسْتُرُ الدُّبُرَ

او که نه پوټیدله مګر یو د شا او یا د مخ خوا نو بعض علماء وائی چې دبره دی پر پټه کی ولی چې دبره په حال کی د رکوع او سجدی ډیره بد ه معلومیږی: قال المصنفؒ

# وَقِیْلَ یَسْتُرُ الْقُبُلَ

او بعض فقهاء وائی چې د مخ خوادی په پټه کړي. ولی چې هغه و قبلی ته مخامخ دی. او چا چې د دوهم قیل وجه دا ویلی ده" چې د کُنی غار خو په کُناتو هم پټیږی یعنی کناټی دی ټینګ سره و نیسی. دا توجیه صحیح نه ده ولی چې د مخ خوا خو بیا په ورنو پټیږی. او دا عذرنګه پټیږی چې لاسونه پر کښیږدی. او دد ې سوال جواب هم امام طحطاوی پر یوه ضعیفه خبره سره ورکړی دی فلا حاجة الی ایراده ثم ر د

قال المصنفؒ

# وَنُدِبَ صَلوٰةُ الْعَارِیْ جَالِسًا بِالْاِیْمَاءِ مَادًّا رِجْلَیْهِ

او مستحب دی لمونځ د لغ سړي په ناستی په اشاره سره دا ډول چې پښی دی د قبلی و خوا ته غځولی وي. **پوهسه**: چې دا مذهب د ذخیری والا دئ او منیة المصلی والا وائي چې دا سی به کښینی لکه په التحیات کی. یعنی نر دی پښی وغوړوی او پر کښیني دي. او ښځه دی لکه په نورو لمونځو کی تورك دی کوي. **پوهسه**: چې دا خلاف په اولویت کی دی د ذخیری پر طریقه خو مبالغه په ستر کی د عورت راځی لکن مد (کښول غوړول) د رجلینو و طرف د قبلی بی ضرورته خلاف الاولیٰ دی. او د منیة المصلی پر مذهب د مذکور خلاف الاولیٰ څخه خو خلاص سو لکن مبالغه په ستر کی را نه غله، قال المصنفؒ:

# فَاِنْ صَلّٰی قَائِمًا بِالْاِیْمَاءِ اَوْ بِالرُّکُوْعِ وَالسُّجُوْدِ صَحَّ

که لمونځ وکړي لغ سړي په ولاړی لکن په اشاره د رکوع او سجدي. او یا پر خودی رکوع او سجدی سره لمونځ یه صحیح دئ. د دی صحت وجه دا ده چې د ولاړی په لمانځه کی کرځ

هم فرض د ستر العورة پاته سُو. لکن ارکان ثلثه خو پر ځای سوه یعنی قیام او رکوع او سجده. لکن د ادلیل صرف په صورت کی د رکوع او سجدی کولو جاری کیږي. نو د دی سببه په بحر الرائق کښی وائی چې ایماء په رکوع او سجده سره په ولاړه نه ده روا. ولی چې د ایماء په صورت کی خو صرف او صرف رکن د قیام حاصل سُوا رکان ثلثه خو نه سوه حاصل. او فقهاء په صلوة المریض کی وائی که چیری مریض پر قیام یعنی ولاړه قادر وو مګر رکوع او سجده یه نه سوای کولای. نو لمونځ دی په ناستی په اشاره سره وکړی. او ولاړه د ده څخه ساقط ده نو مریض ته ولی د ولاړی د اشاره په رکوع او سجده اجازه نه ورکوي فکذا ههنا. والله اعلم بالصواب.

## وَعَوْرَةُ الرَّجُلِ مَا بَيْنَ السُّرَّةِ وَمُنْتَهَى الرُّكْبَةِ

او عورة د نر که حروی او که مرئی وی ما بین دی د نو بیا تر پایه ی پوری د زنګانه»

**پوښتنه**: چې مصنفؒ دیر ښه جامع عبارت وَوایه. ولی چې د ما بین السرة څخه دا معلومه سوله چې سُرة یعنی نُو عورت نه دئ. او د منتهی الرکبه څخه دا وفهمیده چې زنګون عورت دئ او په حدیث شریف کی هم راغلی دي چې. اَلرکبةُ مِنَ العورةِ، او دا هم ظاهر روایت دئ.

**پوښتنه**: چې عورت په لغت کی هغه شی ته وائی چې ښکاره کول یه بد معلومیږی. او په شریعت کښی هغه ځای ته بدن وائی چې پټول یه فرض وي. لکه مصنفؒ چې ونیو په نرکی چې ورته عبارت د حدیث نبویؐ هم دئ. **پوښتنه**: مصنفؒ لفظ د رجل ووایه رجل خو په لغت او شرع کی هغه چا ته وائی چې مرانی وهلی وی نو د نا بالغ د پاره عورت نسته که څرنګه! **جواب**: په سراج کی وائی چې کشنئ چې سیخی کشنئ وی هغه لره خو عورت نشته او مسه کول یا کتل د ښا یعنی کنا ټو او د مخ دَخوا یعنی ذکر ته روا دئ. ولی چې په بعض فتاواو کی راغلی چې آنحضرت صلی الله علیه وسلم په دیر کښنی والی کی د امام حسنؓ او امام حسینؓ ذکر بی کښاوه او دوئ به خندله» ط،

**مسئله**: کشنی چې د لز اشتها وحالت ته ور سیږی بیا چا ته مسه کول یا کتل د کناټو یا د دُبری یا د ذکر نه دی روا په علت د شهوت نه په سبب د تکلیف شرعي. فتامل فی الفرق.





## مَسَائِلُ کَشْفِ الْعَوْرَة علی ما نقله البحر عن الظهیریة

**پوښتنه**: چې حکم د عورت په زنګانه کی سپک دئ تر ورانه نو بناءً علیٰ هذا که سړي یو بل څوک ولیدی چې زنګنونه یه لغ کړی وو. نو دی منع کړی په نرمی سره یعنی ورته وِدِ وائی چې دا زنګون دی پټ که چې عورت دئ. او که هغه د ده خبره نه ومنله نو نور نزاع دی نه ور سره کوي. او که د یوه سړي ورون لغ وو نو منع دی کړي په سختو الفاظو مثلاً. نه شرمیږي چې ورون دی لغ کړئ دئ. او که هغه د ده خبره و نه منله وهی دی نه. او که د چا کنه لخته وه اول دی په سختو الفاظو انکار پر وکړی او که هغه د ده و خبری ته غوږ و نه نیوی اَدَب دی په ضرب وهلو ورکړی کی طاقت وو، لیکن نور فساد نه څنی پیښیدی. او که چا ولیدی چې یو سړي ما بین د » نو، او د سیو څخی لغ کړي وو. نو اول خو دی په نرمی ورته ووائی چې دا ځای دی پټ کړه. او که هغه و نه منله نو بحث دی ور سره وکړی. او که هغه پر دغه کشف العورة ټینګ سُو. ادب دی د وهلو ور کوي. که څه هم پر قادر وی ولی چې د دی په عورت والی کی اختلاف سته. چې امام فضلیؒ وائی چې دغه ځای عورت نه دئ. ولی چې مزدور کاره خلګ د دغه ځای په لڅولو سره عادت دي. که څه هم قول د فضلی ضعیف دئ. ولی تعامُل د خلګو پر ناروا شی دلیل د جواز نه دی. مثلاً په اکثره اسلامی نړۍ کښی سوا د افغانستان په اومنی حالت کی چې امارت اسلامی د طالبانو پر ۹۵ فی ۱۰۰ مسلط دي. د ږیری خرَیل رواج دی نو په دی رواج سره خو د ږیری خرَیل نه روا کیږي.

## وَتَزِيْدُ عَلَيْهِ الْأَمَةُ الْبَطْنَ وَالظَّهْرَ

او زیاتوی په پټولو کی مینځه نس خپل او شا. یعنی د نر عورت خو د مینځی هم دی. لکن د مینځی د ادوه ځایه پر زیات دی. په عورت والی کښی. **پوښتنه**: چې پر مذهب د امام اعظمؒ مینځه عامه ده که صرف مینځه وي. یعنی د خدمت د پاره وي یا د څرڅولو د پاره وي. یا ام الولد وي یعنی د بادار څخه لنګه سوی وي. یا مکاتبه وي یعنی چې د بادار ورته وئیلی وي چې

دونه روپۍ را کړه نو ته آزاده یې. او یا مُستعا ته وی یعنی چې د دوو کسانو مینځه سرم شریکه وی هغه یو خپله حصه ازاده کړي. او دونه روپۍ نه لري چې د هغه بل شریك حصه هم آزاده کړي. او هغه بل شریك د مینځې نه دا وغواړي چې ته کوشش وکړه یا په مزدوري یا په فقر زما د حصې پیسې را برابرې کړه.

**پوښتنه**: چې تخصیص د قول د امام اعظمؒ په "مُعتقة البعض" کې دی. چې امام په مینځه بولي. د پیسو راکولو تر ختم پورې او یا دان وائي دا حرهٔ ده. لکن پوره وړې نو بیا د دوی په نیز عورت د دوی عورت د حُرې ښځې دی. قَالَ المُصنفؒ.

## وَجَمِيعُ بَدَنِ الحُرَّةِ عَوْرَةٌ اِلَّا وَجْهَهَا وَكَفَّيْهَا وَقَدَمَيْهَا

او ټول بدن د آزادې حرې ښځې عورت دی یعنی پټول یې فرض دي. مګر مخ د دې او ورغوی د دې. او پښې د دې چې دا دری عورت نه دي. د دې د غه اعضا چې عورت نه ګرزول کیږي په سبب د ضرورت"

**مسئله**: په بحرالرائق کښې وائي چې د نه عورت والی د دغو اعضاوو معنا دانه ده چې نرانو ته کتل ورته روا دي. بلکه جواز د کتلو مشروط دی په دې سره چې بیره د شهوت به هم نه وي. نو ځکه کتل نه دی روا او مخ نه د ځوانې یا د ښائسته هلک که څه هم عورت نه دی هلته چې کتونکی شک وي په شهوت کې. کذا فی شرح المنیه. قال مشائخنا چې په اوس زمانه کې چې فتنې ډیرې سوی هم د ځوانو ښځو د خوا. او هم د نرو د خوا. نو ځوانه ښځه منع ده د دې څخه چې مخ خپل د نرانو په مابین کې ښکاره کوي لکه مکتبیان، او اسکولیانی ځوانانې ښائسته ښځې چې کوي.

**پوښتنه**: چې بازوه د حُرې ښځې عورت دی په نیزد امام اعظمؒ، مراقی وائي چې دا روایت ډیر صحیح دی. او په بل روایت کې د امام اعظمؒ دا سې راغلی چې نه دی عورت دا روایت د منتقی واختاره عبد الله البلخیؒ ط، م، والی روایة البلخیؒ ذهب صاحب الاختیار" ولې چې حاجت سته. د کشف د هغه په وقت د خدمت د کور.





والفتوى علىٰ ما نقله الکمالؒ عن بعض المشائخ": چې ذراع عورت دی په لمانځه کې لعدم الضرورة الیٰ کشفه فی الصلوٰة ولیس بعورة خارج الصلوٰة للضرورة. او زاهدیؒ وائي چې کشف مانع د جواز د لمانځه نه دی لکن کشف یې مکروه دی. **پوښتنه**: چې مصنفؒ په مراقی کې وائي چې د ښود حُرې ظاهر او باطن دواړه عورت نه دی لعموم الضرورة

**مسئله**: وېښتان د حُرې ښځې عورت دی حتیٰ هغه وېښتان چې لاندې ځړېږي په اصح روایت کښې. وعلیه الفتوى. وعلیٰ هذا که څه هم دو ویښتا نو د یکه لځاوی لمونځ یې نه دی صحیح **مسئله**: نر ته نه دی روا کتل و هغه وېښتانو ته د ښځې چې د دی څخه پرې سوی وي. او بعض فقهاءؒ وائي چې مقطوع وېښتانو ته د ښځې کتل روا دی لکه ویښو یا نارو ته د دې. **مسئله**: په ډیرو کتابو کښې د فقهې شریفې وائي چې آواز د ښځې عورت دی لکه په باب الاذان کښې چې تیره سوه. د دې عورت والی بعض نا پوه کسان دا سې معنا کوي چې د بیګانه ښځې سره نفس خبرې نه دي روا. لکن دا معنا صحیح نه ده. امام مقدسیؒ د امام قرطبیؒ څخه نقل کوي. او دی وائي چې مونږ روا بولو خبرې د بیګانه ښځو سره او مجلس ورسره په نیزد ضرورت. لکن رفع د صوت آواز د دی روا نه بولو. او بدلې غزلې د دې روا نه بولو. ولې په دې سره په حرکت راځي شهوت د نرو"

**مسئله**: په او سنی وخت کښې یوه طائفه سته چې مسلمان یې بولي. نر یې شوقیان بولي هغه هم غزلې وائي. او ښځې یې هم بدلې وائي. حتیٰ چې بعض په ظاهره صوفیان خلک چې د زوی یا د ور ور یې واده وي. نو د نرو میلمنو د پاره شوقیان راولي چې په شپه تیرولو سره تخمینًا درې زره کالدارې پاکستانی ورکوي. او د ښځو د پاره ښځې د دغه قوم راولي چې تر سحاره پورې غزلې او بدلې وائي. او د ګویا په ذریعه ټوله کلی او کوڅې ته د دغو ښځو آواز ورسیږي او هغه کسان چې ظاهري صوفي ګرت نه لري هغه خو د دغو نرو او ښځو را وستل لازم بولي. محترمو دا سخته ګناه ده او ټول خلک چې د دغو ښځو غزلې او بدلې اوري ګناه یې دوا ده والا په غاړه ده.

**تنبیه**: چې اذان. سره د دې چې ذکر دی و ښځې ته نا روا دی. او تلبیه و یل په

بلند آواز همو ښځې ته ناروا ده. نو غږلې او بدلې چې سراسر فسق دی څرنګه په رفع الصوت وښځو ته روا وي. یا بې نرو ته او د ید ه روا وي: چو کفر از کعبه برخیزد کجا ماند مسلمانی:

**پوښتنه:** چې د ښځې مخ لا سونه او پښې عورت نه دي. نو ولې امارت اسلامي په افغانستان کې وځوانو ښځو ته یا مراهقو انجونو ته اجازه نه ده کړې په ښوونځیو کښې نه ور کوي. او سره د دې چې دغه ښځې چې مکتبو ته ځي نور ځایونه چې عورت دي نه ښکاره کوي. او بله خبره داده چې ولې امارت اسلامي د پوهنځیو ور ښځو ور ته بندیز نه لګوي.

**جواب:** تاد مخه وا ورېدل چې زمونږ مشا ځو په او سنۍ زمانه کې چې فتنې ډیرې سوې آه نو د غه ښځې چې ښوونځیو ته چې په کور کښې د سروینستان غوړ کړي او رنګ یې کې. او پر مخ بانډې سپین وا سلین هم وموږي. نو که دوی په لغ مخه مکتب ته روانې سي نو خوف د فتنې د شهوت خو پرېږده عیناً شهوت په نرو کې هم پیدا کیږي. او په دوي کښې هم چې ښه ځوانان بنا شسته نرووینې مونږ لیدلې دي چې د غه ښځې چې په پاکستان کې ښوونځیو ته روانې وي. او نران پر ور و غږکې ناست وي ښه تر ډیره پر دغو ښځو پسې ګوري. او په اسکولو کې دغه ښځې او هلکان یو ځای زده کړه کوي. او بعض اوقات عشق بازي هم په مابین کښې د دوی پیدا سي. البته ښځې د تعلم حق لري هغه داچې ولې چې ښوونځې د دوی به د نرو څخه جلا وي. او ښځې به په محفوظ ښې. سروین کښې را ټولوي او د ښوونځې په دروازه کې بې کښته کوي د تعلیم ور کونکو سره. لکن امارت اسلامي افغانستان په موجوده وخت کښې چې د ډیرو ستونځو سره مخامخ دي. او دنیا والو پر دوی افغانستان لیوه العنه کړې دی او قسم قسم بندیزونه یې پر لګولي دي او دخلک سالی له کبله هم د ډیرو ستونځو سره مخامخ دی» نو دونه توان او طاقت نه لري چې انجونو او ښځو د پاره دی فوق الذکر تعلیم او تعلم او د تربیې د پاره د ښوونځیو د پاره ودانۍ وجوړې او ښځو ته خلاصي کړي.

او پا ته هغه **مسئله** چې د پوهنتونو پر ښځو باندې ولې بندیز نه لګوي د هغې مسئلې جواب دادی چې د پوهنتونو ښځې په سپیرو پښو په تورو مخانو په خیرنو کالو کښې په اوښانو





پسې روانې وي. نو هغه ښځې که په سوو په لغ لغ مخ په د ښتو کې ګرځي نران ورته ګوري لاندې. شهوت خو پرېږده» داوونظر د رولیش چې و حضور ته د سوال کوونکو پیش سو.

## د بین المللي اداري څخه شکایت

دا اداره د دې د پاره قائمه سوې ده چې په ټوله نړۍ کې د ظلم، او بربریت، او کشت خون، او د لوږې او غریبي او د بدرۍ مخ ونیسي. دا منشور د دې اداري دی. او س په دې ځای کې **پوښتنه زمونږ دا ده:** چې یو غریب خود مختاره مستقل مملکت چې افغانستان دی چې تخمیناً ۲۲ کاله د روسانو د یرغل را اپیې. په لکو شهیدان یې ور کړه. او په لکو جریحه ټکې یې د روسانو بې صرفي بمباري د لاسه وجاړې سوي. او په لکو ښځې یې کونډې یانې سوي. او په لکو تنکي نر او جونې یې بې پلاره او بې سرپرسته سوې. او تخمیناً ټوله کاریزونه او ولې یې ورانې سوې او په زرو بلکه په لکو افغانان یې پردې وطنو کښې د مهاجرت په ذلیل ژوند تیره ولو سره مبتلا سوه. وهکذا نورې او نورې خرابۍ چې دنیا وال ټوله پر خبر دي. دا خو کالمړ مخه چې خدای جل سلطانه دافغانستان د خلګو عجز او نیاز او غریبي د لیرې کولو اراده وکړه. نو دیوې ډیرې غریبي طبقې چې د طالبانو په نامه یادیدل. په زړو کښې دا مفکوره پیدا کړه. چې د ګران وطن افغانستان څخه دا بې امنۍ او بې قراري چې نهایته درجې ته رسیدلې وه. لیرې کړي. هغه وو چې دغه طالبان د حجرو او مدرسو څخه راووتل او دا پاڅون او تحریک یې شروع کړې.

په ابتداء کښې د تحریک به خلګو او جهانیانو پوري خندل چې ته دا غریب، بې وسه او بې یار او مددګاره ډله وګوره چې دوي د افغانستان د امنیت او ستلو قصد کړي دی. لکن دا یې نه وه او ریدلی» بر فلک بر تر بود اسرار او: ششیاً یشد ششیاً یشد کار او: خودی تحریک په ډیرې چټکۍ سره د خدای جل وعلا په توفیق سره پر مخ تګ شروع کړې حتی چې د زړو قربانۍ په ور کولو سره هم دا او س پر ۹۵ فی ۱۰۰ ٪ قبه د افغانستان قابض دی او عام او تام

امنیت یه په هغوځایو کښې چې ددوی تر ولکه لاندې راغلي قائم کړي. نو شکایت دادی چې ولې بین الملل دوی په رسمیت نه پیژنی. او د افغانستان چوکی ولې دوی ته نه سپاري. او د افغانستان په یوه کُنج کي چې ۵ فی صده غرَني سیمې په ولکه کی لري دهغو مشر په رسمیت لیعنې رئیس جمهور د افغانستان پیژني. او د افغانستان رسمي چوکي یې هغه ته سپارلې ده. نو دا یې کار ددوی د منشور څخه خلاف نه دی! او بین الملل په یوه بهانه په اشاره دامریکا د خپل منشور خلاف دغه کار روانه کوي. برین عقل ودانش بباید گریست. بلکه بالعکس په نام د صلح راوستلو د افغانستان اورلا تازه کوي. گویا ددوی د صلحې او به نه دی چې پر افغانستان یه پاشي. بلکه په حقیقت کی پټرول دي.

## دَاسلامي مملکتونځه اِسلامي گیله

د طالبانو تحریک چې په افغانستان کښې د پای تخت کابل پرنیولو برَیالی شو. نو داسلامي حکومتونځه سعودی عربستان، عمارات متحده عربیه، او پاکستان ددوی حکومت په رسمیّت و پیژندی. او مادی او معنوی مرستی یه ورسره شروع کړي. نور اسلامي حکومتونو سره ددی چې اَمارتِ اِسلاميُ اَفغانِستَانُ په موجوده وخت کی پر ۹۵ فی صد باندې قابض دی او د شریعت غرّا سرَه موافق حکمرانی کوي. بیَا هم ددی حکومَت د رسمیت پیژندلو څخه پته خوله ناست دي. څوك دامریکا په مراعات او څوك د روس په مراعات، نو مونږ دا گیله لرو چې اخیر تاسې خو هم پوهیږی چې دَطالبانو دَتحریك امارت اسلامی حکومت دی. او سیکولر حکومت نه دیُ. بلکه حتی المقدور د شریعت نبویؐ او د قرآن عظیم الشان پر پا یو ولاړ حکومَت دیُ نو څه عذرتاسِی لري چې داحکومَت په رسمیت نه پیژنی. آیا تاسی هم عذر هغه دغربیانو دیُ.

## دَرُوس د زړه په څوك پُیره وبَاسِیُ

، دنیا والو ته دا معلومه ده چې د طالبانو اسلامی حکومَت په وار وار کړا تو مترّا تو دا اعلانونه په خبری منابعو کښی خپاره کړي دی چې زمونږ حکومَت د هیڅ حکومت سرَه که گاونډی او که غیرگاونډی وي.





هیڅ داسی عداوت نه لرو. چې هغه دی سَبب دحملې زمونږ وگرځي پر هغو باندی. او نه مونږ د هیڅ حکومت په داخلي چارو کښې لاس وهو. او بین المللی قوانینو ته چې د اسلام د حکومته وتلي نه وي وفاداره یو. لکن سرَه ددی د روسانو ناري دی چې د طالبانو حکومت و آسیا ته لوی خطر دی» بلکه ټولې نړۍ ته خطر دیُ.

د روسانو د ناړو» دری سببه کیدای سی. اول دا چې چونکه افغانانو څو کاله مخکښی روس ته شکست ورکړی. او دَخپل هیواده څخه ئې وشړلی. او په نتیجه کی هغه ټوله اسلامی مملکونه چې روس ۷۰ کاله تر خپل لاندې کړي وَه. دازادی نعرې یه پورته کړي. او روس هم مجبور سوهٔ ټولو ازادی منظوره کړه. نو دا اوس په بهانه دخطر د حکومَت امارت اسلامی د طالبانو دی دَغه اسلامی حکومتونه بیره وی. او فوجونه په کښی ځای پر ځای کوی په ظاهره خووایُ ... چې زه تاسی د طالبانو دخطر څخه ساتم او په حَقیقت کښی غواړي چې دَغه حکومتونه بیرته تر خپلو ولکي لاندی راولی. آواز سره په» اتحاد شوروی جوړکړیُ. دوهم چونکه روسانو پخپل تمام قدرت یعنی تر یو لك بالا سور فوج په را وستلو سرَه. چې توغندی، جنگی طیَاری، توپ برداره طیاری هم ورسره وی او قسم قسم خرابوونکی هم ورسره وَه او راکټان، او نور ټوله جنگی آلات هَم ورسره وه پر افغانستان یه حمله وکړه. او هغه وخت کی ترنیمی دیر د افغانستان خلگ یعنی خلقیان او پرچمیان ددوی طرفداره وه.

افغانستان یه ترخپلی فنفی لا ندی راوستیُ. د روس دا خیال وو چې په دوهم گام به پاکستان قبضه کوم. او تر دریابه به ځان رسوم او د خپل لوی غلیم امریکا سرَه به جنگ کوم. لکن سرَه دَ هغه قدرت کامل د روس یو څو محدود کسان په افغانستان کی باشجاعته تو ځان تیرید ونکی خدای پاك په مقابَل کی دیَوه ... لك سرَه فوج چې مُجهز په ټولو تجهیز سرَه هم وو. ودریدَه. اول دجَهاد او جنگ نقشه داوه چې په بوتلانو بی ددوی ټانگونه ویشتل او عسکر ددوی بی وَژل. او بیا په نیرائی تو بنگچو بی ددوی سرَه جنگ کاوَه. تو رستی عملیات یه هَم شروع کړه رفته رفته دغه محدوده ډله روز افزون

مخ پر وړاندې روان وو، اود اسلامي او غیر اسلامي حکومتو دخوا څخه ودوی ته پلټنې روان
اسلحه حتی سټنګر توغندی »په لاس ورکړ. پس لدغو کاله خونریزی یو. اود رواني
د بې زړه سوی حملو او بمبارۍ روسانو د خپلې کامیابي امید د لاسه ورکړي اوهم
په ورځ په ورځ مخ پر کښته کیدو شو. هغوو په ډیر شرم او حیا ګران
وطن (افغانستا) نه پرېښو. نود روسانو هغه بیره په زړه کې ده چې په هغو وخت
کې تر نیمایي بالا د افغانستان زمونږ طرف دار وه. لاهم مونږ شکست وخوړ
او تر دنیا والو پورې موسترګی کښته سوې.
اوس چې ټول افغانان سره یو متحد دي نو که د جنګ اسلامي بیرغ پورته کړي زمونږ
به څه حال وي، دا ډیر: روسانو چې داچټک رفتارد طالبانو ولیدی په افغانستان
کې نو دوی ته وهم پیدا شو چې که چیری تر آسیا باندی حمله وکړي. نو به هم په
ورته تیز رفتاری سره پر ماسکو راچاپیره سي.

## خبر تیا

روسان ګاهي ګاهي داسي اعلانونه کوي چې مونږ پرنظامي ځایو د افغانستان حمله وکړو. روسان دې پوه سي. چې په داسي پټکو پیش رڅو افغان قوم نه بیریږی. افغان قوم بې یار و مدد ګاره نه دي، که داحمل فرضًا دوی وکړي ودوی ته به په لوی ضرر تمامه سي. اوشاید جنګ جهانی سوم به څنډی جوړ سي. او یا به روسانو بیخ کنی وسی.

## امریکا دی هم په ګریوان کی وګوری

او هغه وخت دې ور په یاد کړي چې څه وخت چې شوروي اتحاد پرخپل ځای وو او امریکا په ټوله نړۍ کې د هیڅ چا
دونه نه بیریدی لکه د شوروی څخه، او څه وخت چې شورویانو پر افغانستان یرغل وکړ
او تر یو لک بالا فوجونه یه ورته ور او ستل او په سوو توپ داره هیلی کا فترونه یه
ور ته را واستول. او غټی غټی وسلې او بمان یه ورا وچلول. او هوائي میدانونه
یه جوړکړ. په دی وخت پر امریکا باندی بحرانی حالت جاری سو او پوه سو چې شوروی





اتحاد په دو هم ګام کی تو دو او بو ته ور رسیدی، او د امریکا بقاء په خطر کی ده
نو یه د افغانانو په غاړه کی لاس ور واچاوه، او دوی ته ئې اسلحه رامخ کړه او مجاهدینو
او مهاجرینو ته یه د هر قسم نعمتونه یه رامخ کړه.
حتی په اول و هلت کښې د هجرت د هر کور لوی او کښتی نر و او بنځو ته فی نفر
۵۰ کالداری پاکستانی یه ورکولې، او بنی بنی خیمې او شړی او کمبلې وغیره یه
ورکولی، په دی دول امریکایانو د افغانستان خلک د شوروی ویانو ومخ ته سپر
وکرځول، او ددوی وطن افغانستان یه د روسانو د بمبارۍ ځای او نښان
وکرځاوه. خو بالآخر امریکا په دی پالیسی کښې کامیاب سو او شورویانو
افغانستان پرېښو. بلکه نور هم د امریکا زړه په روسانو خنک سو، چې شوروی
اتحاد د ړی وړی سو. او امریکایان بیغمه سوه. بلکه پر همت د افغانانو ایستل
د روسانو او سره پاشل د اتحاد شوروی امریکایانو ته د ټولی نړۍ مشرتوب
او حاکمیت ور په برخه کړی، نو اوس چې د طالبانو امارات اسلامیه حکومت
د پنځو کلو را یسته چې پر ۹۵ فی صد مسلط دی او تام امنیت چې د ملک د پاره
لوی نعمت دی قائم دی.
ولی امریکا د دولت په رسمیت نه پیژنی او ولی د افغانستان د خلکو دو جاړه
وطن پر آبادی دو کی لوی ونډه نه اخلي. او ولی د مظلوم ملت د افغانستان
پر ستنځو د شفقت څخه کار نه اخلي،
کومک خو پر ین ده، ولی پر مظلوم او رنځیدلو خلکو د افغانستان قسم قسم
سیاسی بندیزونه لګوی او ولی د افغانستان خلک یه په دی بندیزو
سری د لوی کړاو و سره مخامخ کړی دی، کاهي اسامه بن لادن بهانه کړی
او ګاهی د بنځو حقوق بهانه کړی او ګاهی نه شی توکی بهانه کړی
او په دی ولی عمل نه کوی، نو اختر را نبایدانداخت، او ولی ده ور وس
سره چې پخواد امریکا لوی دښمن هم نوا او هم صدا سو د افغانستان

په باره کښې ،، دیگر چه بگویم و به که بگویم ،، خدای پاک یار و مددگار حکومت امارات اسلامیه افغانستان باد ،،

**تنبیه ؛** درویش وائي که څه هم د طالبانو د تحریک غړي زما یا شاګردان دي یا د شاګردانو شاګردان دي وَهَلُمَّ جرًا لکن دا ګمان دې څوک نه کوي چې د غیر فوق الذکر شکایتونو یا ګلې یا تنقیدونو چې ما وکړه زه د تحریک د خواپه د غوبیانا توګمارل سوی وم بلکه :

دا درویش د خپل وجدان عمدید ه قصې وې تحریک والا به هلته په خبري چې دا کتاب چاپ سي ،، لو امکان لري چې درویش بعض اظهارات به د طالبانو د سیاست سره توفیر ولري ،،

دیناوال دي د هغه بیان پره پر طالبانو نه اچوي ،، بلکه درویش فقط و فقط خپل شخصي نظر او د زړه جوش د قلم په نوکه تحریر کړې ،،

مطلب مې دادی چه درویش که څه هم په باطن کې د طالبانو د تحریک بلاعوض و غرض وفادار او ټینګ ملاتړلی یم ،،

لکن په ظاهره د تحریک طالبان په د غه حیثیت ما نه پیژني ولې چه په هیڅ اجتماع عمومي کښې د دوی درویش ته دعوت د ګډون نه دی ورکړی سوی او شاید د دی سبب به هم داوي چه طالبان خبر دي چې درویش سپین ږیری سال خوږ ده ده ۸۵ کلو سړې ولې تکلیف ورکوو ؟

او درویش که څه هم في الحال په کوئټه پاکستان کښې او سیږم لکن چونکه زما د ږی زامن په قندهار کې خپلې خوارې کاږي لو زه هم په کال یوار یا دوه واره قندهار ته ځم او هوری خپل لمسیان او زامن وینم او ګاهی نا ورځې ګاهې بالا یا کم په قندهار کښې عقیدتمندان او لویږ شناختګان دوستانو سره زما په کور کښې ملاقاتونه وکړم ،، لکن هیڅ رسمي حکومتي دائرې ته تر اوسه نیم ورغلی او شاید د دی سبب به هم داوي ، چې دوی په خپلو حکومتي رسمي



کارو کښې مصروف دي. نو ولې وختونه ورضائع کوم. نو شپې پوره کړم بیرته کوټې ته راسم. درولیش قبل شروع تحریك الطلبة پخپل جامع مسجد کښې په درس مستغرق درس اخته وو چې روزانه به د ۴۰۰ څلور سوو طالبانو په شاوخوا کښې درزده کړې د پاره راتله. چې تحریك شروع سو. درولیش تعلیمي اداره بنده کړه اِلَی یَومِنَا هٰذا.

**پوښتنه:** دا د ثواب کار چې درس وو او تا بند کړي د هغه به عوض کښې بل د ثواب کار هم کوې.

**جواب:** هُوْ. کوم یه د قلم د لارې د طالبانو او د قوم خدمت کوم. بر ګرانو کتابو حواشي» او بعض رسالې په مهمو مسئلو کښې، او بعض عربي ضروري کتابونه د عقائدو، او د فقه پښتوته را اړول. وَمَا تَوْفِيْقِي اِلَّا بِاللهِ عَلَيْهِ تَوَكَّلْتُ وَاِلَيْهِ اُنِيْبُ،

یقول الفقیر بعد الجمل المعترضة نَرْجِعُ اِلٰى شرح الكتاب» قَالَ المُصنفُ.

---

# وَكَشْفُ رُبْعِ عُضْوٍ مِنْ اَعْضَاءِ العَوْرَةِ يَمْنَعُ صِحَّةِ الصَّلٰوةِ

او لڅ والی د څلورمې حصې د یوه اندامه د اندامو څخه د عورت منع کوي صحیح والی د لمانځه. مصنفؒ په مُراقي کې وَائي که هغه عضوه که عورت غلیظه وي او که خفیفه وي که د نروي او که د ښځې. په شرط د دی چې پټوونکې پاک کالې موجود وي. او تر ربع کم څو مانع د صحت نه دی که څه هم کشف یه مکروه دی.

**پوښتنه:** چې د الڅ والی د ربع هلته مانع د صحت د لمانځه دئ. چې اندازه د اداء د یوه رکن وي که څه هم کشنی رکن وي. لکه رکوع مثلاً په ولاړې کې چې طویل رکن دی ربع د عورت په قدر د رکوع لڅه سوه لمونځ یې نه دی صحیح. او دا مذهب دی د امام ابو یوسفؒ» او په نیز د امام محمدؒ حقیقةً اداء د رکن معتبر دی مثلاً کې په رکوع کښې ربع د عورت لڅ سوه ټوله رکوع ته اعتبار دئ» او که په ولاړه کښې ربعه د عورت لڅ سوه ټولې ولاړې ته اعتبار دئ. والفتوٰی عَلٰی قول ابي یوسفؒ للاحتیاط» ط» او منیة المُصلي وَائي چې اداء د رکن سره د سُنتو شرط دی، او شارح المنیة وَائي چې هغه اندازه د درو تسبیحاتو دئ.

اوبعض فقهاءٔ وائي چې د احکم هلته دی چې کشف دعورت بیله اختیاره دمُصلي وي اوکه چا ربع دعورت په قصد لخته کړه لمونځ یې فی الحال فاسِدسُو یعنی اندانه درکن یا حقیقتِ رکن نه غواړي بـلااخلافِ.
فهستانی عن المنیة وعزاه فی البحرالی القنیة. وجری علیه صاحِبُ الدر، لکن په بحر رائق کی وایُ چې دا قید غریب دئ. اومذهب اطلاق دی. یعنی چې قید د بلاقصدٍ غریب دی. اوصحیح مطلق لخ والی دی د ربع دهغه عضو دی چې عورت وی که په اختیار که بې اختیاره وي. **پـُوه سـَه** : چې امام طحطاویؒ په دې ځای کی دکشف العورة یو عبارت وئیلی دی چې امکان لري چې بعض اذهان قاصِر دی دهغه په مطلب نه وپوهیږی. نو ددی سبـبه دهغه عبارت الفاظ اومطلب بیانوم: قال واعلم ان الانکشاف الکثیر فی الزمن القلیل لایمنع» مراد د انکشاف کثیر نه هغه دئ چې په قدر د ربع دعورت وي. اومراد د زمن قلیل نه هغه زمانه دَه چې په قدر د اداء درکن نه وي مثلاً دسړي د ربع العورة لخ سو اوبـا الفوره یـه پټ کړي: قَوْلُهُ لَايَمْنَعُ . یعنی نه منع کوی صحت دلمانځه. قَالَ کَا الْقلیل فی الکثیر» لکه چې نه منع کوی صحت دلمانځه لږ لخ والی یعنی چې تر ربع کموی پـه ډېرزمانه کی مثلاً دسړي پـه لمانځه کی یوجزء وی ځای تر ربع دعورت کم لخ سونو ډیره زمانه لخ وو یعنی تراداء درکن بالا لمونځ یې صحیح دئ.
قَالَ. وَیمنع الکثیرُ فی الکثیر اومانع دَصحت دَلمانځه دی انکشافِ کثیر چې ربع قدروی په ډیره زمانه کښې یعنی تراداء درکن بالا. **پـُوه سـَه** : چې اعتبار دَ ځلرمی د عورت مذهب دی دامام اعظمؒ اوامام محمّدؒ اوابویوسفؒ وائي چې اعتبار اکثر لره دعضوی ډی یعنی کی اکثر دعضو عورت لخ وُو. لمونځ یې نه دی رَوا. اوکی تر اکثر دعضو العورة کم لخ وو که څه هم تر ربع العورة بالاوی لمونځ یـه روادئ. والاحتیاطُ فی قولهما کذا فی المنتفی ودر»

## دعورت تحقیق

**پـُوهسَه** ، چې زنګون سره دوَرانه یوه عضو دَه فی الاصَح. اوبعض عُلماء وائې چې ركبته





جلاعضوه ده اوركبه جلا. اوکبتنه بند دلاس د بنځی تبع دبازودی. یعنی دا دوه عضو واحد دَئ. اوځنګل دَبنځی تبع دمړوند ده یعنی ځما عضُو واحِدٌ، او بجلکه د بنځی تبع دَپنډی دَه.
اوغوږونه د بنځی دسر نه جلاعضو مستقل دئ. اوسَر یـه جَلا عضوه ده دَبنځی» اوه بنځی تی چې کښته ځړېدلی وي لکه دمیرو وَالا بنځی عضو مستقل دی. اوځګر یې جلاعضوه دَه. اوکی تی جګ ولاړ وو لکه دَپیغلی جَنلی هغه دځګر تابع دی یعنی دواړه یوه عضوه ده. اوذکر د نر جَلا عضوه ده. اوخوټې دنرمستقله عضوه ده. پـه صحیح روایت کی اوبعض فقهاء وَائې چې غنړ اوخوټې مجموع یواندام دَئ. اومابین د نو تر سـپوږنې پوری یوعضو کامل دی شا وخوا. اوهرکناټی جلاعضوه دَه. اوکُـنه جلاعضوه دَه فی الصحیح. اوبعض علماء وائي چې مجموع یوه عضوه دَه» کذافی المَراقی مع زیادةٍ» در» قَـالَ المُصَنفُ:

---

# وَلَوْتَفَرَّقَ الْاِنْکِشَافُ عَلٰی اَعْضَاءٍ مِّنَ الْعَوْرَةِ وَکَانَ

که چیری جَلا جَلا وو لخ والی پر اندامو دعورت مثلاً یو غیر حصّه دَفرج دبنځی لخه وَه. اویوڅه

---

# جُمْلَتُهَا تَفَرَّقَ یَبْلُغُ رُبُعَ اَصْغَرِ الْاَعْضَاءِ الْمُنْکَشِفَةِ مَنَعَ وَاِلَّا فَلَا

یې شا لخه وَه. اویوڅه یې ورون لخ وو اویوڅه یـه پونډی لخه وَه. اوداټوله لخ ځایونه چې جمله یې کړي تر ځلرمی دهغه کشنی داعضاء منکشفه پوری رسیدی منع کوی صحتِ دَلمانځه مثلاً پـه مثال مذکورکی دا مجموع لخ ځایونه څوځلرمی حصی ده فَرج رسیږی اوددغې بنځی لمونځ نه دی صحیح، اوکه ځلرمی حصی دکشنی اندام تـه رسیدلی مانع د لمانځه نه دَئ یعنی لمونځ ددغې بنځی روادئ. مثلاً یودرهم قدر یې یوکناټي لخ وو اویودرهم قدر یې بَل کناټي لخ وو. اویودرهم قدر یې شا لخه وه چې ددی ټولونه دکناټي یا دملا ځلرمه نه جوړیږی لمونځ یـه روادئ. قـال المصنف ...

---

وَقَدکتَبَه بقِلمِهٖ احقرفضل الحق حقانی مدرّس بجامعة تجوید القرآن کوئٹه

## وَمَنْ عَجَزَ عَنْ اِسْتِقْبَالِ الْقِبْلَةِ لِمَرَضٍ اَوْعَجَزَ عَنِ النُّزُوْلِ

کہ څوک عاجزه سو د مخامخ کیدو څخه د قبلې شریفې یعنې بېچیل قدرت سره په سبب ناجوړې

## عَنْ دَابَّتِهٖ اَوْخَافَ عَدُوًّا فَقِبْلَتُهٗ جِهَةُ قُدْرَتِهٖ وَاَمْنِهٖ

اویا عاجزه سو د راکښته کیدو څخه د هغې دابې چې دی پر سپور وُو یعنې بېچیله اویا راکښته کیدای سوای. لکن دابه یه سرکښه وه اویا دی سپین ږیری وو چې بېچیله بیا نه سوای سپری دای بیله کومکی. اویا د دښمنه څخه بیریدی. که هغه دښمن انسان وی اوکه درنده وی. او بیره یه پرځان وه یا پر دابه وه. یا پرمال وه. اویا پرېوا امانت شوې د ده سره وُو. اویا دی تښتیدی د دښمن څخه سپور. پس قبله د هغه سړي هغه طرف دی چې دی قدرت پر لري. داخو په ماسوا کی د خائف دا جهت دئ. او په خائف کی هغه طرف دی چې دی په هغه خوامخ گرځولو کښې په امن وي. د دښمن څخه،

**مسئله**: که څوک بیریدی چې ما به دښمن ووینی که زه لمونځ په ولاړه وکړم نو دی د بې لمونځ وکړی. اوکه بیریدی که لمونځ په ناستی کوم دښمن می وینی لمونځ دی په پروتی وکړي په اشاره سره وجهت ته د امن وکړی »

**مسئله**: که څوک پرکښته کیدو د دابې یا پرسپریدو د دابې مثلاً قادر وو په کومک د بل سړي او بل سړی هم وو چې د ده سره کومک وکړي. امام اعظم ابوحنیفه دی قادر نه بولې په قدرت د غیر. لمونځ یه روادئ. او یاران وائی چې قدرت د غیر معتبر دی حتی چې دی قادر دی لمونځ یه نه دی روا. اوکه څوک کومکی نه وو لمونځ یه په اتفاق سره روا دئ. **مسئله**: که څوک د دښمن څخه تښتیدی پیاده لمونځ یه نه دی روا.

**مسئله**: که سپاره سړی چې پر نزول نه وو قادر دابه لکن دابه یه درولای سوای نو دی دې په اشاره لمونځ وکړی او دابه دی ودروی. اوکی نه سوای درولای نو دابه دی روانه وی لمونځ دی په اشاره کوي. او مخ دی وقبلې ته گرځوي که قادر وُو. اوکه نه





وو قادر فَاِلٰی اَیِّ جِهَةٍ صَلّٰی صَحَّ صَلٰوتُهٗ » اوبوه سه چې دا تول احکام د فرضی لمانځه دی. او نفلی لمونځونه پر دابه بیله عجزه په صحرا کښې په اتفاق روا دي. وهٰکذا حال السنن »، ط د، م. قَالَ المصنفؒ:

## وَمَنْ اِشْتَبَهَتْ عَلَيْهِ الْقِبْلَةُ

که پرچا پوشیده سوه جهت د قبلې مثلاً تاریکه وه په شپه کی. او ډیری توري ورځي وي په ورځ کی چې نه لمر معلومیدی او نه سایه. **مسئله**: که لمر ښکاره وی لکن سړي لکه ورځي چې اخستی وي. په علاما تو د قبلې نه پوهیدی. نو په دی جهل سره دی معذور گڼل کیږي. او د تحري (فکر وهلو) اجازه ورته سته اوکه نه. بعض علماءؒ وائی چې بیایا د تحري اجازه نه لري. لکن ظهیرالدین مرغینانیؒ وائی چې دی معذور دی تحري دی وکړي. او جوهرة وائی چې ظاهر عبارت د قدوریؒ هم پر دغه دلالت کوي.

قَالَ المصنفؒ

## وَلَمْ يَكُنْ عِنْدَهٗ مُخْبِرٌ

او نه وو په حضور کی د ده خبرورکونکی د جهت د قبلې چې دی پوښتنه ځنی وکړي. (قیل) یا خو مخبر وو او ده پوښتنه ځنی وکړه مگر هغه نه جواب ورکوی. **مسئله**: د حضور د مخبر اندازه داده چې دی ور نارې کړي هغه یه اوري **مسئله**: په ښو ولو کی د جهت د قبلې اخبار د یوه چا چې عدل وی که نروی اوکه ښځه که حروی که عبد مقبول دئ. اوکه فاسق وو اویا مستور الحال وو نو تحري دی وکړي. او په غالب الرأی سره دی عمل وکړي »، ط، د.

**مسئله**: که څرم د غه چې قبله ځنی ورکه ده سجده تلاوت کوي. **مسئله** که د دغه سړي رایه د قبلې په باره کی یو جهت ته وه لکن مخبر عدل بل جهت ورښو نو امام طحطاویؒ وائی چې عمل په قول د مخبر عدل پر ده واجب دی. ولې چې اخبار تر تحري بالا دی. او په غایة البیان کی او عنایه کی وائی چې عمل په قول د مخبر مستحب دی واجب نه دئ. قَالَ المصنفؒ

## وَلَامِحْرَابَ تَحَرّٰی وَلَا اِعَادَةَ عَلَيْهِ لَوْاَخْطَأَ

او محراب دیو مسجد هم نه وو نو د غه سړی دی بېچیل فکر په جهت د قبلې وو هي

هرځوات چې د ده غالب ګمان سُو هغه طرفته دې لمونځ وکړي. او که ګرځول د لمانځه د طرفته کړ چیرې خطا وتلی وُو. یعني پس له لمانځه به تحري سره دا وړته معلومه سوه چې زه په جهت کې د قبلې خطا وتلی وم خو بیا هم که ګرځول د لمانځه پرې نسته.

**مسئله**: سره د محرابو لیدلو ده ته د تحري حق نسته ولې چې جوړول د محرابو غالبًا په حق سره وي. **مسئله**: که څوک د هغه ځای سړی نه وو او اهل علم بالقبله هم نه وو. د بل سړي اخبار ته اعتبار نسته بلکه دی به تحري کوي لمونځ به ادا کوي. او که دوو کسانو چې هغه هم مسافران وه په مثل د ده د هغو اخبار ته هم اعتبار نسته ولې هغه کسان هم د اجتهاد څخه خبري کوي. نو دی د بے خپل اجتهاد د بل د اجتهاد په سبب نه پرېږي دی. او په فتاوٰخانیه کې وائي چې سره د محرابه دی هم تحري وکړي او ولې چې دا محرابونه سوي دي محراب د مدینې منوّرې په وحی سره نه دی ثابت.

لکن دا خبره خلاف د ټولو کتابو څخه دی او د غه رنګه مخالف د هغه قوله سره د ما راٰه المؤمنون حسنا فهو عند الله حسن **مسئله**: مصنف په مراقی کې وائي چې پردغه سړي چې د قبلې جهت څنډی ورک دی تپکول د دروازو د خلګو نه دی لازم د پاره د معلومات د جهت د قبلې. **مسئله**: یو سړي د ماښام په وخت کې مسجد ته ورغلی او په مسجد کې تاریکه وه نو یو طرفته ئې لمونځ وکړي چې ده لمانځه څخه فارغه سُو یو بل چراغ راوړي دی مصلی چې رڼا سوه و معلومه سوه چې لمونځ دې غیر ته د قبلې کړي دی، که دې سړي په اول وار کښې تحري کړي وه لمونځ یې صحیح دی او که ګرځول د لمانځه ورباندی نسته. او کې تحري نه وه کړي لمونځ دې را وګرځوي. ط، دره

**سوال**: دی سړي به پر دیوال لاس کړه ولې وای او محراب به ئې ځانته معلوم کړي وای **جواب**: مصنف په مراقی کې وائي چې د لاس تیروُل پر دیوال باندې پر دغه سړي لازم نه دی. یو خو دی سببه چې نه باید چې پر دیواله یولړم وغیره نه وي. او بل سبب دا دی چې په اکثرو مسجد وکې محراب مانند د ګیانوي نو که دی لاس وه کړه وي نو بیا یه چې پر یو درګی به د محراب خیال راتسي.





او لمونځ پر هغه خوا وکړي. او په واقع کې به هغه د قبلې جهت نه وي.

**مسئله**: صاحب الهدایۃ په تجنیس کې وائي او په مزید کې هم ورته مسئله راغلی ده. چې یو سړی په ستر ګو ړوند وُو په مسجد کې پر لمانځه ودریدی وخلاف ته د جهت د قبلې. یو رکعت چې وکړي یو بل سړي راغلی او ړوند یه پر قبله برابر کړي او بیا یه اقتداء هم پسې وکړي. نو دا مسئله دوه اړخه لري. یو خو دا دی چې ړوند چې پر لمانځه ودریدی د اسی څوک وو چې ړانده پوښتنه د قبلې څنډی کړي وای او که څوک نه وو.

په اول صورت کې د ړانده لمونځ هم فاسد دی او د مقتدی دا هم، ولې چې ړانده خو قدرت درلودی چې و قبلې تی لمونځ کړي وای په پوښتنه سره. او په صورت د ړانده لمونځ صحیح دی لعدم القدرة. او د مقتدی لمونځ نه دی صحیح. ولې چې ده ته معلومه سوه چې امام یعني ړوند په ابتداء کښې د لمانځه پر خطا وو. قال المصنف

**وَاِنْ عَلِمَ بِخَطَائِهٖ فِیْ صَلٰوتِهٖ اِسْتَدَارَ وَبَنٰی** او څوک چې قبله څنډی وړکه وه پخپل خطاء و پوهیدی په لمانځه کې نو دې دی وګرځي و قبلې ته او برکړي لمانځه دی بناء وکړي. یعني هغه کړي لمونځ یه صحیح دی. **مسئله**: که د سړي اجتهاد د قبلې په پاره کې په لمانځه کې بدل سو هم به ګرځي و هغه بل طرفته» ط»

**پوښتنه**: چې د اجتهاد بدل والی د اسی دی لکه نسخ، نو ځکه اهل د مسجد قباء چې لمونځ په بیت المقدس کا وه او د وئ ناخبر وه چې قبله و کعبې شریفې ته واوښتل نو یو سړي ودوی ته د لمانځه په مابین کې خبر ورکړي چې د بیت المقدس قبله والی منسوخ سُو او قبله کعبه شریفه وګرځیده. نو اهل قباء په هغه لمانځه کی سره وګرځیدل او مخونه یه و کعبې ته وګرځول. آنحضرت صلی الله علیه وسلم چې په موضوع خبر سُو دوی تی وو یل چې ښه مو وکړه. رواه اصحاب السنن»

**پوښتنه**: څه وجه ده که یو سړی او به داود اسه پیدا کړي او تحري یه وکړه

پاکی پہ خیال وَرغلہ اودس یہ پہ تازہ کړی او لمونځ یہ وکړی وروستہ ورتہ معلومہ سوہ چی اوبہ مرداری وی فقہاءؒ تولہ وائی چی پہ پاکو اوبو دی اودس تازہ کړی او لمونځ دی راوګرځوی۔ او یو سړی پہ جامہ کښی تحری وکړی پاکہ یہ بخیال وَرغلہ نو لمونځ یہ پہ کښی وکړی وروستہ معلومہ سولہ چی جامہ پہ قدر مانع د لمانځہ مردارہ وہ۔ نو علماءؒ وائی چی پہ پاکہ جامہ کښی د لمونځ را اوګرځوی۔ او د قبلی پہ بارہ کښی چی تحری وکړی او یو جہت تہ لمونځ وکړی او وروستہ تر لمانځہ ورتہ معلومہ سی چی خطا وتلی وَم د لمانځہ راګرځول پری نستہ۔

فمَا الفَرق بَین التحری فی امرالقبلۃ و التحری فی المآء وَالثواب، **جواب** سبب دادی چی نجاست د اوبو یاد جامی انتقال و طہارت تہ شرعًا نہ قبلوی او قبلہ قابلہ د انتقال دہ ځکہ قبلہ د بیت المقدس و کعبی تہ نقل سوہ ۔۔۔ : قالَ المصنفؒ

## وَاِنْ شَرَعَ بِلَا تَحَرٍّ فَعَلِمَ بَعْدَ فَرَاغِہٖ اَنَّہٗ اَصَابَ صَحَّتْ

او کہ شروع وکړہ دغہ سړی چی قبلہ څندی دہ کہ وہ یعنی لمونځ یہ شروع کړی بیلہ فکر و ملوغہ پہ جہت کښی د قبلی نو لمونځ چی پورہ کړی ورتہ معلومہ سوہ کہ څہ ہم غالب الظن سرہ وی چی قبلہ دغہ طرفتہ وہ چی ما لمونځ ورتہ وکړی لمونځ یہ صحیح دی۔ ولی چی حق معلوم سو او ہغہ دہ اشتباہ لغوہ سوہ نو جواز د لمانځہ ثابت سو

## وَاِنْ عَلِمَ بِاِصَابَتِہٖ فِیْہَا فَسَدَتْ

او کہ دہ تہ معلومہ سولہ چی قبلہ ہم دغہ دہ چی زہ لمونځ ورتہ کوم د لمانځہ پہ مابین کښی لمونځ یہ فاسد سو بیرتہ بی د سرہ شروع کوی پہ دلیل د دی چی پہ لمانځہ کښی د دہ حال قوی سو یعنی قبلہ یہ پہ تعین وپیژندلہ او اول د لمانځہ دہ پہ ضعیف حال چی تحری وہ بناء وہ۔ نو پہ شرع شریف کښی بناء د قوی پر ضعیف نہ دہ روا، م، ط۔

اَللّٰہُمَّ اغْفِرْ لِمُؤَلِّفِہٖ وَلِکَاتِبِہٖ اٰمِیْن





## کَمَا لَمْ یَعْلَمْ اِصَابَتَہٗ اَصْلًا

لکہ چی فاسدی لمونځ د دہ چی پہ حق تہ رسیدو پہ امر کښی د قبلی نہ وہ پیژندلی باالکل یعنی نہ قبل الصلوٰۃ پہ تحری سرہ او نہ پہ لمانځہ کی او نہ بعد الصلوٰۃ ولی چی فساد د لمانځہ د سرہ ثابت سو او بیا پورتہ نہ سو۔ قَالَ المصنفؒ

## وَلَوْ تَحَرّٰی قَوْمٌ جِہَاتٍ وَجَہِلُوْا حَالَ اِمَامِہِمْ تُجْزِئُہُمْ

کہ چیری د یو قوم تولو ځنی قبلہ ورکہ وہ او تورہ شپہ وہ نو ہر یو د تحری وکړہ او جہات مختلف وو تی لمونځونہ وکړہ او پہ حال د امام د دوی نا خبرہ وہ چی و کوم جہت تہ ولاړ دی لمونځ د تولو صحیح دی۔ لکن د ہغہ چا لمونځ نہ دی صحیح چی پہ جہت کی د امام تر امامہ ځنی ولاړ وی۔ کما فی الصَّلوٰۃ حَولَ الکعبَۃ کما مَرّ۔

پہ حدیث شریف کی د عامر بن عقبۃ رَضِیَ اللّٰہُ تعَالٰی عَنْہُ داسی راغلی دی چی مونږ یعنی اصحاب کرامؓ وو سرہ د علیہ الصَّلوٰۃ وَالسَّلام یعنی پہ سفر کی او شپہ ډیرہ تاریکہ وہ۔ نو مونږ ہیڅ چا پر دی قدرت نہ درلودئ چی قبلہ پر کوم طرف دہ نو ہر سړی دا لمونځ پر خپل طبیعت وکړی یعنی ہر سړی تحری وکړی او لمونځ یہ وجہت تہ د تحری وکړی یعنی جہات مختلف وو تہ۔ وروستہ معلومہ سوہ چی مختلف وہ او غالبًا بہ دغہ لمونځ پہ امامت د آنحضرت صَلَّی اللّٰہُ عَلَیہ وسلم وُو۔ او حال د توجہ د دہ ہم نا معلومہ وُو چی سحار سو مونږ دا موضوع پہ حضور کښی د علیہ الصلوٰۃ وَالسلام عرض کړہ۔ نو دا آیت نازل سو فَاَیْنَمَا تُوَلُّوْا فَثَمَّ وَجْہُ اللّٰہِ :

د مولٔفین وَائی سہ غرض نقشیست کز ما یا د ماند : ۔۔۔ مگر ۔۔۔ روز رحمت : کند در حق این مسکین دعائی : چون بقبرم بگذری دامن کشان : از سر ۔۔۔ بخوان :

سہ دا کتاب بہ اِنْ شَآءَ اللّٰہُ وسیلہ کیږی : د عُبید عاصی ہندوکی ۔۔۔ :

سہ اُحِبُّ الصَّالِحِیْنَ وَلَسْتُ مِنْہُمْ : لعَلَّ اللّٰہُ یرزقنی صَلَاحًا :

تحیل و فضل و کرم ما تہ بخښ وکړی خدایہ : تہ غفور او رحیم او مہربانہ یی ای خدایہ۔

داخدمت دعلم دین چې زه کومه ؛ شاید دا به ؎ شفیع وګرځومه ؛
سر اہل علم گفته اند.. به بهانه می بخشد ؛ به بهانه می بخشد ؛
داخدمت زما خوار د بخښنې بهانه کړي. چې بهانه د عبادت خوار لره نشته.

# بښهانه بښوونه

درویش وائي چې تر دې ځایه پورې **اول جلد د نور الایضاح** په توفیق سره د مولیٰ جَلَّ سُلطانهٗ پوره سو او **دوهم جلد** د فصل فِي وَاجِبِ الصَّلٰوة، څخه شروع کیږي. او اِن شَآءَ اللّٰهُ العزیز هغه به هم تر دې تر ټولو د عقیده تمندانو په حضور کښې پیش سي په توفیق د ربّ جَلَّ وَعَلا :

**پوښتنه** ته سره د کلان سالي خپل. ولې په علمي خدمتو کښې ځان ته تکلیفونه اوبد خوابي ورکوې خصوصًا د مختصرو کتابو د عقائدو، لکه نور ظلم، ابو المنتهی، او یاد فقهې. لکه شروط الصلوٰة، قدُوري او نور الایضاح په پښتو کولو کښې.

**جَواب** : ما ډېر وارونه عرض کړي او دا باعث مې بیان نکړی لکن بیا هم د پوښتنې په اثر عرض کوم چې هیڅ مَدان باعِث خدمَت دې د عربي کتابو د زده کوونکو چې بعض مغلق ځایونه ورته په سلیسه عربي ژبه وروته آسانه کړم. اوبل سبب دا دی چې دخپل قوم پښتنو په مورنۍ ژبه دین یعنی عقائد د اهل السنة والجماعة او احکام د فقهي موافق د مذهب سره د امام اعظم رحمة الله علیه او د ده شاګردانو او د ده مذهب د مجتهدانو رَحِمَهُمُ اللّٰهُ بیان کړم. چې د هر خواننده نراو ښځې د پاره د اکتابونه د کور استاذ وګرځي. اِنْ شَآءَ اللّٰهُ العزیز

او په دې باب کښې ما عاجز ته ډېر خطونه د « اَحْسَنْتَ » را رسیدلي دي هم د نرو ورونړو دخوا او هم د ښځو خوندو د خوا. نوزه به یو لیک د رته خپور کړم او تاسي به ئې مثت نمونه خروار» وبولې. دا لیک ماته د سَعودي عَربستان څخه د مدینې منورې څخه زمایو





دیني ورور را استولی دی. چې نوم یې حاجي عبدُ الستار دی او اصلًا د قندهار دی او دا ډېر کلونه تخمینًا ۲۲ کاله په مدینه منوره کښې سره د اهل وعیال اوسیږي خط دا دئ

# دَحاجي عبدُالستار دخط مَتن

دعاو سلام دَطرفه څخه د عبد الستار وخپل ګران مهربانه ورود او استاذ « مولوي حاجي مُلا عُبیدُ الله اخند ته دې په ښه ساعت کښې ورسیږي، موږ شکر جوړ او روغ یو ستاسو جوړتیا او روغتیا د پاک خدای جَلّ جَلالهٗ څخه همیشه غواړم. ګرانه استاده ستا خط را ورسیدی ډېر ډېر په خوشحاله سوم. خدای جَلّ شانه دې په دې دُنیا او اٰخرت کښې عوض درکړي. حاجي اسد الله راغلی وو او ۲ شپږ شپې یې راسره وکړې. او دغه خط می د هغه په لاس درواستاوه خدای دې وکړي چې درورسیږي ګرانه استاذه ستا خط سحار ما ته تسلیم سو چې حاجي عبدُ الرحمٰن ته دې ورکړی وو نو مطالعه می کړی او ډېرې ډېرې دعاوې می درته وکړې او اوس غرمه ده مسجد نبوي صلی الله علیه وَسَلم ته د ماپښین د پاره ځم. هلته په روضه مبارکه کښې په اخلاص دعا درته کوم.»

او هر ماښام ورو سته تر لمانځه د ماښام هر ماښام دوه دوه رکعته نفل په روضه مبارکه کښې کوم او ثواب یې تا ته در بخښم او د مغفرت دعا ګانې درته کوم خدای پاک جَل جَلالهٗ دې قبولې او مقبولې وګرځوي. ولې چې پخوا زموږ خپل لمونځ نه وو زده حتی چې تا زموږ د پاره دا کتابونه زموږ د مور او پلار پخپله ژبه را ترجمه کړه. او موږ په هر څه پوه سوو. او ډېرو خلګو د غه ستا سي کتابونه را څخه وړي دي. او خپل کور ته یې وړي دي او ډېرې فائدې یې څخه اخستي دي. او دا دیره دربانه ندی مَین دي.
او دعاګانې درته کوي. او زما ورور په امریکا کې دی ستا کتاب مې ور واستاوه او تلیفون یې وروسته را سره وکړی په تلیفون کې ستا د کتاب د مطالعې له سببه

یه په تلیفون کښې داسې ژړله چې دَژړا دلاسه یه په خبرو . نه پوهیدم چې د غوندې ژړله . او بیا مې دکوټې دکتابخانې ادرس ورکړې . نو بیا انډیوال یه پاکستان ته تللی وو . اوستا ګرده کتابونه یه ورورړه . او په سویلن کې زما اخښې دی . هغه ته مې هم ستا کتابونه دپاکستان دلارې ور واستوله .

ګرانه استاذه ! دا څومره خدمت دی چې تا دی بیوزلو پښتنو ته دا سلام په لارکې کړې دی دخدای جَلّ جَلاله څخه مې ته اوستا ټوله خاندان اولاد په دنیا او اخرت کښې کامیابه او برېالی غوښتنی یاست، که برنه په رښتیا دروېش یم د رسول الله صَلی الله عَلیه وسلم . او هم دې همیشه ښه ژوند دخدای جل جَلاله څخه غواړم .

ګرانه استاذه ما ۵ پنځه دعطرو ښیښې در واستولی . یوه غټه ښیښه دهغه کتاب فروش ده چې ستا سره یه په کتاب کښې دخط دنوشته کولو خدمت کړې دی او کوی یه (مراد قاری مجوّد خطاط اعظم مولوی فضل الحق صاحب دی) او زما سلامونه هم ورته ووایه . لو دا ستا دغه دعاګانې دمدینې منورې بسته . او څلور ښیښې ستا دي . ګرانه استاذه ما به ډیر شیان در استولی وای خو حاجی اسدالله ویل زما بکسه کښې ده یو څو کښې شیان راکړه . نو ځکه مې دا لږ تحفه در واستوله

ګرانه استاذه !

د ماخستن اذان دحرم شریف نارې سو او زه ستا سې په دغه خط مشغوله یم . او س به د لمانځه دپاره حرم شریف ته ځم په نامه به خپل استاذ یادکړم . او وه سرو رکائنات رحمة للعلمین صلی الله علیه وسلم ته به دخپل استاذ سلامونه وړاندې کړم . او ورته وایم به چې دا ۲۲ کاله چې سلامونه در لیږم والله او نیلی می بهیږی . خدای جل جلاله مې دې دغه محبت نه کموي . فقط

حاجي عبدالستار درویش

ګرانو لیدونکو او مطالعه کوونکو دا یو مختصر خط وو چې ما وه نشرته و سپاره . په سبب





ددې چې دپاکې روضې څخه دمدینې منورې د آنحضرت صلی الله علیه وسلم دیوه عاشق دخوا راغلی وو . له چیرې عاصي تول مکتوبونه چې درویش ته راغلی و نشرته وسپاره دیرې ورتې بر اشغال کړې بیت ؎ تا طبع نازکت نه پزید ملالتی . آن به که نامه بدعا مختصر کنم .

خواجه عبد الله انصاري الهروي رحمة الله علیه میګوید ؎

دلا در کار خود میکن نظرها :: که در راه تو می بینم خطرها :: کشا داز خواب غفلت چشم بیدار :: بګوش هوش ګویم خبرها

نګر در خلق ګورستان فګنده .

زیک تیری فنا جمله سپرها .

بباشا کان مه روبند در خاک :: که از ایشان درجهان مانده اثرها .

معاصي زهر قهر است و نموده :: بکام نفس تو همچون شکرها .

ګذرګاه است این دنیای فانی .

نماند مرد عاقل در ګذرها . چو در پیش است مرګ ای پیر انصار :: تماشای جهان کن در سفرها .

اللهم اغفر لکاتبه وللمؤلفه ولجمیع المؤمنین آمین

وقد کتبه فضل الحق حقاني غفرله الباری

فی ۲۴-۹-۱۴۲۱ھ ۲۲-۱۱-۲۰۰۰ء

# مکتبة القراءة والتجوید

کانسی روډ شالدره . کوئټه .

دعقیدتمندانو د پاره اوهغه کسان چې
معلومات پوره نلري، د درویش محمد عُبید الله ایوبي
د تصنیفاتو نومان تر سنه ۲۲ ۱۴ هـ ق پورې.

# دحضرت ایوبي د تصنیفاتو نومونه

فی علم التفسیر (۱) حاشیه بیضاوی درسي. په عقائدو کي.. (۲)، نورظلم (۳) ابو المنتهی دواړه پښتو. (۳) عِصمت الانبیاءؑ عربي پارسي (۴). البیانات الصادقه فی بیان الوهابیه، پښتو، پارسي، عربي، (۵) حاشیه پرشرح عقائد (۶) حاشیه پرخیالي ۷ حاشیه پرمیر زاهد امور عامه. په تاریخ کي. ۸ شهادة الحسنین،

په علم فقه او اصول الفقه کي. ۹ شروط الصلوٰة پښتو ۱۰ قدوري صلوٰة پښتو، ۱۱ نورالایضاح ۲ دوهم جلد پښتو ۱۲ نورالایضاح اوله جلد. ۱۳- حاشیه پرځو اوراقو د هدایه. ۱۴- حاشیه پراصول الشاشي. ۱۵- حاشیه پرمسلم الثبوت، ۱۶- حاشیه پرتلویح.

په عروضو کي ۱۷ حاشیه پرمختصرالشافي. په تصوفو کي. ۱۸ حاشیه پرهدایة النافعۃ. په میراث کي [19] حاشیه پرسراجي. په علم حساب کي. ۲۰- حاشیه پر خلاصة الحساب. په ریاضي کي. ۲۱- حاشیه پرتصریح ۲۲- شرح د تصریح ۲۳- حاشیه پر رسالهٔ قوشجي ۲۴- حاشیه پر بست باب. [25] په تبلیغ کي. ۲۶- البلاغ المبین، په علم صرف کښي ۲۷ حاشیه پرمراح ۲۸- حاشیه پرشافیه. په دعاوو کي. ۲۹ مجربات ایوبي (۳۰) وظائف ایوبي، په حکمتو کي [31] حاشیه پرهدایة الحکمت. ۳۲- حاشیه پر صدرا ۳۳- حاشیه پر میبذي ۳۴- حاشیه پرتحریراقلیدس. په نحو او معانی وو کي [35] حاشیه پرشمه. ۳۶ حاشیه پرهدایة النحو ۳۷- حاشیه پر کافیه ۳۸- حاشیه پرشرح جامیؒ ۳۹- حاشیه پر عبد الغفور ۴۰- حاشیه پرمطول په منطق کي. ۴۱ حاشیه ایساغوجي ۴۲- حاشیه پرمیر ایساغوجي. ۴۳- حاشیه پر بدیع المیزان ۴۴- حاشیه پرقطبي.





۴۵- حاشیه پرکندیه. ۴۶- حاشیه پرمیر زاهد قطبیه ۴۷- حاشیه پرمرزا جلال ۴۸ حاشیه پر حمدُ الله ۴۹ حاشیه پرقاضي سُلم. په فقر کي. اراده د قدوري نکاح د پښتو- په معاني وو کي [51] حاشیه پر تلخیص المفتاح =

هـذه تصانیفی الی هذا الاوان وارجو من الله تعالیٰ
ان یوفقنی مزید التوفیق لتالیف
الشروح الاخر والله الموفق
والمعین والحمد لله
رب العلمین ط
مع الصلوٰة علیٰ سیدنا سید المرسلین محمد واٰله وصحبه اجمعین برحمتك
یا ارحم الراحمین ۔




# نکاح قدوري
## مع مسائل پښتو

تالیف
ابوالفضل علامه محمد عُبید الله الایوبي

ترتیب وتحریر
احقر فضل الحق حقاني
جامعه تجوید القرآن کوئٹه

# اِعلان
## خبرتیا

### لتجار الکتب وغیرهم

الحمد لله وکفیٰ وَالصلوٰة والسلام عَلیٰ من به الاقتداء والاهتداء وعلیٰ آله وصحبه اجمعین.

گرانو کتابفروشانو! په احترام سره تاسی ته عرض کوم چی دا کتاب شرح د نُورُ الاِیضَاح په پښتو زما درویش محمد عُبَید الله مستقل تصنیف او ډیر جان فشانی می په کښی کړیده.

او بیا په کتابت د دے جناب مُحترم قاري فضل الحق صَاحِب خوشنویس ډیره عرق ریزی، شب وروز کړی ده. او بیا ډیر رَقم یه په خرڅ کړی دی لهذا ما حقوق د طبع وقاري صاحب مذکور ته ورهدیه کړی دي.

نو بناءً علیٰ هذا هیڅ څوك د طبع ددی کتاب نه لري بلکه هر څونسخی چی دچاپه کاروی د قاری مذکور په مراعاتی توگه را نیسی.

او که څوك خلاف ددغه اعلان وکړی نو هغه د قانونی او شرعی او پښتنی ستونځو سره مخامخ سی. هم زما دخوا او هم د کاتب دخوا.

وَمَا علینَا الا البَلاغ المبُین.





# د نورُ الایضَاح پښتو د مضمونونو فهرست

# دنور الایضاح پښتو د مضمونونو فهرست







# دنور الایضاح پښتو د مضمونونو فهرست

# دنور الايضاح پښتو د مضمونو فهرست







# دنور الايضاح پښتو د مضمونو فهرست

## دنورالایضاح پښتو دمضمونو فهرست







## دنورالایضاح پښتو دمضمونو فهرست

# دنور الایضاح پښتو د مضمونو نو فهرست

# دحضرت ایوبی دخط متن

اعلان «خبرتیا» لتجار الکتب وغیرهم »

الحمد لله وکفی «والصلوة والسلام علی من به الاقتداء والاهتداء وعلی آله وصحبه اجمعین

ګرانو کتابفروشانو ته په احترام سره تاسی ته عرض کوم چی

دا کتاب شرح د نور الایضاح په پښتو ژبه درویش محمد عبید الله

سنغل تصنیف او ډیره جان فشانی یی پکښی کړی »

او بیا په کتابت ددی جناب محترم قاری فضل الحق صاحب خوشنولس ډیره

عرق ریزی «شپه او روز کړی دی» او بیا ډیر زیات خرچ یی کړی دی

لهذا حقوق د طبع د قاری صاحب مذکور ته ورحواله کړی دی »

نو نباید هیڅ څوک حق د طبع ددی کتاب ونه لری بلکه هر څوک نسخی

چی د چاپ په کار وی د قاری مذکور په مراعاتی توګه راشی

او څوک که خلاف ددغه اعلان وکړی نو بیا به د قانونی اوشی چی

او پښتنی سنګو نمبر ٥ فاصح سی یم زه دخوا او یم د کاتب دخوا

وما علینا الا البلاغ المبین

محمد عبید الله ایوبی قندهاری منفرد